(حقوق طبع د مصنف د پاره محفوظ دي)

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ

# تفسیر

# احسن الکلام

بلغة البشتو

للشیخ ابی زکریا عبد السلام الرستمی

## الجزء الثالث

دریم جزء

از سورة آل عمران آیة ۱۳۰ تا سورة النساء آیة ۱۷۶

الناشر
جامعة عربية لاشاعة التوحيد والسنة
بډه بیر - پیښور

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَأۡكُلُواْ
اے ایمان والو! مه خورئ
ٱلرِّبَوٰٓاْ أَضۡعَٰفٗا مُّضَٰعَفَةٗۖ وَٱتَّقُواْ
سود دوچنده او ادیریږئ
ٱللَّهَ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ﴿١٣٠﴾
دَ الله تعالی نه دَ دے دَپاره چه کامیاب شئ.

۱۳۰ خلاصه: دَ دے آیت نه تر آخره پورے شلورمه حصه ده، او په دے حصه کښې درے بابونه دی اول باب تر آیت ۱۸۰ پورې دے. په دے باب کښې اول دا سے آداب او اوصاف ذکر کوی چه دَ راتلونکی وخت دَپاره دَ هزیمت نه بچ کوونکی اوګرځی (او دیته دَ تهذیب الاخلاق امور ویلے شی) دا آداب او اوصاف تقریبًا یو دیرش دی چه شپږ دَ هغے نه اوامر دی لکه ۱۳۰ کښې اِتقوا الله، ۱۳۱ کښې اتقوا النار، ۱۳۲ کښې اَطِيعُوا اللهَ وَالرَّسُوْلَ، ۱۳۳ کښې سارعوا، ۱۶۰ کښې فلیتوکل المومنون او ۱۷۵ کښې خافونِ، او شپږ پکښې نواهی دی ۱۳۰ کښې لا تاکلوا الربوا، ۱۳۹ کښې لا تهنوا ولا تحزنوا، ۱۴۹ کښې ان تطیعوا (مراد تری نه نهی ده)، ۱۵۶ کښې لا تکونوا کالذین کفروا، ۱۷۵ کښې فلا تخافوهم. او نور لس پکښې صفات او اخلاق دی شلور صفات په ۱۳۴ کښې، درے په ۱۳۵ کښې، په ۱۴۴ کښې عقیده دَ وفات دَ نبی صلی الله علیه وسلم، ۱۴۵ کښې عقیده دَ مرګ پخپله نیټه باندے، شلور صفات په ۱۴۶ کښې، ۱۴۷ کښې دُعا دَ سابقینو، ۱۶۱ کښې عقیده په صفت دَ نبی صلی الله علیه وسلم، ۱۶۴ کښې دَ الله تعالی احسان منل، ۱۶۹ کښې عقیده ساتل دَ شهداؤ په لوئے شان باندے، ۱۷۲ کښې استجابت دَ الله تعالی او دَ رسول صلی الله علیه وسلم او په ۱۷۳ کښې دَ صحابه کرامو دَ قول تابعداری.

دویم په دے باب کښې دَ منافقانو دَ شبهے جواب دے په

باره دَ هزیمت دَ احد کښې او جواب په ذکر کولو دَ دیارلس علتونو دَ هغې سره په ۱۴۰ ، ۱۴۱ ، ۱۴۲ ، ۱۴۳ ، ۱۵۲ ، ۱۶۵ ، ۱۶۶ او ۱۶۷ کښې - دریم پکښې اوصاف دَ منافقانو ذکر کوی په ۱۵۴ ، ۱۶۷ ، ۱۶۸ کښې - څلورم پکښې عظمت شان دَ نبی صلی الله علیه وسلم ذکر کوی په ۱۵۹ ، ۱۶۱ او ۱۶۴ کښې او دَ شهداؤ شان په ۱۶۹ ، ۱۷۰ ، ۱۷۱ کښې او دَ زخمیانو صحابه شان په ۱۷۲ ، ۱۷۳ او ۱۷۴ کښې - پنځم په ۱۷۸ او ۱۷۹ کښې دَ سوالونو جوابونه ذکر کوی او بخلاؤ ته تخویف په ۱۸۰ کښې ذکر کوی -

ربط :- ابن عطیه دَ دے په ربط کښې سکوت کړیدے او ابوحیان وئیلی دی ع۱ چه دا متعلق دے دَ لا تتخذوا بطانة من دونکم سره - هرکله چه یهودیانَ دَ ربوا معامله ډیره کوی او دا دَ هغوی سره دَ دوستانے کولو سبب گرځی نو په دے آیت کښې دَ هغې نه منع کوی دَ دے دَ پاره چه منافقانو او یهودیانو سره دَ دوستانے سبب جوړ نشی - ع۲ هرکله چه مخکښې وعده دَ نصرت ذکر شوه نو اوس دَ هغه وعدے دَ حصول دَ پاره آداب ذکر کوی چه په هغې کښې اهم ادب دَ ربوا نه نهی کول دی - قرطبی وئیلی دی چه مقصد دا دے چه که تاسو ربوا نه پریږدئ نو شکست به اوخورئ او قتل به کړے شئ - ع۳ هرکله چه لله ما فی السموات آه ذکر شو نو اوس فرمائی چه ستاسو دَ مالونو په تصرف کښې هم دَ الله تعالیٰ اذن ضروری دے - لیکن دَ ربوا په باره کښې اذن نشته - ع۴ قاسمی او بقاعی دَ ابوداؤد نه دَ ابوهریره رضی الله عنه روایت ذکر کړیدے چه دَ عمرو بن اقیش رضی الله عنه دَ جاهلیت په وخت کښې دَ چا سره ربوا وه نو ده بیه ته گنړله چه اسلام راوړی تردے پورے چه خپله ربوا حاصله کړی - نو دَ احد په ورځ مدینے ته راغے او آوازئے اوکړو چه څه شول زما تربوران نو ورته اوئیلے شو چه په احد کښې دی بیائے اوئیل چه څه شو فلانے ورته اوئیلے شو چه په احد کښې دے - نو خپله زغره ئے واغوستله او په اس باندے سور شو او احد ته لاړو - نو مسلمانانو ورته

اوئیل چه اے عمرو زمونږ نه لرے شه نو هغه اوئیل چه ما ایمان راوړید ے ۔ نو قتال ئے اوکړو او په هغے کښ زخمي شو .... بیا په هغے کښ وفات شو او الله تعالیٰ جنت ته داخل کړو (ابوداؤد کتاب الجهاد باب فیمن یسلم ویقتل مکانه) ۔
ابوهریره رضی الله عنه اوئیل چه هغه شخص چه مونځ ئے نه دے کړے او جنت ته داخل شوید ے هغه دا شخص دے ۔ نو دَ دے مناسبت په وجے سره دلته دَ ربوا نه نهي ذکر شوه ۔

تفسیر :- ۱۳۰ : يَآ اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوا الرِّبٰوٓا اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً ، دا مقتضا دَ ایمان ده دَ دے وجے نه ئے په یا ایها الذین سره مصدر کړو ۔

فائده :- دَ سوره بقره آیتونه دَ ربوا په باره کښ دی چه هغه دَ دینه روستو نازل شوید ی په دلیل دَ حدیث دَ امام بخاری په باره دَ نزول کښ چه هغه آخری آیتونه دَ قرآن دی نو دَ دے وجے نه په دے آیت کښ ئے قید دَ اضعافًا لګولے دے او په سوره بقره کښ مطلق منع کړید ه ۔

اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً ، دا قید دَ مزید قباحت دَ پاره دے دا دَ اهل ربوا په عادت بانډے بنا دو چه هرکله به ئے مال ورکوو نو په هغه وخت کښ به ئے شرط دَ ربوا مقرر کړو (مثلاً لس روپئ) بیا به چه په نیټه بانډے ادا ئیږی او نه شوه نو سود به ئے نور هم زیاتی کوؤ (مثلاً دَ مخکښ نه علاوه نور ے لس به ئے زیاتی کړے) او دغسے به ئے زیاتی کوو

اَضْعَاف ، جمع قلت دَ ضعف ده ۔ ضعف مماثل دَ یو څیز ته وئیلے شي او اضعاف ډیرو مماثلو ته وئیلے شي نو دَ لس ضعف شل دے او درے اضعاف ئے څلویښت دی ۔

مُّضٰعَفَةً ، یعنې په دغه اضعافو کښ به ئے نور سیوا والے کولو په سبب دَ زیادت دَ نیټو سره ۔ نو اضعاف په سبب دَ مالونو سره دے او مضاعفه په سبب دَ نیټو سره ده ۔

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ، هرکله چه ربوا په حرص دَ نفس سره حاصلیږی نو

وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيْٓ اُعِدَّتْ

او ځان بچ کړئ (د حرام نه په بچ کېدو سره) د هغه اور نه چه تیار کړے شوے دے

لِلْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۳۱﴾ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ

د پاره د کافرانو۔ او تابعداري کوئ د الله تعالیٰ

وَالرَّسُوْلَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۱۳۲﴾

او د رسول د دے د پاره چه په تاسو رحم او کړے شي۔

د هغے د پاره د الله تعالیٰ نه تقوی علاج دے او هغه ربوا نور د حرامو نه عام دے د دے وجے نه ئے تقوی د فلاح سبب گرځولے دے۔

۱۳۱:۔ په دیکښ مراد تقوی ده د سبب د جهنم د اور نه چه هغه حرام ته حلال وئیل دی او دا سبب د کفر دے د دے وجے نه ئے لِلْكٰفِرِيْنَ ذکر کړو۔ په النَّارَ کښ دوه اقوال دی۔

اول قول دا چه الف لام جنسی دے یعنی یو قسم د هغه اور نه دے چه تیار کړے شوے دے د کافرانو د پاره اگرچه دا قسم خفیف دے د اور د کافرانو نه۔ یا الف لام عهدی دے یعنی هغه اور چه د کافرانو د پاره دے هغه د ربوا والو د پاره هم دے نو دا سخت وعید دے د ربوا والو په باره کښ۔ د دے وجے نه قاسمی د امام ابوحنیفه نه نقل کړیدی، هغه وئیلی دی چه په قرآن کښ دا ډیر د خوف آیت دے ځکه چه مؤمنانو ته ئے د کافرانو وعید ذکر کړیدے۔

۱۳۲:۔ دا د ماقبل مقابل دے یعنی په هغے کښ سبب د عذاب ذکر کړیدے او په دیکښ سبب د رحمت (بچیدل د عذاب نه) ذکر کوی چه هغه اطاعت د الله تعالیٰ او د رسول صلی الله علیه وسلم دے په ټولو احکامو کښ او خصوصًا په احکامو د ربوا کښ۔ اشاره ده چه د ربوا تفصیلا د سنت نبوی صلی الله علیه وسلم نه ایزده کړئ او اطاعت ئے او کړئ۔

وَسَارِعُوٓا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن
او جلتي کوئ بخنې ته دَ طرفه دَ
رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ
رب ستاسو او جنت ته چه فراخي دَ هغې آسمانونه
وَالْأَرْضُ لا أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ ﴿۱۳۳﴾
او زمکه ده تیار کړے شوے دے دَ پاره دَ بچ کیدونکو دَ شرک نه۔

۱۳۳۔ روستو دَ امر دَ اطاعت نه اوس امر دے په مسارعت او په حصول دَ فائدو دَ هغې سره (دَ مسارعت معنیٰ مخکښې ذکر شوے ده)۔

وَسَارِعُوٓا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ، یعنی سَارِعُوٓا إِلَى أَسْبَابِ الْمَغْفِرَةِ وَالْجَنَّةِ۔ او په دیکښې ډیر اقوال دی دَ عثمان رضی الله عنه قول دادے چه دَ دے نه مراد اخلاص دے دَ علی رضی الله عنه په نیز ادا دَ فرائضو ده او دَ ابن عباس رضی الله عنهما قول دے چه دا اسلام دے۔ دَ انس رضی الله عنه او مکحول رحمه الله په قول مراد تړینه دَ جماعت دَ مونځ تکبیر اولی دے۔ دَ سعید بن جبیر رضی الله عنه په نیز مراد اطاعت دے۔ دَ عکرمه په نیز توبه ده او دَ ابو العالیه په نیز هجرت مراد دے۔ دَ ضحاک قول دے چه معنیٰ ئے جهاد دے، دَ یمان په نیز پنځه مونځونه مراد دی دَ مقاتل قول دے چه اعمال صالحه مراد دی۔ لیکن دا په تخصیص سره نه دی مراد بلکه دا دَ تقوی او دَ اطاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم (چه مخکښې ذکر شول) ټولو امورو ته شامل دے۔ او مَغْفِرَةٍ سره مِّن رَّبِّكُمْ دَ عظمت دَ پاره ذکر دے۔ او هر کله چه مغفرت دَ ګناهونو مخکښې دے په حصول دَ ثواب او جنت باندے دَ دے وجے نه ئے مغفرت په جنت باندے مخکښې ذکر کړو۔

وَجَنَّةٍ، دَ دینه مراد جنس دے ځکه ئے جمع ذکر نه کړه۔

عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ ، عَرْضُ پلن والی ته وئیلے شی
چه مقابیل دَ طول او ږدوالی راځی - او عرض همیشه دَ طول
نه لږ وی نو هرکله چه عرض یُے دَ آسمانونو او زمکے پشان
دے نو دَ اوږدوالی اندازه خو موتږ ته نشی معلومیدلے (قرطبی
وئیلی دی چه دا دَ جمهورو قول دے) - یا عرض دَ یو څیز
صرف وسعت دَ هغے ته وئیلے شی او آسمانونه او زمکه دَ قبے
پشان دی او دَ قبے عرض او طول یو شان وی (ابن کثیر) -
السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ ، دَ دے مضاف پټ دے په قرینه دَ سورة
حدید ۲۱ سره یعنی پشان دَ عرض دَ آسمانونو او دَ زمکے -
او په دیکښ دوه اقوال دی اول قول دَ ابن عباس رضی الله
عنهما نه نقل دے چه دا اووه آسمانونه او زمکے چه یو یو
او غوړولے شی دَ یو بل تو کی (کپړے) پشان او سره یُے دَ
یو بل سره یو ځائے شی نو دَ جنت به دومره پلن والے وی
نو دا تشبیه حقیقی ده - دویم قول دا دے چه دا تشبیه تمثیلی
او مجازی ده یعنی دَ انسانانو په علم کښ لوئے او فراخه آسمانونه
او زمکے دی نو د غسے دَ جنت دَ فراخئ مثال ورکړو -
سوال :- دَ ابوذر رضی الله عنه په حدیث کښ (چه قرطبی نقل
کړیدے) وارد دی چه دا اووه آسمانونه او اووه زمکے دَ الله
تعالیٰ دَ کرسئ په نسبت داسے دی لکه چه یو روڼی دَ یو صحرا
ډاګه زمکه کښ واچولے شی او دَ کرسئ نسبت عرش دَ
الله تعالیٰ ته هم داسے دے لکه چه دَ او سپنے یو کړی دَ زمکے
په یو صحرا کښ کیخودلے شی - او بل حدیث کښ راځی چه
دَ جنت دَ اونے دَ یو څانګے دَ لاندے سل کاله دَ سورلئ
والا سړی مسافت دے - داسے نور روایات هم شته نو
دا خو دلالت کوی چه جنت دَ آسمانونو او زمکے نه ډیر لوئے
دے ؟
جواب :- کله چه عرض مقابیل دَ طول مراد شی نو بیا دا
سوال نه واردیږی - دا رنګ کله چه تشبیه تمثیلی مراد

شی نو بیا هم دا سوال دفع کیږي ـ ځکه چه دَ جنت دغه ستر
وسعت یا دَ عرش او کرسۍ وسعت خو دَ انسانانو دَ نظر نه پټه دے
سوال:- سورة نجم ۱۵ کښ دي چه جنت دَ سدرة المنتهی په خوا کښ دے او حدیث
معراج کښ ثابت ده چه سدرة المنتهی په اووم آسمان کښ ده نو جنت
چه دَ اوؤ آسمانونو او زمکے پشان دے نو په اووم آسمان کښ څنګه
ځائیږي؟

جواب له:- په دے بانده الله تعالی قادر دے لکه چه زمونږ
په یو وړه غونډه ستر ګه کښ دَ نظر کولو په وخت کښ آسمان
او زمکه او غرونه ځائے کړیږي چه دَ سترګے نه دَ هغے وسعت
په کرو ړاؤ چنده زیات دے نو دغه الله تعالی ته څه ګران کار
نه دے ـ

جواب ۲له:- اوس الله تعالی جنت راغونډ کړے دے او دَ دوباره
ژوند په ورځ به ئې پوره خور کړي ـ او دیته ابن فورک اشاره
کړیده لیکن دَ اول جواب تائید هغه روایت دے چه ابن جریر، ابن
کثیر، ابن عطیه او قرطبي وغیره ذکر کړیدے ـ چه هرقل
بادشاه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یو قاصد رالیږلے
ود او خط ئې ورکړے وو هغه خط رسول الله صلی الله علیه
وسلم ته معاویه رضی الله عنه اولوستلو په هغے کښ لیکلی وو چه
تاسو هغه جنت ته رابلے چه دَ هغے وسعت آسمانونه او زمکه ده
نو دَ جهنم اور به په کوم ځائے کښ وي؟ نو رسول الله صلی الله
علیه وسلم اوفرمائیل سبحان الله چه ورځ راشي نو شپه
چیرته لاړه شي ـ او دغسے جواب عمر رضی الله عنه یهودیانو
ته هم ورکړے وو هغوی هم دغه تپوس کړے وو ـ ابن کثیر
وئیلی دي چه په دیکښ دوه احتمالات دي ـ اول دا چه
مونږ چه په وخت دَ شپے کښ ورځ نه وینو یا برعکس نو دَ
دے مطلب دا نه دے چه هغه موجود نه دي هغه په هغه
ځائے کښ دي چه الله تعالی ئې غواړي ـ دا رنګ اور دَ جهنم
به هغه ځائے کښ وي چه الله تعالی ئې غواړي ـ دویم احتمال

دا دے چه په دنیا کښ درځ یو جانب ته وی نو شپه بل جانب ته وی نو دا رنګ جنت په اعلیٰ علیین کښ دے دَ آسمانونو او زمکے نه پورته دے لاندے دَ عرش نه او پلنوالے ئے دَ آسمانونو او زمکے پشان دے۔ او دَ جهنم اور په اسفل سافلین کښ دے لاندے دَ زمکو نه (دا امام رازی دَ انس رضی الله عنه نه نقل کړیدی) والله اعلم۔

اُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِيْنَ، لفظ دَ ماضی او اعداد دلیل دے چه جنت دَ مخکښ نه پیدا کړے شویدے۔

فائده :- دا سے آیت په سوره حدید ۲۱ کښ هم دے لیکن دَ دواړو فرق په یو څو وجوهو سره دے۔ اول دا چه دلته وسارعوا دے او هلته سابقو بغیر دَ عطف نه دے۔ دویم دلته مضاف نیشته او هلته حرف تشبیه دے سره دَ مضاف نه یعنی کعرض۔ دریم دلته اعدت للمتقین او هلته اعدت للذین امنوا دے۔ دَ فرق وجے ئے دا دی۔ دَ اول فرق وجه، مخکښ او امر ذکر شویدی یعنی اتقوا، اطیعوا نو سارعوا ئے په هغه باندے عطف کړو۔ بیا دلته دَ یهودیانو او منافقانو دَ اخلاقو نه ځان بچ کول مراد دی او دَ ځان بچ کولو دَ پاره سرعت استعمالیږی دا رنګ دلته دَ متقیانو ذکر دے چه هغه اعلیٰ درجه دَ ایمان ده او دَ هغے دَ پاره تفاوت دَ مراتبو نشته او په سوره حدید کښ مخکښ معطوف علیه نشته او دَ منافقانو یا یهودیانو نه بچ کول نیشته۔ او په حدید کښ ذکر دَ مؤمنانو دے او هغوی کښ مختلف مراتب دی چه دَ هغے سره لفظ دَ سابقوا مناسب دے۔ دَ دویم فرق وجه، دلته دَ مسارعت او تقوی دَ وجے نه ډیر ترغیب مقصد دے نو دَ هغے دَ وجے نه دَ مبالغے دَ حمل دَ پاره حرف تشبیه او مضاف حذف کړیدے۔ دَ دریم فرق وجه، دلته اوامر او نواهی ذکر دی چه دَ هغے پوره لحاظ کوونکی متقیان دی او سوره حدید کښ صرف دَ اهل ایمان احکام

الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ فِي السَّرَّآءِ
هغه کسان چه خرچ کوي په خوشحالئ کښ
وَالضَّرَّآءِ وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ
او په تکلیف کښ او تیروونکي دَ غصے دي
وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ ؕ
او معافي کوونکي دي دَ خلقو نه ،
وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۳۴﴾
او الله تعالى مينه کوي دَ (داسے) احسان کوونکو سره ۔

ذکر دی دَپاره دَ فرق دَ منافقانو نه ، او دَ ایمان بالله والرسول امر ذکر دے په دے کښ نو هغے سره لفظ دَ امنوا بالله ورسله مناسب دے ۔ (وَاللّٰهُ اَعْلَمُ)

۱۳۴ : دَ متقيانو تقسیم کوی دوه قسمونو ته اول اعلى قسم او په دے آیت کښ دَ هغوی خلور صفات ذکر کوی ۔

اول صفت ئے الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ فِي السَّرَّآءِ وَالضَّرَّآءِ ، په دے جمله کښ څو اقوال دی اول دا چه مراد خوشحالی او خفگان دے ، دویم وسعت او تنگسیا دَ حال ، دریم داسے إنفاق چه انسانی طبیعت او فطرت پرے خوشحاله وی یا په طبیعت باندے بوج وی ، څلورم صحت او مرض ۔ او انفاق عام دے واجباتو مستحباتو ته او خرچ کول په دعوت او جهاد کښ او ذوی الحقوقو ته خپل حق سپارل ۔ او په دے تعمیم کښ اشاره ده چه دَ عبادت مالیه او ادا دَ حقوقو مالیه ته دوی دَپاره هیڅ حالت مانع نه گرځي ۔ او دا دلیل دے دَ سخاوت دَ نفس ۔

دویم صفت دَ اعلى قسم متقیانو ۔ وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ ، کاظم ، په اصل کښ دَ مشک دَ خُلے بندول دی کله چه ډک شی او غَيْظ برانگیخته کیدل او په طیش کښ راتلل دی په وخت دَ بو ناکاره تخیز په لیدلو سره ۔

او كَظْمُ الْغَيْظَ ، چپ کول او غلے کول دَ غصے وی سره دَ قدرت نه په واقع کولو او پوره کولو دَ هغے باندے (قرطبی)۔
او دَ غیظ او غضب په مینځ کښں فرق دا دے چه دَ غضب آثار په اندامونو باندے ښکاره کیږی بغیر دَ اختیار دَ شخص نه او دَ غیظ آثار صرف په زړه کښں وی او دَ غیظ سره اراده دَ انتقام نه وی شامل او دَ غضب سره انتقامًا بدله اخستل لازم وی۔
او دَ غضب نسبت الله تعالیٰ ته هم کیدیشی مناسب دَ شان دَ هغه سره او دَ غیظ نسبت هغه ته نشی کیدے۔ دا صفت په سوره شورٰی ۳۷ کښں هم ذکر دے۔ په دیکښں اشاره ده چه دَ غیرت دَ نفس دَ وجے نه دربانـدے غصه راځی او دَ هغے اجزاء هم کولے شی دَ هغے پوره کولو وس او طاقت ئے وی لیکن دَ حسن خلق دَ وجے نه هغه غصه په ځان تیره کړی او دا دلیل دے دَ صبر او استقامت۔
دریم صفت ئے وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ ، دے۔ یعنی هغه څوک چه دَ دوی سره بدی او ظلم کوی دَ مال یا دَ بدن یا دَ عزت په باره کښں یا دَ دوی یو خادم او مملوک وی او یو غلطی تری اوشی نو هغوی نه معافی کوی او درګذر تری نه کوی۔ او دا صفت په اصل کښں دَ مخکښں صفت تکمله ده یعنی غصه یو ځل تیره کړی نو کیدیشی چه بیا غصه شی نو او فرمائیل ئے چه دَ كَظْمُ دَ غیظ نه روستو معافی اوکړی نو دَ معافی کولو نه روستو بیا غصه نه واپس کیږی او دَ دے صفت ذکر او مرتبه په سوره شورٰی ۴۰ ، بقره ۲۳۷ ، نساء ۱۴۹ ، تغابن ۱۴ او سوره نور ۲۲ کښں دے او په دے سره امر په آلعمران ۱۵۹ ، مائده ۱۳ ، بقره ۹ او اعراف ۱۹۹ کښں دے۔ دا آیتونه دلالت کوی چه عفو کول ډیر لوے صفت دے۔
او څلورم صفت وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ دے۔ دلته دَ احسان نه مراد انعام کول دی روستو دَ عفو او درګذر کولو دَ جرم نه نو دا مستقل صفت شو۔ او په دے باندے دلیل دَ علی بن

حسین رضی الله عنهما واقعه ده چه دَ هغې وینځے هغه ته دَ
اودس اوبه اچولے نو دَ هغې دَ لاس نه کوزه په هغه باندے
پریوتله اوسر یئے زخمی شو نو هغې زر دا اولوستل چه
والکاظمین الغیظ نو هغه ورته اوئیل چه غصه مے تیره کړه
بیا هغې اولوستل والعافین عن الناس نو هغه او فرمائیل چه
معاف مے کړے نو بیا هغې اولوستل وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ
نو هغه اوئیل ځه لاړه شه آزاده دے کړے دَ الله دَ رضا دَپاره
دا واقعه آلوسی ذکر کړیده او قرطبی دَ میمون بن مهران په
باره کښ ذکر کړیده -
فائده ۱ :- اول صفت ئے په صیغه دَ فعل مضارع سره ذکر
کړے دو ځکه چه دَ هغې ضرورت نوے نوے راځی او روستو
صفات ئے په صیغه دَ اسم فاعل سره ذکر کړل دَ وجے دَ
ثبات او استمرار دَ دغه صفاتو نه -
فائده ۲ :- آلوسی او قاسمی ذکر کړیدی چه دَ دے صفتونو
مناسبت دَ ربوا والو په مقابله کښ دے چه دَ مؤمنانو صفتونه
دَ هغوی په خلاف کښ دی - چه ربوا والا مال نه ورکوی
بلکه زیاتے کوی او مؤمنان انفاق کوی دا رنګ ربوا کوونکی
په مسکینانو او قرضدارانو باندے ظلم او غصّه کوی او مؤمنان
غصّه نه کوی بلکه معافی او احسان کوی - دا رنګ مناسبت ئے
دے دَ واقعے دَ احد سره چه نبی صلی الله علیه وسلم زخمی
کړے شو او حمزه رضی الله عنه شهید کړے شو او نور صحابه
کرام هم شهیدان شول دَ کافرانو دَ لاس نه او دَ بعضے مؤمنانو نه
خطائی اوشوه چه مورچه ئے پریښودله او خوک دَ میدان جنګ
نه لاړل نو دَ دے تولو په باره کښ الله تعالی نبی صلی الله علیه
وسلم او صحابه کرامو ته دَ دے اخلاق حسنو ترغیب ورکړو. نو
دا دَ واقعے دَ احد دَپاره چه روستو آیتونو کښ ذکر کوی تمهید
شو-

وَالَّذِيْنَ اِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً

او دوی هغه کسان دی چه کله اوکړی بدکاره ګناه

اَوْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللّٰهَ

یا ظلم اوکړی په ځان باندے نو یاد کړی الله تعالیٰ لره

فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ ۖ وَمَنْ

نو بخنه اوغواړی د پاره د ګناهونو خپلو او څوک دے

يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ ۖ

چه اوبخی ټول ګناهونه سیوا د الله تعالیٰ نه،

وَلَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا

او نه کلکیږی په هغه ګناه چه اوکړی

وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳۵﴾

او دوی پوهیږی۔

ف ۱۳۵:۔ په دیکښ د متقیانو دویم قسم او د هغوی درے صفتونه ذکر کوی۔ قرطبی وئیلی دی چه دوی اګرچه د مخکښ قسم نه په درجه کښ ښکته دی لیکن الله تعالیٰ د رحمت د وجے نه د هغوی سره یو ځائے کړیدی۔

د دوی اول صفت وَالَّذِيْنَ اِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللّٰهَ، دے۔

د فَاحِشَةً او د ظُلم د نفس په باره کښ فرق په ډیرو وجوهو سره دے۔ اول دا چه فَاحِشَةً ګناهونه کبیره دی او ظُلم ګناهونه صغیره دی، دویم دا چه فاحشه زنا کول او ظلم د هغے نه ښکته ګناهونه دی یعنی پردی ښځے ته کتل یا لاس لګول، دریم دا فاحشه ټول ګناهونه دی او ظلم عمل کول دی بغیر د دلیل او حجت نه۔ دا ټول اقوال یو بل ته قریب دی تخصیص نه

حاجت نشته
ذَکَرُوا اللّٰهَ : کړ دَ قلب دا دے چه دَ الله تعالیٰ عذاب او سوال د
جواب دَ قیامت او الله تعالیٰ ته پیش کیدل یادکړی یا دَ الله تعالیٰ
عفو او احسان او مغفرت یاد کړی یا دا فکر اوکړی چه الله تعالیٰ
په زما نه تپوس وی - او ذکر دَ ژبے دا دے چه الفاظ دَ توبے
او استغفار ذکر کړی - خو ذکر دَ ژبے سره دَ ذکر دَ زړه نه
ضروری دے هسے ژبے او دَ شونډو خوځول فائده نه ورکوی۔
دویم صفت ئے فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ دے - قرطبی
وئیلی دی چه هرهغه کلمه او دعا چه په هغے کښ طلب دَ مغفرت
وی نو هغه وئیل استغفار دے او په حدیث دَ ترمذی
کښ دا کلمه ذکر ده ( اَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَیُّ
الْقَیُّوْمُ وَاَتُوْبُ اِلَیْهِ ) او دا رنګ دَ سید الاستغفار کلمات
لوستل غوره دی لیکن شرط ورسره دَ زړه استغفار دے
داسے نه ده لکه چه دے زمانه کښ بعضے خلق داسے دی چه په
ګناه کښ اخته وی او تسبیح ئے په لاس کښ وی او کلمه دَ
استغفار لولی یا صرف ژبه خوزوی او زړه ئے غافله وی دا
خو استهزاء کول دی او قرآن کریم کښ دی چه لَا تَتَّخِذُوا
اٰیٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا ( بقره ) -
وَمَنْ یَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ ، ابن عطیه وئیلی دی چه
دا جمله معترضه ده نفسونو ته دَ ترغیب ورکولو دَ پاره چه
توبه اوکړی او دَ پاره دَ تعلق ساتلو دَ استغفار دَ الله تعالیٰ
سره فقط او دَ هغه نه دَ عفو امید لرل - مَنْ ، استفهام
انکاری دے نو کلام منفی او ګرځیدو دَ دے وجے نه ئے
مستثنیٰ مرفوع ( په پیښ سره ) ذکر کړیده -
وَلَمْ یُصِرُّوْا عَلٰی مَا فَعَلُوْا ، دا دَ هغوی دریم صفت دے۔
ابن عطیه وئیلی دی چه اصرار قصد کول دی په همیشوالی
دَ یو کار باندے ، او ترلو ته هم وئیلے شی - او صاحب اللباب
وئیلی دی چه مضبوط والے په یو څیز باندے - او په

اصطلاح کښ روانیدل دی په یو گناه باندے قدم په قدم اوخوف الٰهی ورله نه منع کوی (قتاده)۔
او سدی وئیلی دی چه مراد ترینه پرېخودل دَ استغفار دی او چپ کیدل دَ هڅے نه سره دَ گناه کولو نه۔ او دَ دے دلیل حدیث دَ ابو داؤد دے دَ ابو بکر رضی الله عنه نه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه اصرار نه دے کړے هغه چا چه استغفار ئے کړیدے اگر چه په ورځ کښ اویا کرته گناه ته راگرځی۔
وَهُمْ يَعْلَمُونَ، متعلق دَ علم عام دے یعنی پوهیږی چه دا گناه ده او پوهیږی چه الله تعالیٰ توبه قبلوی او بخنه او مغفرت کوونکے دے۔ ابوحیان وئیلی دی چه دَ دے آیتونو نه معلومه شوه چه مؤمنان درے طبقات دی۔ متقون، توبه کوونکی او اصرار کوونکی په گناه باندے۔ او وعده دَ جنت دَ اول دوارو دَ پاره ده او دَ اصرار کوونکو حال پټ دے۔
او آلوسی دَ ترمذی روایت نقل کړیدے چه هر کله دا آیت نازل شو نو ابلیس خپلو لښکرو ته چغه کړه او ځان له ئے په سر باندے خاورے اچولے او ځان ته ئے دَ هلاکت خیرے اوکړے، نو لښکر ورته اوئیل چه څه وجه ده نو هغه ورته اوئیل چه دا آیت نازل شویدے۔ نو هغوی ورته اوئیل چه مونږ دوی ته دَ خواهشاتو دروازے راپرانیزو نو توبه او استغفار به نه کوی او دَ خپلو خواهشاتو باره کښ به گمان کوی چه مونږ په حقه لار باندے یو نو ابلیس په دے جواب باندے خوشحاله شو۔ هر مسلمان دِ ځان سره فکر اوکړی چه مخکښ ذکر شوی درے قسمونو کښ دَ ده تعلق دَ کوم یو قسم سره دے او په خپل حال دِ رحم اوکړی او دَ خواهش پرستئ نه دے ځان ډیر لرے اوساتی۔

أُولَٰٓئِكَ جَزَآؤُهُم مَّغْفِرَةٌ

دغه کسان بدله دَ دوی بخنه ده

مِّن رَّبِّهِمْ وَجَنَّٰتٌ تَجْرِى

دَ طرف دَ رب دَ دوی نه او باغونه دی چه بهیږی

مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ

لاندے دَ هغے نه ویالے همیشه به وی دوی

فِيهَا ۚ وَنِعْمَ أَجْرُ ٱلْعَٰمِلِينَ ﴿١٣٦﴾

په هغے کښې او ښه دے ثواب دَ داسے عمل کوونکو۔

س ۱۳۶: دا بشارت اخرویه دے مخکښې دواړه قسمونو ته۔ أُولَٰٓئِكَ جَزَآؤُهُم مَّغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ، په توبه کښې دوه څیزونه مطلوب وی۔ اول امن دَ عذاب نه هغے ته اشاره ده په دے لفظ سره۔

اودویم ثوابونه حاصلول دی او هغے ته اشاره ده په دے جمله کښې چه وَجَنَّٰتٌ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا وَنِعْمَ أَجْرُ ٱلْعَٰمِلِينَ، الف لام په ٱلْعَٰمِلِينَ کښې عهدی دی یعنی عمل کوونکی په مخکښې دوه آیتونو بیان دے۔

لفظ دَ أَجْرُ روستو دَ جزاء نه ډیر تاکید او ترغیب دے دَ حصول دَ جنت دَ پاره ځکه چه په دیکښې اشاره ده چه دا عمل کوؤنکی پشان دَ مزدورانو او دَ مزدور اجرت ورکول دَ عدل او انصاف صفت دے او هغه ښه لائق دے دَ الله تعالیٰ سره۔

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ سُنَنٌ ۙ
يقيناً تير شويدي ستاسو نه مخكښې واقعات
فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانْظُرُوا
نو او گرځئ په زمكه كښې نو اوگورئ (په عبرت سره)
كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿۱۳۷﴾
څنګه وو انجام د دروغژن كوونكو.

۱۳۷:- د بشارت نه روستو په صفاتو د تقوٰى سره تخويف دنيوي دے په ذكر د مكذ بينو سره د پاره د بچكيدلو د صفاتو د مكذبينو نه.

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ سُنَنٌ، خَلَوْ، په اصل كښې يوازے كيدلو ته وئيلے شي او د مضي (تيريدلو) د پاره هم استعماليږي دلته د تيريدلو معنىٰ مراد ده. سُنَنٌ، جمع د سُنَّةٌ ده هغه طريقے ته وئيلے شي چه انسان هغے لره لازم اونيسي. او قرطبي وئيلي دي چه نيغے لارے ته وئيلے شي. دارنګ هغه لار چه د هغے اقتداء كيدلے شي كه د خير وي او كه د شر وي د دے وجے نه سنت حسنه اوسنت سيئه دواړه استعماليږي. امت ته هم وئيلے شي اوسنن امثالو ته هم وئيلے شي. زجاج وئيلي دي چه دلته مضاف پټ دے يعني اهل سنن. نو اكثر مفسرينو وئيلي دي چه دلته مراد د دينه سنن الهلاك دي په دليل د ذكر د مكذ بينو سره يعني طريقے د هلاك او د عذاب يا نمونے د هلاكت د مكذ بينو.

فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ، دا فاء د پټ شرط د وجے نه ده يعني اِنْ شَكَكْتُمْ فَسِيرُوا، كه تاسو په دغه سنن كښې شك كوئ نو اوگرځئ په زمكه كښې. او سِيْرٌ (گرځيدل) دوه قسمه دي اول گرځيدل په خپو (قدمونو) سره دويم په معلومولو او لوستلو د واقعاتو د هغوي سره.

هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَهُدًى

دا (قرآن) وضاحت دے دَ پاره دَ خلقو او لار ښوونکے دے (په دليلونو سره)

وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۳۸﴾

او نصيحت دے دَ پاره دَ فائدے دَ متقيانو۔

وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَنْتُمُ

او سستي مهٔ کوئ (دَ جهاد ته) او مه بے حوصلے کيږئ (په تکاليفو) او تاسو

الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۳۹﴾

اوچت (شان والا) يئ که تاسو پوره ايمان والا يئ۔

فَانْظُرُوْا، ته مراد نظر کول دي دَ عبرت دَ پاره۔
كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ، كَيْفَ، کښ طريقے دَ هلاک او سبب دَ هغے دواړه مراد دي۔
س ۱۳۸:۔ په ديکښ ترغيب دے قرآن کريم ته روستو دَ ترهيب نه په حال دَ مکذبينو سره۔ يعنی دَ مکذبينو دَ حال نه بچکيدل لو دَ پاره قرآن کريم ته رجوع اوکړئ۔
هٰذَا، اشاره ده قرآن ته (حسن بصري وغيره) يا حال دَ تير شوے مکذبينو۔ او په دے آيت کښ دَ قرآن کريم درے صفات ذکر کړيدي۔ اول صفت۔ بَيَانٌ، يعنی وضاحت دَ لار دَ هدايت او دَ گمراهئ او دا عام دے ټولو خلقو ته دَ دے وجے نه ئے لِلنَّاسِ، اوئيلو۔ دويم دَ هُدًى، مقصد ته رسول په اهتداء حاصلولو سره۔ دريم صفت منع کول دَ لارے دَ گمراهئ نه چه په لفظ دَ وَمَوْعِظَةٌ، کښ مراد دے۔ او دا روستو دواړه خاص دي په متقيانو پورے دَ دے وجے نه ئے لِلْمُتَّقِيْنَ، اوئيلو۔ او دا صفات جامع دي دَ ټولو صفتونو دَ کمال دَ کتاب چه په تورو آيتونو کښ ذکر دي۔
س ۱۳۹:۔ دا عطف دے په معنیٰ دَ مخکښ آيت باندے يعنی

لِتَهْتَدُوْا اَوْ تَتَّعِظُوْا بِالْقُرْآنِ وَلَا تَهِنُوْا رهدایت او وعظ حاصل کړئ په قرآن سره او بستئ مه کوئ) او په دیکښې مقصد تسلی ورکول دی او ذکر دَ آدابو دے ۔ وَهن په اصل کښې ضعف او کمزورتیا دے په یو سبب سره لکه ر وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّیْ مریم ) او نرم والی ته هم وئیلے شي ۔ ابن عطیه وئیلی دی چه دا منع ده دَ وهن نه په حال دَ جنګ او خصومت کښې کله چه په حقه دی ۔ او ټول قوت په صرف کوی دَ حصول دَ حق دَپاره او دا خاشته خوئ دے ۔ او هر چه حدیث کښې راغلی دی اَلْمُؤْمِنُوْنَ هَيِّنُوْنَ لَيِّنُوْنَ ۔ مؤمنان په ضعف ښکاره کوونکی او نرمی کوونکی دی ۔ نو دا په حالت دَ رضا کښې یعنی دَ مؤمنانو په مینځ کښې یو بل سره دغه معامله ده ۔ او دلته دَ وهن نه مراد کمزورواله دَ ارادے ، عزیمت او دَ همت دے او بدلول دَ شجاعت او بهادرئ دی په بزدلئ سره او بدلول دَ یقین دی په شک سره او دَ امید په ناامیدئ سره او دا ټول منع دی ۔ ابن عاشور وئیلی دی چه وهن او حزن په اصل کښې دوه حالتونه دَ نفس دی رغیر اختیاری) خو دَ عقیدے دَ ناامیدئ نه پیدا کیږی نو په هغې کښې دَ دشمن سره مقابله او جهاد پریخودل مرتب شي ۔ نو دَ دے دواړو نه نهی په اصل کښې دَ دے دَ اسبابو نه نهی ده ۔ او دا رنګ مینه او محبت دَ دنیا او دَ مرګ نه یره کول دَ اسبابو دَ وهن نه دی لکه چه په حدیث دَ تَدَاعِيْ عَلَيْكُمُ الْاُمَمُ کښې راغلی دی ۔ او منع دَ وهن په سورة محمد ۳۵ کښې شته او دا رنګ عدم وهن دَ مخکنو صالحینو صفت دے لکه په سورة آلعمران ۱۴۶ کښې دی ۔ او دلته معنیٰ دا ده چه په جهاد کولو کښې کمزوروالے مه ښکاره کوئ په وجه دَ مصیبتونو سره چه تاسو ته په واقعه دَ احد کښې اورسیدل ،

وَلَا تَحْزَنُوْا ، حزن افسوس کول دی په فوت کیدلو ر وُرَکیدلو ) دَ یو څیز سره یعنی دَ بعضے ملګرو دَ شهید کیدلو په سبب او فوت کیدلو دَ غنیمت سره مه غمژن کیږئ ۔

وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ ، دَ علو نه مجازی علو مراد ده یعنی غالب کیدل

# إِنْ يَّمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ

که رسیدلے دے تاسو ته زخم (نو صبر کوئ) نو یقیناً

# مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهٗ ط

رسیدلے دے قوم کافرانو ته زخم دَ دے پشان

# وَتِلْكَ الْاَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ

او دا ورځې مونږ اړوو را اړوو په مینځ

په دشمنانو په دنیا کښې په جنګونو کښې او په دلیلونو کښې۔ او په آخرت کښې اوچتوالے په اعتبار دَ درجاتو سره دے په جنت کښې۔ قرطبی وئیلی دی چه دا فضیلت دَ دے امت دے چه الله تعالیٰ دا اسے خطاب موسیٰ علیه السلام ته کړے وو په (اِنَّكَ اَنْتَ الْاَعْلٰی (طه) سره چه هغه پیغمبر وو او دلته خطاب صحابه کرامو ته او نورَ دامت مسلمانانو ته دے او واؤ په وانتم الاعلون کښې دَ عطف دَپاره دے نو دا بشارت دے یا حال دے په طور دَ علت سره دَپاره دَ نهی دَوهن او حزن ته یعنی چه تاسو اوچت یئ نو دَ دے وجے ته وهن او حزن مه کوئ۔ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ، اِنْ ، شرطیه دے یا په معنیٰ دَ اِذْ ، سره دے یعنی دا علو دَ کامل ایمان دَ وجے نه دے۔ قرطبی وئیلی دی چه دَ دے وجے نه دَ احد دَ واقعے نه روستو صحابه کرامو ته ذلت او هزیمت نه دے رسیدلے۔ دَ ایمان نه مراد ایمان شرعی کامل دے چه هغه سبب دے دَ غلبے په کافرانو باندے یا دَ دینه مراد تصدیق دَ وعدے دَ الله تعالیٰ دے په نصرت او غلبے سره۔

النَّاسِ ج وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ

دَ خلقو کښ (دَ پارهٔ دَ حکمتونو) او دَ دے دَ پاره چه ښکاره کړی الله تعالیٰ هغه کسان

اٰمَنُوْا وَيَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَآءَ ط

چه ایمان ئے راوړے دے او جوړ کړی ستاسو نه شهیدان

وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۴۰﴾

او الله تعالیٰ نه خوښوی ظالمان -

ربط:- دَ دے آیت نه تر ۱۷۲ پورے دَ غزوه احد دَ حالاتو سره تعلق لری - په دے کښ جواب دے دَ منافقانو دَ شبهے چه هغوی وئیل که دا نبی صلی الله علیه وسلم په حق دین بااندے وے نو دوی به ولے شکست خوړلے وو په احد کښ نو په دے آیت کښ اول او دویمه جمله کښ تسلی ده مؤمنانو ته او دریم او څلورم جمله کښ دوه علتونه دَ هزیمت احد ذکر کوی -

اِنْ يَّمْسَسْكُمْ قَرْحٌ ، مراد دَ مَسْ نه اصابت (رسیدل) دی لیکن په لفظ دَ مس کښ اشاره ده قلت دَ مصیبت دَ دنیا ته -

قَرْحٌ ، راغب وئیلی دی چه په زور دَ قاف سره اثر دَ هغه زخم ته وئیلے شی چه دَ خارج نه پیدا شی (یعنی په توره غشی وغیره) او په پیښ دَ قاف سره هغه زخم دے چه دَ باطن دَ بدن نه پیدا شی لکه دانه ننګے -

دلته مراد معنیٰ حقیقی ده یعنی هغه زخمونه چه په احد کښ صحابه کرامو ته رسیدلے وو او په هغے سره بعضے شهیدان شول او بعضے ژوندی زخمیان وو یا مراد دَ دے نه معنیٰ مجازی ده یعنی هزیمت په احد کښ چه مشابه دَ زخم دَ بدن سره دے -

فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ ، دا دلیل دَ جزاء دے او جزا پټه ده یعنی فَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَلَا تَشُكُّوْا فِيْ نَصْرِ اللّٰهِ - (مه کمزوری کیږئ مه غمژن کیږئ ، شک مهٔ کوی په مدد دَ الله تعالیٰ کښ) - اَلْقَوْمَ ، مراد دَ دینه مشرکین مکه دی

چه په غزوه بدر کښې وژلے شوی وو۔
قَرْحٌ مِّثْلُهٗ، مراد دَدے نه غزوه بدر ده چه په هغے کښې اویا کافران او ژلے شول او اویا قید کړے شول۔ او پښان دَ ۱۶۵ دے یا مراد هغه کافران دي چه په احد کښې څه دپاسه شل کسان او وژلے شول۔ او مِثْلُهٗ ، مثلیت په عدد کښې مراد نه دے په نفس رسیدلو دَ زخم او دَ مرګ کښې مراد دے۔
وَتِلْكَ الْاَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ ، دا جمله هم تسلی ده مؤمنانو ته یعنی هزیمت دَ احد عقوبت نه دے بلکه دے ته مُدَاوَلَةَ دَ ایام و تیلے شي۔
دَ تِلْكَ الْاَيَّامُ کښې اشاره ده یوم دَ بدر او یوم دَ احد ته چه په مخکښې جمله کښې هغے ته اشاره اوشوه۔ مُداولة ، نقل دَ څیز دَ یو نه بل ته دا رنګ تیروار راتلل دی او دلته مراد دَ مداولے دَ ایام نه دا دے چه همیشه په یو حال باندے نه دی بلکه کله خوشحالی او کله غم۔ کله تکلیف او کله آرام یعنی په بدر کښې سختی راوستله په کافرانو باندے نو په احد کښې سختی راوستله په مؤمنانو باندے۔ هغه اول عقاب دے او دویم تادیب او سبب دَ کفارے دَ ګناهونو دے۔
وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ، دا اول علت دے۔ واو، دَ پاره دَ عطف دے په پټ معطوف علیه باندے چه هغه پټ معطوف معلول دے دَ پاره دَ نُدَاوِلُهَا۔ یعنی لِتَکُوْنَ کَیْتَ وَ کَیْتَ مِنَ الْحِکَمِ وَلِيَعْلَمَ ۔ یا دلته فعل پټ دے دَ واو نه روستو یعنی فَعَلَ ذٰلِكَ لِيَعْلَمَ ۔ ابوحیان و تیلی دی چه دا طریقه مختصره او غوره ده او ابن عطیه هم غوره کړے ده۔
سوال :- مذهب دَ اهل سنت (سلف صالحینو) دا دے چه الله تعالیٰ عالم دے په ټولو کلیاتو او جزئیاتو باندے مخکښې دَ وجود دَ هغے نه لکه چه آیاتو نه دَ اثبات دَ علم دَ الله تعالیٰ په دے باندے دلالت کوی او دلته فعل مضارع دلالت کوی۔ چه علم دَ الله تعالیٰ روستو دَ واقعاتو نه پیدا کیږی او داسے

آیا تونه نور هم شته دے لکه روستو ۱۴۲ او کهف ۱۲، بقره ۱۴۳، سورة عنکبوت ۳، او سورة محمد ۳۱ ؟
جواب :- هر کله چه په صریح نصوصو سره علم دَ الله تعالیٰ په هر کلی او جزئی باندے مخکښ دَ پیدائش دَ هغے نه ثابت دے نو په دے آیاتو کښ تاویلات دی چه دَ سلف صالحینو نه نقل دی چه دا اطلاق دَ علم دے په لازم دَ هغے باندے چه ظهور او تمیز دے یعنی چه ظاهر کړی او جدا کړی الله تعالیٰ. ابن عطیه وئیلی دی چه ښکاره کړی په وجود کښ ایمان دَ هغه چا چه مخکښ هغه ته معلومه وه چه دوی به ایمان راوړی نور تاویلات دَ مفسرینو دے معنی ته راجع دی. بیا دلته علم په معنی دَ معرفت دے چه یو مفعول غواړی او الذین آمنوا نه ایمان کامل مراد دے یا علم پخپله معنیٰ دے او دویم مفعول پټ دے یعنی اَلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مُتَمَیِّزِیْنَ بِسَبَبِ صَبْرِهِمْ وَ ثَبَاتِهِمْ عَلَی الْاِیْمَانِ مِنَ الْمُنَافِقِیْنَ - یعنی چه ښکاره کړی الله تعالیٰ صبرناک او پاخه مؤمنانو لره دَ منافقانو نه۔

وَ یَتَّخِذَ مِنْکُمْ شُهَدَآءَ ، دا دویم علت دے مراد دَدینه شهادت فی سبیل الله دے لکه چه په احد کښ صحابه کرام شهیدان شو او دا ډیر لوے کرامت او فضیلت دے۔ صاحب اللباب وئیلی دی چه قتل کړے شوو ته دَ شهداء وئیلو څلور وجے دی۔
اوله وجه دا ده چه ارواح ئے دارالسلام ته حاضر شوی دی۔
دویمه وجه، الله تعالیٰ او ملائکو شهادت کړے دے دَ دوی دَپاره په جنت سره نو شهید په معنیٰ دَ مشهود دے۔ دریمه وجه، دوی به قیامت کښ دَ انبیاء علیه السلام او صدیقینو سره شهادت کوی په خلقو باندے۔ څلورمه وجه دا ده چه دوی شهیدان شی نو سمدستی جنت ته حاضر کړے شی او دا اولے وجے ته نزدے ده۔

وَ اللّٰهُ لَا یُحِبُّ الظّٰلِمِیْنَ ، دا جمله معترضه جواب دَ سوال دے۔ سوال دا دے چه په احد کښ کافرانو ته الله تعالیٰ غلبه ورکړه

وَلِيُمَحِّصَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

او د دې دپاره چه پاک کړي الله تعالیٰ ایمان والا

وَيَمْحَقَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۴۱﴾

او ختم کړي کافران -

نو دا خو دلالت کوي په محبت باندې حاصل جواب دَ هغې هغه حکمتونه دي چه ذکر شول دا په محبت باندې دلالت نه کوي نو مراد دَ ظٰلِمِيْنَ نه مشرکان دي يا مراد دَ دوي نه منافقان دي چه هغوي دَ احد نه واپس راغلل ځکه چه په هغوي کښې صلاحيت دَ دې خبرې نه وو چه دَ هغوي نه شهيدان جوړ کړي -

سل۱۴۱:- په دې کښې ئې دوه علتونه نور ذکر کړيدي -

وَلِيُمَحِّصَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ، تمحيص ، پاکول دَ يو څيز دي دَ خيرې او دَ عيب نه او فرق په مينځ دَ محص او فحص کښې دا دې چه محص پاکول دي دَ هغه څيز نه چه متصل وي او فحص پاکول دي دَ هغه څيز نه چه مخلوط وي او منفصل وي - نو دلته مراد پاکول دي دَ ګناهونو نه يا مراد دَ دينه ابتلاء او امتحان دې -

وَيَمْحَقَ الْكٰفِرِيْنَ ، محق په لغت کښې نقصان او اهلاک (يعني يو څيز دَ بيخه لرې کول) چه هغې ته استيصال وئيلې کيږي - او دا دواړه علتونه دَ دې دجې نه جمع کړل چه دوي شريک دي په معنیٰ دَ ازاله کښې ليکن په محص کښې ازاله دَ آثارو ده او په محق کښې ازاله دَ ذات دَ څيز ده - او دَ دې دواړو تعلق دَ نُدَاوِلُهَا سره دا دې چه کله مداوله په مؤمنانو باندې وي يعني مغلوب شي نو محص دَ ګناهونو دَ مؤمنانو به راشي او کله چه مداوله په کافرانو باندې راشي يعني هغوي مغلوب شي نو محق دَ کافرانو به راشي - او مراد دَ الکافرين نه هغه دي چه په جنګ دَ احد کښې شريک وو ايمان ئې قبول نه کړو نو هغوي ټول هلاک کړې شو -

أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ

آیا گمان کوئ تاسو چه داخل به شئ جنت ته

وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا

او تر اوسه پورے نه دی ښکاره کړی الله تعالیٰ مجاهدین

مِنْكُمْ وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ ﴿۱۴۲﴾

ستاسو نه او نه دی ښکاره کړی صبر ناکو لره۔

۱۴۲:۔ دا هم علت دے لیکن دا ئے په جدا طریقے سره ذکر کړو ځکه چه حصول دَ جنت اعلیٰ مقصد دے۔
أَمْ ، په معنیٰ دَ بَلْ سرّه دے۔ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ ، مراد دَ دخول نه په دخول اول سره یا په غیر دَ مشقتونو نه۔
وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ ، لَمَّا ، په هغه نفی کښ استعمالیږی چه تر زمانه حال پورے وی او امید ئے کیدیشی په راتلونکی وخت کښ او دا قول دَ سیبویه دے او نفی دَ علم دَ الله تعالیٰ کنایه وی دَ نفی وجود دَ څیز نه یا یَعْلَمِ په معنیٰ دَ یظهر او یمیز سره دے۔ او خطاب په دیکښ هغه کسانو ته دے چه په غزوه احد کښ دَ میدان جنګ نه ګرځیدلے وو نو ګویا که دَ دوی گمان وو چه په غیر دَ ادا کولو دَ فریضے دَ جهاد او صبر نه به جنت کښ داخل شو۔
وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ ، په دیکښ اَنْ پټ دے نو جمع کول دَ جهاد او دَ صبر کولو مراد دی الصَّابِرِينَ ئے په صیغه دَ اسم سره ذکر کړو اشاره ده چه صبر همیشه ضروری دے۔ او جَاهَدُوا ئے په فعل سره ذکر کړو ځکه چه جهاد (قتال) کله کله وی۔

وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ

او یقینًا آرمان کولو تاسو دَ شهادت

مِنْ قَبْلِ اَنْ تَلْقَوْهُ ص فَقَدْ

مخکښې دَ مخامخ کیدلو دَ هغې نه نو یقینًا

رَاَيْتُمُوْهُ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿۱۴۳﴾ ع

او لیدلو تاسو هغه او تاسو کتل۔

ربط ۱۴۳:۔ په دے آیت کښې هم ذکر دَ یو علت دے یعنی تاسو شهادت طلب کوو نو هغه تاسو ته حاصل شو۔

وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ: په حدیث سره ثابت ده چه کوم صحابه بدر ته نه وو حاضر شوے او دَ شهادت فی سبیل الله فضیلتونه ئے اوریدلے وو نو هغوی تمنا دَ شهادت اوکړله نو سبب دَ هغې غزوه احد جوړه شوله نو بعضې کسانو خو ډیر شجاعت اوکړو او شهیدان شول لکه انس بن نضر رضی الله عنه او بعضې دَ میدان جنګ نه واپس شول نو په دے آیت کښې دواړه ډلو ته خطاب دے په طریقه دَ تغلیب سره یعنی شهیدان هم مخاطب شول حکمًا او ژوندی کسان مخاطب شول حقیقتًا او داداولے ډلے دَ پاره تسلی شوه او دویمے ډلے دَ پاره زورنه ده۔

سوال:۔ په حدیث صحیح سره ثابت ده چه تمنیٰ کول دَ مرګ منع ده که په زړه کښې وی او که په ژبه وی؟

جواب ۱:۔ دلته مراد دَ موت نه شهادت دے چه بنا دے په صبر او استقامت دَ زړه او په جهاد باندے (قرطبی) او تمنا دَ شهادت منع نه ده۔

جواب ۲:۔ مراد دَ دے نه سبب دَ مرګ دے چه جهاد دے (اللباب)۔

مِنْ قَبْلِ اَنْ تَلْقَوْهُ، ضمیر راجع دے موت ته یا راجع دے دشمن ته ځکه چه لقاء په مینځ دَ دوه کسانو کښې استعمالیږی۔

وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ج قَدْ

او نه دے محمد (صلی الله علیه وسلم) مگر رسول دے ، یقینًا

خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ط

تیرشوي دي مخکښ دَ هغه نه رسولان

اَفَاۡئِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ

آیا نو که دے وفات شو یا أوژلے شو اوړئ به تاسو

عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ ط وَمَنْ يَّنْقَلِبْ

په پوندو خپلو باندے ، او څوک چه واوړیدلو

عَلٰى عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَّضُرَّ اللّٰهَ

په پوندو خپلو باندے نو هیچرے ضرر نشي ورکولے الله تعالیٰ ته

فَقَدْ رَاَيْتُمُوْهُ ، دلته رویت دَ سترګو مراد دے نو یو مفعول غواړي یا رویت په معنیٰ دَ علم سره دے نو دویم مفعول پټ دے یعنی حاضرًا او مراددَ دے ته رویت دَ سبب دَ مرګ دے چه هغه جهاد دے۔

وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ، دا خفش نه نقل دی چه دا جمله په طور دَ تاکید ده یعنی مراد دَ رویت نه په مخکښ جمله کښ دَ سترګو لیدل مراد دی نو مفعول دَ دے هم (سبب) موت دے۔

او زجاج وئیلي دي چه مراد دَ دے تاکید نه دا دے چه ستاسو په سترګو کښ هیڅ مرض او علت نه وو - او ابن الانباری وئیلي دي چه دَ رویت نه مراد مخامخ کیدل دي او نظر نه مراد په سترګو لیدل دي یا مراد دا دے چه تاسو نظر کوو نبي صلی الله علیه وسلم او شهیدانو ته۔

# شَيْـًٔا ۗ وَسَيَجْزِى اللّٰهُ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۴﴾

| هیڅ ځبز | او زر دے چه بدله به ورکړی الله تعالیٰ ثابت قدمو ته ۔ |
|---|---|

ﺳﻜﻼ ۱۔ ربط علا ، مخکښ دوه آیاتونو کښ زجرونه وو په مختلف اسبابو سره اول سبب ترک دَجهاد او دَ صبر دویم سبب تمنا دَ شهادت نو په دے آیت کښ دریم سبب ذکر کوی چه هغه دَ میدان نه تلل په سبب دَ آوریدلو دَخبر دَ مرګ دَنبی صلی الله علیه وسلم ۔

ربط علا ۲۔ مخکښ آیت کښ موت دَ صحابه کرامو ذکر شو نو دے آیت کښ ذکر کوی چه دغه موت په نبی صلی الله علیه وسلم باندے هم راځی نو دَ هغه دین به نه پریږدئ ۔

دَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ، مفسرینو لیکلی دی چه په واقعه دَ احد کښ عبد الله بن قمیئه کافر رسول الله صلی الله علیه وسلم په ګټے سره اویشتلو نو دَ هغه سر او مخ زخمی شول او رباعی غاښ ئے شهید شو نو پرېوتلو او صحابه ترینه لاړه بیا هغه دَ طلحه رضی الله عنه دَپاسه قدم کیخودلو او ګټ ته اوختلو نو عبد الله بن قمیئه بیا اراده اوکړه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم لره قتل کړی لیکن مصعب رضی الله عنه دَ هغه مخے ته اودریدلو تر دے چه شهید شو نو ابن قمیئه آواز اوکړو (یا ابلیس آواز اوکړو) چه محمد صلی الله علیه وسلم قتل کړے شوے دے نو صحابه ټول خواره واره شول نو رسول الله صلی الله علیه وسلم آواز ورکړو اِلَیَّ عِبَادَ الله (ما ته راشئ اے بندګانو دَ الله) نو دَ دے په باره کښ دا آیت نازل شو۔ نو په دے جمله کښ ردکوی دَ دوی دَګمان چه په نبی صلی الله علیه وسلم باندے مرګ نه راځی او په دے سره ازاله کوی دَ هغه هیبت چه په صحابه کرامو باندے راغلی وو په سبب دَ آوریدلو دَ آواز دَ مرګ دَ هغه ۔

وَمَا ، مَا نافیه ده ۔ مُحَمَّدٌ ، دا نوم (علم) دَ رسول الله

صلی الله علیه وسلم دے حوئے دَعبد الله او هغه حوئے دَ
عبد المطلب، نیکه ورله دا نوم کیخودلے وو چا ترینه تپوس
اوکړو چه ستاسو په مشرانو کښ دا نوم دَ هیچا نه وو دا دے
ولے کیخودلو هغه اُوئیل چه زما امید دے چه خلق به دَ ده
صفتونه کوی او دا وزن محمد او تحمید په کثرت حمد دَ ده
باندے دلالت کوی یعنی په مخلوق کښ دے دَ کمال بشریت
دَ صفاتو حقدار دے۔ اهل لغت وئیلی دی چه هر څوک چه
جامع دَ صفاتو دَ خیر وی (په مخلوق) کښ نو هغه ته محمد
وئیلے شی (اللباب)۔

اِلَّا رَسُوْلٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ، دا جمله یا صفت
دے دَ رسول دَپاره یا جمله مستانفه ده بنا په اول باندے
دیته قصر قلب وئیلے شی مقصد دا دے چه دا خیال څوک
کوی چه دا رسول چه قتل شی یا مړ شی نو دَ ده ملت به
هم ختم شی او دا خیال دَ منافقانو وو نو الله تعالیٰ اوفرمائیل
چه دے دا سے رسول دے چه دَ ده نه مخکښ رسولان
تیر شویدی او دَ هغوی ملتونه ختم شوی نه دی نو دَ ده
په مرګ او قتل سره هم دَ ده ملت نه ختمیږی۔ او بنا
دویم احتمال (جمله مستانفه) شی نو دا قصر افراد دے
یعنی که څوک دا خیال اوکړی چه رسول دے نو دَ قتل
او دَ مرګ نه به بچ وی نو الله تعالیٰ اوفرمائیل چه دے
صرف رسول دے الله نه دے چه دَ مرګ یا قتل نه بچ
وی او جمله مستانفه په طریقه استدلال ده چه دَ ده نه
مخکښ رسولان تیر شویدی څوک مړه شوی دی څوک
قتل شویدی۔

اَفَاۡئِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلٰۤی اَعْقَابِكُمْ، همزه،
دَپاره دَ استفهام انکاری دے او فاء، دَ پاره دَعطف ده
په پټه جمله باندے یعنی اَتُؤْمِنُوْنَ بِهٖ مُدَّةَ حَیَاتِهٖ
فَاِنْ مَّاتَ اِرْتَدَدْتُمْ (آیا تاسو په ده باندے په حال دَ

ژوند دَ دہ کبن ایمان راوړے اوچه مړشی یا قتل کړے شی نو بیا به مرتد کیږئ )۔
اِنْقِلَابِ عَلَى الْاَعْقَابْ ، پسے شا تللو ته وئیلے شی او دا کنایه ده دَ مرتد کیدلو نه یا دَ تختیدلو نه شا طرف ته۔
سوال :- صحابه کرام خو مرتد شوے نه دی نو دا لفظئے ولے اوئیل ؟
جواب ۱ :- همزه دَ انکار او اِنْ دلالت کوی چه ارتداد واقع شوے نه دے لیکن په طور دَ زورنے سره وئیلی دی۔
جواب ۲ :- مراد دَ دے نه دَ میدان جنگ نه تختیدل دی او دا خو په احد کبن واقع شویدی۔
سوال :- په آیاتونو کبن دَ هغه تموت ذکر دے نو معلومه شوه چه قتل په هغه باندے نه راځئ نو قتل ئے ولے ذکر کړو ؟
جواب :- دا قضیه شرطیه ده وجود دَ جزئین نه غواړی صرف صدق دَ ملازمے غواړی۔
سوال :- اَوْ قُتِلَ او دَ شک دَ پاره دے او په الله تعالیٰ باندے شک محال دے ؟
جواب :- دا اَوْ دَ پاره دَ شک نه دے بلکه دَ پاره دَ تسویه دَ امرینو دےیعنی په مرګ دَ هغه او قتل دواړو سره دَ هغه دین نه ختمیږی - او قتل ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو چه په واقعه دَ احد کبن دَ هغه دَ قتل کیدلو پروپیګنډه کړے شوے وه -
وَمَنْ يَّنْقَلِبْ عَلٰى عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَّضُرَّ اللّٰهَ شَيْئًا نکره په سیاق دَ نفی کبن ده دَ عموم دَ پاره ده یعنی هیڅ ضرر نه لږ او نه ډیر بلکه ضرر ورکوی ځان خپل ته چه خپل دنیا او آخرت ئے برباد کړو۔
وَسَيَجْزِي اللّٰهُ الشّٰكِرِيْنَ ، دلته مراد دَ شکر نه مضبوطوالے دے په دین باندے روستو دَ وفات دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه

(ابن عطیه) یعنی په وفات دَ نبي صلی الله علیه وسلم دَ دوی زړه کښ هیڅ شک شبه باقي نه پاتیکیږی۔ ابن جریر دَ علی رضی الله عنه روایت ذکر کړیں ے چه ابو بکر امین (امیر) دَ شاګردیتو دے او امین دَ الله تعالی دے په دلیل دَ واقعے دَ وفات دَ نبي صلی الله علیه وسلم سره چه روستو ذکر کیږی۔

فائده ۱:۔ دَ لته مفسر ینو حدیث دَ بخاری وغیره نقل کړے دے حاصل ئې دا دے چه هرکله نبي صلی الله علیه وسلم وفات شو نو بعضے صحابه کرامو لکه عمر رضی الله عنه دا نه منله او وئیل ئې چه هغه مړ شوے نه دے (او قرطبي وئیلی چه عثمان رضی الله عنه ژبه بنده شوه او علی رضی الله پټ شو) او ابوبکر رضی الله عنه دَ سنح (دا دَ مدینې نه بهر ځائے وو په هغے کښ دَ ده بانړه وه) نه راغے نو اختلاف ئې اولیدلو نوکور دَ عائشه رضی الله عنها ته داخل شو نو دَ نبي صلی الله علیه وسلم دَ مخ مبارک نه ئې څادر لرے کړو یقین ئې راغے چه مړ دے نو مخ ئې ورله ښکل کړو او په ژړا شو او وئیل چه الله تعالی په تا باندے دوه کرته مرګ نه راولی په مقرر مرګ سره نه وفات شوے ئې۔ بیا مسجد نبوی ته داخل شو منبر ته اوختلو او وئیل ئې چه۔ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللهَ فَإِنَّ اللهَ حَيٌّ لَا يَمُوْتُ وَمَنْ كَانَ يَعْبُدُ مُحَمَّدًا فَإِنَّ مُحَمَّدًا قَدْ مَاتَ (چا چه دَ الله تعالی بندګی کوله نو الله تعالی ژوندے دے مرګ ور باندے نه راځي او چا چه دَ محمد صلی الله علیه وسلم بندګی کوله (بالفرض) نو هغه خو مړ شوے دے) او بیا ئې دا آیت کریمه اولوستلو نو عمر رضی الله عنه اوئیل ګویا چه دا آیت ما نه وو لوستلے مګر په دغه ورځ کښ او ټول خلق دَ مسجد نه او دا آیت ئې په کوڅو دَ مدینے کښ لوستلو (یعنی اوس دَ ټولو توجه دے خبرے ته پیدا شوه اګر چه آیت دوی دَ مخکښ نه هم لوستلو معلومه شوه چه کله یو انسان

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ

او نه ده ممکن یو نفس لره چه مړ شي

إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ كِتَابًا مُّؤَجَّلًا ط

بغیر دَ اجازت دَ الله تعالیٰ نه دا لیکل دي مقرر،

وَمَنْ يُرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا

او څوک چه غواړي (په عمل خپل) بدله دَ دنیا

یو آیت یا حدیث یا کتاب کښې مسئله لولي لیکن توجه ئے ورته نه وي نو ځکه عمل پرے نه کوي۔

نو دا آیت او حدیث او ستدلال ابو بکر رضی الله عنه صریح دلیل دے په مرګ دَ نبي صلی الله علیه وسلم باندے نو څوک چه دَ هغه دَ موت نه انکار کوي نو هغه دَ دے آیت او حدیث او دَ اجماع دَ صحابو نه منکر دے۔

فائده ۲:۔ مرزا قادیاني دَ قد خلت من قبله الرسل نه دلیل نیولے دے چه خلت په معنیٰ دَ مرګ باندے اخلی او الف لام الرسل کښې دَ استغراق دَ پاره دي نو معلومه شوه چه عیسیٰ علیه السلام مړ دے؟

جواب:۔ دا دے چه الف لام دَ استغراق دَ پاره دي لیکن خلت په معنیٰ دَ تیریدلو دے او تیریدل عام دي که په مرګ سره وي او که صرف دَ زمانے په لحاظ سره او که مرګ مراد وے نو الله تعالیٰ به لفظ دَ ماتت وئیلے وے۔ او دَ خلا، تفسیر په سورة بقره ۱۳۴ کښې تیر شویدے چه په قرآن کریم او حدیث کښې هیڅ ځائے په معنیٰ دَ مرګ سره نه دے راغلے او که بالفرض دَ مرګ معنیٰ مراد شي نو عیسیٰ علیه السلام په وجه دَ نورو قطعي دلیلو نو سره (چه په دے سورة کښې ځکښې ذکر شویدي) خاص کړے شویدے هم دَ خضر او الیاس علیهما السلام دَ تخصیص دَ پاره صحیح دلیل نشته۔

نُؤْتِهٖ مِنْهَا ۚ وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ

| موږ ورکوو هغه ته دَ هغې نه او څوک چه اوغواړي بدله |
|---|

الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا ؕ

| دَ آخرت (په عمل خپل سره) ورپه کړو هغه ته دَ هغې نه |
|---|

وَسَنَجْزِي الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۵﴾

| او ځا مخا بدله به ورکړو شکر کناړو ته (چه دَ آخرت په نیت عمل کوي) |
|---|

۱۴۵:- ربط له :- هرکله چه تیر شوي آیت کښ تختیدل دَ میدان جهاد نه ذکر شول نو اوس تیزي ورکوي په جهاد باندے چه دَ مرګ خو په نیټه دے نو دَ مرګ دَ ویرے نه تیختنه مه کوئ۔

ربط ۲ :- دا رنګ مخکښ مرګ دَ نبي صلی الله علیه وسلم ته اشاره اوکړه نو اوس تسلي ورکوي امت ته چه په نبي صلی الله علیه وسلم باندے وفات راځي پشان دَ نورو نفسونو په اذن دَ الله تعالی په مقرر نیټے سره نو تاسو دین مه پریږدئ۔ او دا تعلیم دَ ادب دے چه مرګ دِ په نیټه باندے ګنړي۔

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ ، خبر مقدم دے ۔ اَنْ تَمُوْتَ ، دَ هغې اسم مؤخر (روستو) دے او مراد دَ دینه امتناع عادتي یا عقلي ده چه مرګ دَ نفسونو ممتنع او محال دے بغیر دَ اذن دَ الله تعالی او مراد دَ نفس نه عام دے نفس دَ نبي صلی الله علیه وسلم ته هم شامل دے ۔ اَنْ تَمُوْتَ ، موت نه عام مراد دے که خپل مرګ وي او که قتل وي ځکه څوک چه قتل کړیشي نو هغه هم په خپله نیټه باندے مړ شوے دے۔

اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ، مراد دَ اذن نه مشیئت (اراده) دَ الله تعالی ده یا اذن ورکول دَ الله تعالی دی ملك الموت لره په قبض دَ روح باندے۔

كِتٰبًا مُّؤَجَّلًا ، کتاب په معنیٰ دَ قضاء یا په معنیٰ دَ لیکلے

شوی په لوح محفوظ کښ کتابًا مفعول مطلق دے دَ پټ فعل دَ پاره کتٰب الله کتابًا مؤجلًا - مقرر شویدی په نیته مُعَیَنه سره چه نه مخکښ کیږی او نه روستو کیږی -

وَمَنْ یُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْیَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا ، په دیکښ اشاره ده تقسیم دَ خلقو ته په اعتبار دَ عملونو دَ هغوی په ژوند دنیوی کښ او داخل دی په کښ هغه کسان چه دَ احد په ورځ کښ بعضو دَ غنیمت اراده کړے وه نو په هغې پاندے مشغول شول او بعضے کسانو دَ غنیمت اراده نه ده کړے او کلک پاتے شول په خپل ځائے پاندے نو شهیدان شول - دَ یُرِدْ ، متعلق پټ دے یعنی بِعَمَلِهٖ که عمل دَ دین وی لکه عبادت او جهاد او که عمل دنیوی وی یعنی کسب دَ دنیا تجارت وغیره او یُرِدْ کښ نیت مراد دے یعنی چه هر عمل سره چه دَ دنیا دَ ګټلو نیت کړے وی نو دَ دنیا عوض ورته ملاویږی یعنی په جهاد کښ غنیمت ملاوُشی یا شهرت ملاو شی چه دا غازی او مجاهد دے او په تجارت سره وارثانو ته نو مال ملاوشی لیکن دَ آخرت ثواب ورته نه ملاویږی په دلیل دَ سورهٔ هود ۱۶ ، شوری ۲۰ ، اسراء ۱۸ -

وَمَنْ یُّرِدْ ثَوَابَ الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا ، دلته هم بعمله پټ دے او مراد ترینه دینی عمل دے لکه جهاد تلاوت دَ قرآن او نور عبادات - دا سے په سورة اسراء ۱۹ کښ او سورة شوریٰ ۲۰ کښ دی - او په دے سره دَ عوض دَ دنیا نه محروم نه کرځی او هغې ته اشاره ده په دے قول سره چه وَسَنَجْزِی الشّٰکِرِیْنَ ، دلته مراد دَ شکر نه عمل کول دی په نیت دَ آخرت سره او سَنَجْزِی کښ جزاء دَ دنیا آخرت دواړه مراد ده - مخکښ آیت کښ نسبت دَ جزاء الله تعالیٰ په خاص نوم دَ هغه سره وو په هغې کښ ډیر عظمت او لذت دَ جزاء ته اشاره وه او هغه دَ ابو بکر رضی الله عنه مقام وو او دلته نسبت په طریقه دَ متکلم سره دے عظمت

وَكَأَيِّنْ مِّنْ نَّبِيٍّ قٰتَلَ ۙ

او ډیر پیغمبرانو جنګونه کړیدي

مَعَهٗ رِبِّيُّوْنَ كَثِيْرٌ ۚ فَمَا

دَ هغوي په ملګرتیا کښې ډیر د خلقو نو سستي او نکړه

وَهَنُوْا لِمَآ اَصَابَهُمْ

هغوي ردَ جهاد کولو نه) دَ وجې دَ تکلیفونو نه چه اورسیدل هغوي ته

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَمَا ضَعُفُوْا

په لار دَ الله تعالیٰ کښې او نه کمزوري شوي وو په مقابله دَ دشمن کښې

وَمَا اسْتَكَانُوْا ۗ وَاللّٰهُ يُحِبُّ

او نه تابع شوي وو دشمن ته او الله تعالیٰ مینه کوي

الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۴۶﴾

دَ صبرناکو سره۔

بانده دلالت کوي لیکن لذت دَ مخکښې نه کمې درجې والادے ځکه چه دَ عامو صحابه کرامو مجاهدینو یا عامو مؤمنانو مقام ته اشاره ده۔

۱۴۶:۔ په دیکښې هم زورنه ده اصحاب احد ته په ګرځیدلو دَ هغوي دَ میدان جهاد نه چه داهم یو قسم وهن او ضعف وو او تیزي ورکول دي په اتباع دَ مخکنو انبیاؤ علیهم السلام او مجاهدینو سره په ترک دَ وهن او ضعف او استکانت سره او پدیکښې نور آداب ذکر کوي دَ پاره دَ دفع دَ هزیمت۔

وَكَأَيِّنْ مِّنْ نَّبِيٍّ ، لفظ دَ کائن په اصل کښې مرکب دے دَ کاف تشبیه او اَيٌّ نه او په دے ترکیب کښې معنیٰ دَ کثرت مراد ده پشان دَ کم خبریه۔ او په وقف کښې دا نون حذف کول پکار وو ځکه چه دا تنوین دے لیکن صحابه کرامو

دا ليكلې وو په مصحف عثمان کښ او په نيز دَ ابوحيان دا مستقله کلمه ده وضع کړے شوے ده دَپاره دَ تکثير۔

قٰتَلَ مَعَهٗ رِبِّيُّوْنَ كَثِيْرٌ، په دے عبارت کښ ډير وجوه دی اول دا چه قاتل کښ ضمير راجع دے نبی ته يا کَاَيِّنْ ته کَاَيِّنْ مِنْ نَّبِيٍّ مبتدا ده او قاتل ئے خبر دے او معه ربيون جمله حاليه ده۔ دويم دا چه قاتل صفت دے دَ نبی دَپاره او معه ربيون خبر دے۔ دريم دا چه خبر پټ دے او قاتل صفت دَے دَ نبی دَ پاره کَاَيِّنْ مِنْ نَّبِيٍّ قَاتَلَ مَضٰی او معه ربيون حال دَے څلورم دا چه دَ قاتل فاعل ربيون دے او دا ټوله جمله خبر دے دَپاره دَ کاين۔ ليکن راجح په ديکښ اوله توجيه ده په قرينه دَ حال دَ احد سره چه په هغے کښ نبی صلی الله عليه وسلم په قتال کښ يواځے پاتے شوے وو او متاسب دے دَ اَفَاِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ سره او دا قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه طبری وغيره نقل کړيدے۔ ربيون، په ديکښ اقوال دی۔ اول دا جمع دَ رِبِّی ده منسوب دے رب ته او کسره دَ راء بناء په تغير دَ نسبت باندے ده دا قول دَ اخفش دے۔ دويم قول دا جمع دَ رُبَّةٌ ده په معنیٰ دَ جماعه سره بيا په دے کښ اقوال دی په روايت دَ ابن عباس رضی الله عنهما او مجاهد او عکرمه وغيره کښ جماعات کثيره دی او په روايت دَ حسن کښ علماء و اتقياء مراد دی او په قول دَ زيد کښ ربيون اتباع دی او ربانيون واليانو ته وئيلے شی او په قول دَ ابن مسعود رضی الله عنه کښ زرګونه خلق مراد دی۔ او معنیٰ دَ جملے دا ده چه ډير انبياؤ قتال کړيدے او دَ هغوی سره دَ هغوی ملګری باقی پاتے وو دَ ميدان جنګ نه تختيدلے نه وو نو تاسو هم دَ هغوی اقتداء اوکړئ۔

فَمَا وَهَنُوْا لِمَآ اَصَابَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ، وهن په معنیٰ دَ عجز او بزدلے سره دے په لِمَا، کښ مَا، موصوله يا مصدريه دے او مَا اَصَابَهُمْ، کښ اشاره ده قتل دَ نبی

وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ إِلَّآ
او نه وه وینا دَ دوی (دعا دَ دوی) مگر

أَنْ قَالُوا رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا
داچه وئیل یې اے ربه زموږ او بخښے موږ ته

ذُنُوبَنَا وَإِسْرَافَنَا فِىٓ أَمْرِنَا
گناهونه زموږ او زیاتے کول زموږ په کار دَ دین زموږ کښې

وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وَانصُرْنَا
او کلک کړے قدمونه زموږ او غلبه راکړے موږ له

عَلَى الْقَوْمِ الْكَٰفِرِينَ ﴿۱۴۷﴾
په قوم کافرانو باندے۔

او دَ ملګرو دَ هغوی ته۔

وَمَا ضَعُفُوا، ضعف، په اصل کښې نقصان دَ قوت ته وئیلے شی او په ضعف دَ رای او عقل کښې هم استعمالیږی دلته مراد کمزوری دَ همت ده چه دَ هغے وجے نه قتال پریږدی او سبب یې زخمی کیدل دَ ملګرو دی۔

وَمَا اسْتَكَانُوا، مراد دَ دینه عاجزی کول او تابع کیدل دَ دشمن دی په طریقه دَ صلح کولو یا مرتد کیدلو سره۔ او په دے آیت کښې درے درجے ذکر کړیدی په طریقه دَ تنزل سره دَ اعلیٰ نه ادنیٰ ته ځکه چه وهن پریښودل دَ جهاد دی دَ وجے دَ غلبے دَ خوف دَ دشمن نه او دَ محبت دَ دنیا نه او ضعف پریښودل دَ جهاد دی دَ وجے دَ کمزورے دَ ایمان او شکوکو شبهاتو پیدا کیدلو نه په زړه کښې او استکانة تابع کیدل دَ دشمنانو او دَ هغوی دین ته او رېدل دی یعنی مجاهدینو لره دَ دے درے واړه حالاتو نه اجتناب کول فرض دی او علاج دَ دے دَ پاره صبر دے

نو دے پسے ئے ذکر کړو۔

وَاللّٰهُ يُحِبُّ الصّٰبِرِيْنَ ، يعنی دغه درے حالاتو ته بچ کيدل صبر دے يا صبر کول په هر تکليف دَ جهاد باندے دَ دغه درے امورو ته سبب دَ حفاظت دے۔

۱۴۷ :- په دے آيت کښ هم صفت دَ ربيون ذکرکوی چه سره دَ ما قبل صفتونو ته دوی تضرع او اقرار دَ خپل قصور الله تعالیٰ پورے خاص کړيدی او په ديکښ تعليم دَ ادب دے ټولو مجاهدينو ته په لوستو ل دَ داسے دعا سره۔

وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوْا ، قَوْلَهُمْ خبر مقدم دے او اِلَّآ اَنْ قَالُوْا ئے اسم مؤخر دے مراد دَ قول اول ته دعا کول دی۔ او دا حصر اضافی دے يعنی هغوی په داسے وخت کښ ستاسو پشان مضطرب اقوال وئيلی ته دی۔ چه تاسو بعضو وئيل چه راځئ چه دَ ابوسفيان نه امن طلب کړو او بعضو وئيل چه راځئ دَ خپل دين ته واپس شو او بعضو وئيل چه مونږ مجبورے سره جنګ له راغلی يو او بعضو وئيل چه الله ته التجاء کوئ۔

رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَاِسْرَافَنَا فِیْٓ اَمْرِنَا ، ذُنُوْبَ ته مراد واړه ګناهونه دی او اِسْرَافِ ته مراد غټ ګناهونه دی يا ذنوب ته مراد عام ګناهونه دی او دَ اسراف ته دَ نبی دَ اطاعت نه تجاوز کول دی او دَ دے تخصيص ئے په دے مقام کښ دَ دے وجے نه اوکړو چه په احد کښ بعضے صحابه کرامو دَ نبی صلی الله عليه وسلم دَ يو امر نه خلاف کړے وو لکه چه روستو ذکر کيږی۔

وَثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ، هر کله چه ګناهونه سبب دَ سستی کولو او دَ ترک جهاد او بنديدو دَ نصرت الٰهيه وی نو دَ دے وجے نه دُعا دَ مغفرت ئے مقدم راوړه په دعا دَ تثبت او دَ نصرت باندے۔ قرطبی وئيلی دی چه په انسان باندے لازم دی چه هغه دعا ګانے استعمالوی چه په کتاب الله او سنت رسول الله صلی الله عليه وسلم کښ راغلی دی او نورے د پريږدی ځکه الله تعالیٰ هغه دعا ګانے چه خپل

فَاٰتٰهُمُ اللّٰهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا

نو ورکړه دوی ته، الله تعالیٰ بدله د دنیا

وَحُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ ؕ وَاللّٰهُ

او ښائسته بدله د آخرت، او الله تعالیٰ

يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۴۸﴾ ع

مینه کوی د ښائسته عمل کوونکو سره۔

نبی د پاره خوره کړے دی او کیفیات د دعاء ئے هم خود لے دی د هغه کیفیا تو مخالفت هم جائز نه دے۔

۱۴۸:۔ په دے آیت کښ قبولیت د دغه دعا ذکر دے هر کله چه د دوی په دعا کښ یو طلب د آخرت وو چه اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَ اِسْرَافَنَا، دے دویم طلب د امر د دنیا وو چه ثبت او نصرت دے نو په استجابت کښ دواړه ذکر شول لیکن په لف نشر غیر مرتب سره یعنی د دنیا ثواب ئے مخکښ ذکر کړو چه ثواب الدنیا دے او د آخرت ثواب ئے روستو ذکر کړو چه حسن ثواب الاخرة دے په اجابت کښ امور د دنیا مخکښ ذکر کړل چه دا په وجود کښ مخکښ دی او په دعا کښ امور د آخرت مخکښ ذکر کړے وو ځکه چه د ربیون په نیز آخرت اهم دے۔

فَاٰتٰهُمُ اللّٰهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا، ثَوَابَ الدُّنْيَا، کښ نصرت شکست د دشمن ښائسته نوم کټل او نور د ایمان په سینو کښ زیا تیدل داخل دی۔ فَاٰتٰهُمُ، فعل ماضی په معنیٰ د مضارع سره ده په طریقه د وعدے سره۔

وَحُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ، ثواب د آخرت ټول ښائسته دے د هغے سره حسن ذکر کړه او د دنیا د عوض سره تکلیف هم وی نو د هغے سره حسن نه دے ذکر کړے۔

فائده:۔ هر کله چه تیر شوے آیت کښ اراده ذکر وه

يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تُطِيْعُوا
اے ایمان والو که تاسو خبره اومنئ
الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَرُدُّوْكُمْ عَلٰٓى
دَ کافرانو واپس به اوګرځوي تاسو (دَایمان نه) په
اَعْقَابِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۱۴۹﴾
پوندو ستاسو بانديے نو شئ به تاوان والا۔

تو هلته ئې دَ ابتداء (وړکولو) سره مِنَ ذکر کړو چه په تبعیض باندے دلالت کوي او دلته خو مجاهده او تضرع او طلب ذکر دے نو دلته ئې مِنْ نه دے ذکر کړے۔
وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ، مراد دَ احسان هغه معنٰی ده چه په حدیث جبرئیل کښې ذکر ده چه عبادت دَ الله تعالٰی کوئ چه ګویا تاسو الله تعالٰی لره وینئ اوکه داسے نه وي نو دا عقیده ساتئ چه الله تعالٰی تاسو وینی او دیته اخلاص وئیلے شي نو دا شرط دے دَ قبولیت دَ هر عبادت او په هغے کښې دعا داخل ده۔
۱۴۹ : ربط : هر کله چه ترغیب ذکر شو اطاعت کولو دَ مجاهدینو ته چه خائسته صفات پکښې وو نو اوس تحذیر ورکوي دَ اطاعت دَ دشمنانو نه چه کافران دي او په دیکښې هم ادب ذکر کوي دَ پاره دَ دفع دَ هزیمت۔
يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تُطِيْعُوا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ، دا هر کافر ته عام دے خصوصاً هغه کافران او منافقان چه په وخت دَ غزوه احد کښې مؤمنانو ته ئې وئیل چه دا نبي په حقه نه دے ځکه چه په احد کښې کمزورے شو نو خپل دین ته واپس شئ۔ او په اعتبار دَ عموم سره چه دَ هیڅ کافر هیڅ خبره منل او دَ هغه اطاعت کول جائز نه دي۔ ابو حیان وئیلي دي چه په اجماع سره او په اشاره دَ نصوصو سره دَ دے نه (خودونکی دَ لارے) او خاوند دَ داسے رای چه مصلحت

بَلِ اللّٰهُ مَوْلٰكُمْ ۚ وَهُوَ

| بلکه | الله تعالیٰ | مولیٰ ستاسو دے | او | هغه |
|---|---|---|---|---|

خَيْرُ النّٰصِرِيْنَ ﴿۱۵۰﴾

| غوره دے دَ امدادیانو نه۔ |
|---|

پکښې ښکاره وی او ښځه کتابیه (منکوحه) چه مشوره دَ خیر ورکوی مستثنیٰ دی۔

يَرُدُّوْكُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ، مراد دَ دینه مرتد کیدل دی دَ دین اسلام نه۔

فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ، په دیکښې خسران دَ دنیا او آخرت دواړه داخل دی خسران دَ دنیا دَ د شمن تابعداری او هغه ته محتاج کیدل چه سبب دَ ذلت دَ دنیا دے او خسران دَ آخرت محروم کیدل دَ ثواب ابدی نه او داخلیدل په عذاب همیشه کښې - او په لفظ دَ انقلاب کښې اشاره ده چه په دین اسلام کښې عزت دَ دنیا او دَ آخرت دے هغه بالکل بدلیږی په کفر سره۔

ف۱۵۰:- په دیکښې تثبیت او تسلی ورکول دی او په لفظ دَ بَلِ اللّٰهُ کښې اعراض دے دَ مخکښې نه یعنی کافران په هیڅ حال کښې اهل دَ اطاعت نه دی ځکه چه په هغوی کښې صفت دَ ولایت نیشته صفت دَ ولایت په الله تعالیٰ پورے خاص دے۔

مَوْلٰكُمْ، په معنیٰ دَ ناصر او متولی دَ کارونو او حفاظت کوونکے دے۔

وَهُوَ خَيْرُ النّٰصِرِيْنَ، غوره والے په ډیر وجوهو سره دے اول دا چه دَ هغه په نصرت کښې دَ بل چا نصرت ته حاجت نیشته او دویم دَ هغه نصرت په دنیا او آخرت کښې دے۔ دریم دا چه دَ هغه علم او قدرت عام دے وخت دَ نصرت او په حاجت دَ انسان بانده پوره علم او قدرت لری۔

سَنُلۡقِیۡ فِیۡ قُلُوۡبِ الَّذِیۡنَ
په سبب دَ دے چه ځائے اچوو مونږ په زړونو دَ

کَفَرُوا الرُّعۡبَ بِمَاۤ اَشۡرَکُوۡا
کافرانو کښې هيبت په سبب دَ دے چه دوی برخه والا جوړ کړيدي

بِاللّٰهِ مَا لَمۡ یُنَزِّلۡ بِهٖ
دَ الله تعالیٰ سره هغه څوک چه الله تعالیٰ را لیږلے نه دے په شرکت دَ هغوی

سُلۡطٰنًا ۚ وَ مَاۡوٰىهُمُ النَّارُ ؕ
هيڅ دليل او ځائے دَ ورتللو دَ دوی اور دے

وَ بِئۡسَ مَثۡوَی الظّٰلِمِیۡنَ ﴿۱۵۱﴾
او ناکاره ځائے دَ اوسیدلو دَ مشرکانو دے۔

ف۱۵۱:۔ په دیکښې ذکر دَ یوے طریقے دَ نصرت الٰهی دے او دَ تنبیه دَ نصرت دَ پاره ئے صیغه دَ جمع متکلم را وړلے په سَنُلۡقِیۡ ، القاء ، په اصل کښې په اجسا دو کښې استعمالیږی او دلته مجاز دے دَ پیدا کولو نه په ډیروالی سره۔

الرُّعۡبَ ، په اصل کښې ډک والی ته وئیلے شی نو په عرف کښې ډیرے ویرے ته وئیلے شی چه زړه ترینه ډک شی۔ او دا دعده واقع شوه په درځ دَ احد کښې څکه چه سره دَ غلبے دَ کافرانو نه هغوی په غیر دَ څه سبب نه واپس شول او بیا ئے په نیمه لارے کښې اراده دَ دوباره حمله کولو اوکړه نو بیا هم اویریدل۔ دا رنګ دا وعده دَ راتلونکی وخت دَ پاره هم ده څکه چه روستو دَ واقعے دَ احد نه الله تعالیٰ کافران په هرجنګ کښې مغلوب کړیدی او دین اسلام الله تعالیٰ غالب کړیدے او بعضے علماؤ وئیلے دی چه اوس هم دَ هر مخالف دَ دین اسلام په زړه کښې یو قسم رعب موجود دے حال دَ کافرانو په دے باندے ګواه دے دَ دے وجے نه دَ دین اسلام دَ مغلوبیت دَ پاره هر وخت خپل کوشش ونه کوی۔

بِمَآ اَشْرَكُوْا بِاللّٰهِ ، باء ، سببيه ده او مَا ، مصدريه ده ۔ اشراك،
په هر قسم سره سبب دَ رعب دے ځکه چه مشرک دَ مخلوق
نه ويره کوی چه عاجز دی او دَ هغوی نه نصرت غواړی او دا
ئې لويه بے عقلی ده نو دَ مجاهدينو نه ضرور رعب لری۔
او دا رنګ مشرک دَ آخرت ثواب نه منی نو مرګ
دده په شکاره کيږی او دنيا غوره کوی نو دَ مجاهد دَ مقابلے
کولو نه ضرور ويره کوی۔
مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا دَ بِهٖ ، مضاف پټ دے باشراکه
وبعبادته ۔ سُلْطَان ، په معنیٰ دَ حجت او دَ برهان دے ۔ او دَ
نفی دَ انزال نه مراد نفی دَ حجت ده ليکن هر کله چه دَ اثبات
دَ عقيدے او دَ حکم دَپاره دليل منزله ضروری دے دَ دے
وجے نه نفی دَ نزول ئے کړيده ۔ قرطبی وئيلی دی چه معنیٰ
دا ده چه عبادت دَ اوثانو په هيڅ ملت دَ مللو شرعيو کښ
ثابت نه دے او دَ عقل نه هم خلاف دے۔
فائده ۱:۔ آلوسی وئيلی دی چه دا دلالت کوی چه قابل دَ اتباع
په باب دَ توحيد کښ برهان سماوی دے آرا او خواهشات باطله
نه هيڅ اعتبار نشته ۔ او ابوحيان وئيلی دی چه په دے کښ ابطال
دَ تقليد ته اشاره ده ځکه چه مقلد سره دليل نه وی ۔ او صاحب
اللباب وئيلی دی چه دا آيت دلالت کوی په فساد دَ تقليد باندے
ځکه هر کله چه په شرک باندے دليل نيشته نو ضرور باطل دے
نو دا رنګ هر قول چه په هغے باندے دليل نه وی نو باطل دے۔
ابو السعود او امام رازی هم داسے وئيلی دی حاصل ئے دا دے
چه دَ شرک دَ ابطال دَپاره علت عدم د دليل منزله دے نو
دَ دے علت دَ وجے نه تقليد هم باطل دے ځکه تقليد کښ هم
دليل منزله نه وی۔
فائده ۲:۔ قرآن کريم هر ځائے دَ شرک او دَ مشرکانو په
رد کښ عدم انزال دَ دليل ذکر کړيدے اشاره ده چه اعتبار
په دے باب کښ نازل کړے شوے (وحی جلی يا وحی خفی) دليل

وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللّٰهُ وَعْدَهٗٓ
او یقینًا پوره کړی دے تاسو سره الله تعالیٰ لوظ خپل

اِذْ تَحُسُّوْنَهُمْ بِاِذْنِهٖ ۚ حَتّٰٓى
کوم وخت چه وژل تاسو دوی لره په حکم دَ الله تعالیٰ تر هغې پورے

اِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ فِى
چه کله کمزوری شوئ تاسو او جګړه اوکړه تاسو په

الْاَمْرِ وَعَصَيْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ
حکم دَ پیغمبر کښ او خلاف مو اوکړو (دَ حکم دَ نبی نه) روستو

مَآ اَرٰىكُمْ مَّا تُحِبُّوْنَ ۭ مِنْكُمْ
دَ هغې نه چه اوخودل الله تعالیٰ تاسو ته هغه څه چه خوښوو تاسو، بعضے ستاسو نه

مَّنْ يُّرِيْدُ الدُّنْيَا وَمِنْكُمْ
هغه دی چه غوښتله یئ دنیا او بعضے ستاسو نه

لره دے۔ آیاتونه دادی: اعراف ۳۳، ۷، انعام ۸۱، حج ۷۱ نحم ۲۳، روم ۳۵، سبا ۴۴، فاطر ۴۰، احقاف ۴ په دے ټولو آیاتونو کښ نفی دَ دلیل منزله ده او طلب دَ کتاب منزله ده دَ مشرکانو نه دَ اثبات دَ شرک دَ پاره۔

وَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ، ماوی، هغه مکان ته وئیلے شی چه هغې ته رجوع کیږی او دا ذکر دَ عذاب اخروی دے روستو دَ ذکر دَ عذاب دنیوی نه۔

وَبِئْسَ مَثْوَى الظّٰلِمِيْنَ، مَثْوٰی، ځائے ته دَ اقامت (دیره کیدلو) ته وئیلے شی لیکن چه بے اختیاره وی په دیکښ ترتیب وجودی دے یعنی اول انسان یو ځائے رجوع اوکړی نو بیا روستو په هغې کښ اقامت اوکړی۔

مَنْ يُرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ج ثُمَّ

هغه وو چه طلب يې کوو دَ آخرت بيا

صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ ج

واړولي الله تعالىٰ تاسو دَ هغوی نه دَ دے دَپاره چه ازميښت اوکړی په تاسو

وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ ط وَاللّٰهُ

او يقيناً معافی اوکړه الله تعالىٰ ستاسو نه او الله تعالىٰ

ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۵۲﴾

فضل والا دے په مؤمنانو باندے ۔

۱۵۲: ربط ۔ مخکښ آيت کښ وعده دَ نصرت الهيه ذکر شوه نو په دے آيت کښ دَ سوال جواب کوی سوال منافقانو کړے وو چه الله تعالىٰ په احد کښ ولے تاسو سره نصرت اونکړو نو په دے آيت کښ جواب ذکر کوی چه اول وخت دَ احد کښ وعده دَ نصرت رښتيے شوے وه او بيا درے علتونه دَ هزيمت احد ذکر کوی ۔

وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ ، صَدَقَ ، کله دويم مفعول ته متعدی بالذات وی لکه دلته کښ او کله متعدی وی په واسطه دَ فِيْ سره او دلته متضمن دے معنىٰ دَ وفا او دَ اکمال لره دَ دے وجے نه فِيْ يې حذف کړے دے ۔ وَعْدَهٗ ، مراد دَ دے نه وعده دَ نصرت او دَ ملائکو راليږلو ده ليکن دوه شرطونه پکښ وو اول صبر دويم تقوىٰ په ۱۲۰ ، ۱۲۵ کښ تير شويدی ۔

اِذْ تَحُسُّوْنَهُمْ بِاِذْنِهٖ ، حَسٌّ ، په معنىٰ دَ حس ختم کول دی په قتل کولو سره او په معنىٰ دَ استيصال (بيخ کندی) په قتل سره ۔ اِذْنٌ ، نه مراد دَ الله تعالىٰ توفيق يا قضا دَ هغه ده ۔ او صدق دَ وعدے دا دے چه مؤمنانو دَ مشرکانو نه په اوله حمله کښ دوويشت کسان قتل کړل او نور او تختيدل او ښځو يې هم په غر کښ منډے وهلے جامے يې دَ پنډو نه اوچتے کړے وے او دَ خپو

کالی یې ښکاره کیدل او ډیر مالونه دَغنیمت ترینه پاتې شول او دغه غنیمتونه مؤمنانو راغونډول داسې په حدیث دَ بخاري باب غزوه احد کښې ذکر دي - نو وعده دَ الله رښتینې او پوره شوه -

حَتّٰٓى اِذَا فَشِلْتُمْ، حَتّٰى، په معنیٰ دَ الی سره دې متعلق دې په تحسونهم یا صدقکم پورې یا په محذوف پورې دَ امَ لَکُمْ ذٰلِكَ اِلٰى وَقْتِ الْفَشَلِ او په دې حالاتوکښې اِذَا ، وقتیه مصدریه یا ابتدائیه دې او اذا شرطیه دې - فَشِلِ، په معنیٰ دَضعف دَ همت سره دې بزدلي یا نامردي معنیٰ کول دَ صحابه بې ادبي ده - حدیث صحیح کښې وارد دي چه نبي صلی الله علیه وسلم په ورځ دَ احد کښې پنځوس کسانو ته حکم اوکړو او دَ هغوی امیر یې عبد الله بن جبیر رضی الله عنه مقرر کړو او ورته یې اُوئیل چه په دغه ډیره کې چه دَ احد ځنګ ته ده او دَ مدینې اودَ احد په مینځ کښې ده کینئ او دَ هغې نه بل خوا مه ځئ - که مونږ لړه وینئ چه مونږ غالب شوي یو هم په دغه مقام نه پریږدئ اوکه هغوی په مونږ باندې غالب شول نو هم په زمونږ مدد دَ پاره نه راکوزیږی - لیکن هرکله چه مشرکانو شکست اوخوړلو او غنیمتونه ترینه پاتې شول او مؤمنانو راجمع کول نو دَ دې پنځوس کسانو په مینځ کښې اختلاف پیدا شو بعضو اوئیل چه جنګ ختم شو غنیمت راټولیږي نوکوزیږو اوبعضو اوئیل چه نه کوزیږو ترڅو چه نبي صلی الله علیه وسلم امر راولیږي نو څلویښت کسان راکوز شول او لس کسان دَ عبدالله بن جبیر سره په هغه مقام کښې پاتې شول نو دَ احد دَ شا طرف نه خالد بن ولید (چه هغه وخت مشرک وو) سره دَ خپل لښکر نه په مؤمنانو حمله اوکړله اول یې هغه لس کسان شهیدان کړل اوبیا یې ابوسفیان ته آواز اوکړو چه واپس را اوګرځه نو هغه سره دَ خپل لښکر نه واپس را اوګرځیدو او مؤمنان یې په مینځ کښې راګیر کړل او سخت جنګ اوشو نو دَ مؤمنانو

او یا کسان شهیدان شول او نبی صلی الله علیه وسلم هم زخمی شو او غنیمت هم دَ دوی نه پاتے شو نو دَ دوی دَ حالاتو ذکر په دے آیت کښ او وپسے آیت کښ کوی۔
وَتَنَازَعۡتُمۡ فِی الۡاَمۡرِ، مراد دَ اَمۡرِ نه امر دَ نبی صلی الله علیه وسلم وو چه په دغه مکان کښ دیره شئ او دَ هغے نه مه خوزیږئ۔ یا مراد تربنه غنیمت دَپاره کوزیدل دی۔
وَعَصَیۡتُمۡ، مراد دَ دے نه کوزیدل وو دَ هغے مکان نه، او عصیان، ارتکاب دَ منهی عنه ته وئیلے شی چه هغه فرمائیلی وو لا تبرحوا۔
مِنۡۢ بَعۡدِ مَاۤ اَرٰىكُمۡ مَّا تُحِبُّوۡنَ، دا متعلق دے دَ فشلتم او دَ روستو دواړه فعلونو سره۔ مَا تُحِبُّوۡنَ، نه مراد ظفر او غنیمت دے (ابوحیان) غلبه په کافرانو (قرطبی)۔
او محبوب دَ مؤمنانو په سوره صف ۱۳ کښ نصر او فتح ذکر ده هغه دَ دے تفسیر دے۔ اِذَا فشلتم چه اذا شرطیه وی نو جزاء ئے دلته پټه ده اُمۡتُحِنۡتُمۡ (امتحان کښ او غورځولے شوے تاسو) او بعضو وئیلی دی چه تنازعتم کښ واو زائد دے په جواب دَ اذا کښ راتلے شی۔ اول قول غوره دے۔
مِنۡكُمۡ مَّنۡ يُّرِيۡدُ الدُّنۡيَا، مراد دَ دینه غنیمت دے او دا هغه کسان دی چه مقام دَ کینا ستلو ئے پریخودلے وو۔
وَمِنۡكُمۡ مَّنۡ يُّرِيۡدُ الۡاٰخِرَةَ، دا هغه کسان وو چه دَ عبدالله بن جبیر سره په خپل مقام کښ پاتے شول دَ وجے دَ اطاعت دَ امر رسول نه تر دے چه هغوی شهیدان کړے شول۔
فائده:- محبت دَ دنیا سبب دَ معاصے دے لیکن ما تحبون نه مراد فتح او نصرت وو او هغه سبب دَ غنیمت دے او دا محبت سبب دَ معاصی نه دے او اراده دَ مال دَ دنیا جائز ده لیکن دَ جهاد په وخت مناسب کار نه دے نو دَ بعضے صحابو په باره کښ دلته صرف اراده دَ دنیا ذکر کړے ده محبت دَ دنیا ئے نه دے ذکر کړے دا په عظمت دَ شان دَ

صحابه بانده دلالت کوي.

ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ، دا عطف دے په جزاء مقدر بانده چه امتحنتم دے۔ عَنْهُمْ، ضمیر راجع دے کافرانو ته یعنی دَ کافرانو دَ مقابلے کولو نه ئے تاسو اوگرځولئ۔

لِيَبْتَلِيَكُمْ، مراد دَ ابتلاء، صبر دے په مصیبتونو بانده او په میدان جنګ کښ کلک پاتے کیدل دی۔ یا مراد دَ دیته بلاء نازلول دي په قتل او زخمي کیدلو دَ ملګرو سره۔

وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ، یعني عصیان ستاسو (چه په لفظ عصیتم کښ ورته اشاره ده) معاف کړو او لام او قد دَلالت کوي په ډیر تاکید بانده او دا هم دلالت کوي په لوے عظمت شان دَ صحابه کرامو بانده چه الله تعالیٰ دَ هغوی دَ معافی ذکر په قرآن کریم کښ اوکړو۔ او قاسمي وئیلي دي ظاهر دا ده چه دوی توبه نه وه کړے او الله تعالیٰ بغیر دَ توبے نه معاف کړل او دا مسلك دَ اهل سنت دے چه دَ الله تعالیٰ چه کله خوښه شي نوګناهونه کبیره بغیر دَ توبے نه هم معاف کوي سیوا دَ شرک او کفر نه۔

وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ، دلته فضل نه مراد دا دے چه الله تعالیٰ دَ دوی دَ عصیان په وجه سره دَ دوی بیخ کندی اونکړله او سخت عذاب ئے ورله نه دے ورکړے او لفظ مؤمنین کښ اشاره ده چه سبب دَ عفو او فضل ایمان دے دَ حسن نه نقل دے چه دا کسان دَ رسول الله ملګری غصه وو مشرکانو ته او قتال ئے دَ هغوی سره کوو خو دوی منع کړے شوے وو دَ یو څیز نه نو دوی هغه ضایع کړو نو په ډیر غم کښ اخته شول لیکن تن زمانه کښ لوے فاسق هر قسم کبیره ګناه کوي او پرواه نه کوي زړ دے ده نه په پته اولګی (ابن عطیه)

إِذْ تُصْعِدُونَ وَلَا تَلْوُونَ عَلَىٰ

کوم وخت چه روان وئ تاسو مخ پټې طرف ته او شاته نه کتل تاسو هیڅ

أَحَدٍ وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ

چاته او رسول آواز کوو تاسو ته

فِي أُخْرَاكُمْ فَأَثَابَكُمْ غَمًّا

روستو ستاسو نه نو بدل ئې درکړو تاسو ته غم

بِغَمٍّ لِكَيْلَا تَحْزَنُوا عَلَىٰ

په بل غم دپاره ددې چه نشئ غمژن په

مَا فَاتَكُمْ وَلَا مَا أَصَابَكُمْ ۗ

هغه څه پسې چه فوت شو ستاسو نه او نه په هغه څه چه اورسیدو تاسو ته

وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٥٣﴾

او الله تعالیٰ خبردار دے په هغې چه کوئ تاسو -

سـ۱۵۳:- په دے آیت کښې دَ دوی بل عصیان ذکر کوی چه هغه دَ میدان جهاد نه واپس گرځیدل دی او دَ هغې کیفیت سره دَ سزا نه ذکر کوی -

إِذْ تُصْعِدُونَ ، دا متعلق دے په صرفکم پورے ، تُصْعِدُونَ، په پیښ دَ تا سره دَ اصعاد نه اخستلے شویدے او اصعاد تلل دی په میدان دَ زمکه او په کندو او درو کښې (قرطبی) دا دَ صعید نه ماخوذ دے (صعید مخ دَ زمکے ته وئیلے شی) نو دَ صعید معنیٰ په زمکه باندے تلل - دا قول دَ ابو حاتم دے - دارنگ اصعاد اوږد سفر شروع کولو ته وئیلے شی دا قول دَ فراء دے - او صعود په معنیٰ دَ بره طرف ته ختل دی ابن عطیه وئیلی دلته اوله معنیٰ غوره ده -

وَلَا تَلْوُونَ عَلَىٰ أَحَدٍ ، تَلْوُونَ ، په معنیٰ دَ را گرځولو دَ سټ ته

وتښتیدلي شي او دا مبالغه ده مراد ترینه التفات دے یعني تاسو شا طرفته بالکل نه کتل دَ تختیدلو دَ وجے نه۔

وَالرَّسُوْلُ يَدْعُوْكُمْ فِىْٓ اُخْرٰىكُمْ، الف لام په الرسول کښ دَ پاره دَ عهد دی یعني آخري رسول صلی الله علیه وسلم او آواز دَ هغه داوو (اِلَيَّ عِبَادَ اللهِ مَنْ يَّكِرَّ فَلَهُ الْجَنَّةُ) (ما طرف ته راشئ اے دَ الله بندګانو چا چه دوباره حمله اوکړله نو دَ هغه دَپاره جنت دے) اُخْرٰىكُمْ، هغه جماعت دے چه په لښکر کښ روستو طرف ته وی او دَ هغے ته ساقه وئیلے شي نو اخری په معنیٰ دَ متاخره سره دے په دیکښ دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم شجاعت ته اشاره ده چه دَ لښکروالو نه روستو په خپل ځائے پاتے پوخ ولاړ دے دا دَلوے شجاع شخص کار دے۔

فَاَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ، دَ اَثَابَ، فاعل الله تعالیٰ دے۔ غَمًّا ته ئے ثواب (په معنیٰ دَ بدلے) مجازًا اُوئیل یعني که قرار نه وے نو دا په ثواب وے۔ بِغَمٍّ، باء دَپاره دَ مصاحبت ده چه په معنیٰ دَ مع سره ده او مراد دَدیته ډیرو اے دَ غمونو دے چه هزیمت اوقتل او فوت کیدل دَ غنیمت اوغلبه دَ لښکر دَ ابوسفیان او دَ خالد او آوریدل دَ قتل دَ نبي صلی الله علیه وسلم دا ټول غمونه دوی ته حاصل شول۔ یا باء دَپاره دَ سببیت ده نو مراد دَ اول غم نه هغه جنس غمونه دی چه مخکښ ذکر شول او دَ دویم (سبب) نه مراد غم رَسَوَلُ ستاسو دی نبي صلی الله علیه وسلم ته دَ وجے دَ مخالفت دَامر دَ هغه نه۔

لِكَيْلَا تَحْزَنُوْا، په متعلق دَ دے لام کښ اقوال دی اول قول دا متعلق دے په اثابکم، پورے او لا زیاتی دے ځکه چه په رسیدلو دَ غمونو سره حزن حاصلیدی نفی نه کیږی۔ دویم قول دا متعلق دے په عفا پورے ځکه عفو سره ټول غمونه دَ مؤمن زائله شي لیکن په مینځ کښ دَ ډیرو واسطو

ثُمَّ اَنۡزَلَ عَلَيۡكُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ

بیا را اولیږله الله تعالیٰ په تاسو باندې روستو

الۡغَمِّ اَمَنَةً نُّعَاسًا يَّغۡشٰى

دَ خفګان نه امن والا پرګالي پټوله هغې

طَآئِفَةً مِّنۡكُمۡ‌ۙ وَطَآئِفَةٌ قَدۡ

یو ډله ستاسو نه او بله ډله چه

اَهَمَّتۡهُمۡ اَنۡفُسُهُمۡ يَظُنُّوۡنَ بِاللّٰهِ

فکرمند کړی وو هغوی لره نفسونو دَ هغوی ګمان ئې کوو په الله تعالیٰ

غَيۡرَ الۡحَـقِّ ظَنَّ الۡجَـاهِلِيَّةِ‌ؕ

ناحق ګمان پشان دَ جاهلیت والو

يَقُوۡلُوۡنَ هَلۡ لَّنَا مِنَ الۡاَمۡرِ

وئیل دوی آیا شته موږ لره دَ امداد نه

مِنۡ شَىۡءٍ‌ؕ قُلۡ اِنَّ الۡاَمۡرَ

څه حصه، ته ورته اوایه یقیناً امداد

كُلَّهٗ لِلّٰهِ‌ؕ يُخۡفُوۡنَ فِىۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ

ټول دَ الله تعالیٰ په اختیار کښې دې، پټوی دوی په نفسونو خپلو کښې

دَ وجې نه دا ضعیف دې - دریم قول دا متعلق دې
په اثابکم پورې او لا زیاتی نه دې لیکن مراد دَ
لا تحزنو نه ازاله دَ حزن ده په آئنده زمانه کښې دَ وجې
دَ عادت کیدلو نه په غمونو باندې یعنی اوس ئې ډیر
غمونه دراورسول دَ دې دَ پاره چه دَ غمونو سره عادت
شئ نو آئنده دَ پاره به دَ هیڅ سبب دَ وجې نه تاسو نه غمژن

مَا لَا يُبْدُوْنَ لَكَ ۚ يَقُوْلُوْنَ

هغه څه چه نه ښکاره کوی تا ته ، وائیل دوی

لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ

که چرې وے موږ لره دَ اختیار نه څه شے

مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا ۚ قُلْ لَّوْ

نه به وے وژلے شوے موږ (نسبیان زموږ) دلته ، ته او وایه که وئ

كُنْتُمْ فِيْ بُيُوْتِكُمْ لَبَرَزَ

تاسو په کورونو خپلو کښې نو خامخا به را وتلي وو

الَّذِيْنَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ

هغه کسان چه مقرر شوے وو په هغوی باندے قتل (مرګ)

اِلٰى مَضَاجِعِهِمْ ۚ وَلِيَبْتَلِيَ اللّٰهُ

ځائے دَ غورځیدلو خپلو ته او (دا کار الله تعالیٰ اوکړو) دے دَپاره چه ازمینت اوکړی الله تعالیٰ

مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ وَلِيُمَحِّصَ

دَ هغه (نفاق) چه په سینو ستاسو کښې دے او دے دَپاره چه پاک کړی

کیږئ۔ څلورم قول دا متعلق دے په اثابکم پورے او لا زیاتی نه دے لیکن مراد دَ غمًّا نه صرف اوریدل دَ خبر دَ مرګ دَ رسول الله دے یعنی په دے پرا پیګنډه کښې حکمت دا وو چه نور غمونه ستاسو نه زائل شي ځکه چه وفات دَ نبی صلی الله علیه وسلم په صحابه او امتیانو باندے ډیر لوے غم دے او په لوے غم سره واړه غمونه ختمیږی۔

عَلٰى مَا فَاتَكُمْ ، مراد دَ دینه غنیمت دے۔ وَلَا مَا اَصَابَكُمْ ، مراد دَ دینه قتل او هزیمت دے۔

وَاللّٰهُ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ، په دے جمله کښې زورنه مقصد دے

مَا فِيْ قُلُوْبِكُمْ ۚ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ

هغه (ایمان) چه په زړونو ستاسو کښ دے، او الله تعالیٰ پوهه دے

بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۱۵۴﴾

په هغه خبرو چه په سینو کښ دی۔

په عمل دَ مخالفت دَامر دَ رسول صلی الله علیه وسلم او تیخته کول دَ میدان جهاد نه۔

سـ۱۵۴:۔ په دے آیت کښ تسلی دَ مؤمنانو او زورته دَ منافقانو ته ذکر کوی۔ دَ دے آیت خصوصیت دادے چه په دیکښ ټول حرف هجاء دَ الف نه تر یاء پورے شته دے۔

ثُمَّ اَنْزَلَ عَلَیْکُمْ مِّنْ بَعْدِ الْغَمِّ، دا عطف دے په اثابکم باندے ضمیر دَ فاعل الله تعالیٰ ته راجع دے او تعبیر په لفظ دَ انزل سره دَ پاره دَ دلالت دے په رحمت یا ندے ځکه چه دا صیغه اکثر په رحمت کښ استعمالیږی۔

اَمَنَةً، امن او امنة کښ فرق دادے چه امنه په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه خوف زائل شی او سبب خوف موجود وی او دا مقام دَ کرامت دے۔ او امن زوال دَ خوف دے سره دَ زوال دَ سبب دَ خوف نه۔

نُّعَاسًا، دا بدل اشتمال یا عطف بیان دے نعاس لږ خوب ته وئیلے شی چه اثر ئے په سر کښ راشی او دا سے حالت په سورة انفال سـ۱۱ کښ هم ذکر دے چه هغه په غزوه بدر کښ وو۔

سوال:۔ په سورة انفال کښ النعاس مخکښ راوړیدے او دلته ئے روستو ذکر کړے دے؟

جواب:۔ په بدر کښ غم لږ وو نو علاج دَ غم ئے مخکښ ذکر کړو او حکمت دَ هغے ئے روستو ذکر کړو چه امنة دے او په احد کښ غمونه ډیر پیدا شوے وو نو ازاله دَ غم (امنة) مخکښ ذکر کړو ځکه چه هغه مقصد دے او علاج ئے روستو ذکر کړو چه نعاس دے۔

يَغْشَىٰ طَآئِفَةً مِّنكُمْ، ضمير دَ يغشى نعاس ته راجع دے او مراد دَ دے طائفے نه ټول مؤمنان دو چه په غزوه احد کښ شريک وو او فائده په ديکښ داده چه په خوب سره په طبيعت کښ خوشحالي واپس راشي او غم هير شي بله فائده داده چه دا معجزه وه دَ نبي صلى الله عليه وسلم او په داسے وخت کښ معجزه ليدل سبب دَ زياتوالي دَ ايمان دے - بخاري حديث دَ ابو طلحه رضي الله عنه نقل کړيدے چه نعاس په مونږ راغے او مونږ په صف دَ قتال کښ او لاړ وو نو توره به زما دَ لاس نه غورځيدله او ما به بيا راخستله - او ترمذي په حديث دَ ابو طلحه کښ ذکر کړيدي ابو طلحه وائي ما سر اوچت کړو نو ما نه ليدل هيڅوک مګر چه دَ خپل خول (ټوپۍ دَ سر) لاندے ئے سر ځکته کوو دَ وجے دَ نعاس نه.

وَطَآئِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنفُسُهُمْ، مراد دَ دے طائفے نه منافقان دي او دَ منافقانو بنځه صفات قبيحه ذکر کوي.

أَهَمَّتْهُمْ، اهمام، واچلے شي په هم (غم) کښ غورځول يعني دوي صرف دَ خپل ځانونو په غم کښ وو دَ وجے دَ ويرے دَ قتل نه او دَ غلبے دَ کافرانو نه او دَ نبي صلى الله عليه وسلم او دَ صحابه او دَ دين اسلام غم او فکر ورسره نه وو - او دَ أَهَمَّ، دويمه معنی اراده او وسوسه اچول دي يعني په نفسونو کښ اراده او وسوسه راغله چه دين اسلام پريږدي.

يَظُنُّونَ بِاللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ، دا استيناف دے جواب دَ سوال نه چه ولے دوي نفسونو په هم کښ واچول جواب دادے چه په الله تعالى باندے ئے ناحق ګمان کوو. غَيْرَ الْحَقِّ، مفعول دَ يظنون دے يا په حکم دَ مفعول مطلق کښ دے.

ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ، بدل دے دَ غير الحق نه يا مفعول مطلق دے.

الْجَاهِلِيَّةِ، صفت دے دَ پټ موصوف دَ پاره اَلْمِلَّةِ الْجَاهِلِيَّةِ يا اَلْفِرْقَةِ الْجَاهِلِيَّةِ او مراد ترينه ښکاره کافران دي.

او دَ دوي ناحق ظن دا وو چه الله تعالى به دا نبي او دَ ده

دین زر ختم کړی - یا دا چه الله تعالیٰ دَ نبی او دَ مؤمنانو سره هیڅ امداد نه کوی - او دا رنګ په سوره فتح ۱۲ او ۱۳ کښ دی او دَ دے ډیر صورتونه قاسمی په تفسیر کښ ذکر کړیدی -
یَقُوْلُوْنَ هَلْ لَّنَا مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَیْءٍ، دا جمله تفسیر دے دَ یظنون دَ پاره یا جمله مستانفه ده بیان دَ ظن دَ هغوی دے هَلْ، استفهام انکاری دے الامر، نه مراد نصرت او غلبه ده او غرض دَ دوی دَ دے انکار نه طعن کول دی په نبوت دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښ -
قُلْ اِنَّ الْاَمْرَ كُلَّهٗ لِلّٰهِ، یعنی اختیار دَ نصرت خاص دے په الله پورے نو هغه ئے ورکوی حقدار دَ نصرت لره چه مؤمنان دی او په مناسب وخت کښ ورکوی -
یُخْفُوْنَ فِیْٓ اَنْفُسِهِمْ مَّا لَا یُبْدُوْنَ لَكَ، مراد دَ دینه هغه ظن باطل دے چه مخکښ ذکر شو یا مطلق کفر او نفاق او شک دے چه دوی دَ ویرے دَ وجے نه دَ هغے اظهار نشی کولے.
یَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَیْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا، دا استیناف دے جواب دَ سوال دے۔ سوال دا دے چه هغه کومه خبره ده چه دوی ئے پټوی دا رنګ دا قول دَ دوی هم دَ یو بل سره په کورنۍ کښ وو بنکاره ئے مؤمنانو ته نه شو وئیلے ځکه چه بیا ئے کفر بنکاره کیدلو - دلته امر نه مراد اختیار دے دَ راوتلو جهاد دَ پاره احد ته ځکه چه دوی وئیل چه مونږ احد ته دَ مجبورئ په وجه سره راوتلی یو ځکه چه دے نبی زمونږ خبره نه منله۔ نو که زمونږ اختیار وے نو مونږ به دَ مدینے نه بهر نه راوتلو نو مونږ (یعنی زمونږ ملګری صحابه) به نه قتل کیدلو یعنی دا بهر راوتل سبب دے زمونږ دَ ملګرو دَ قتل کیدل او دا قول هم طریقه دَ منافقانو ده چه کلمه دَ لَو په مقابله دَ تقدیر کښ استعمالوی او دا په حدیث کښ منع شویده -
قُلْ لَّوْ كُنْتُمْ فِیْ بُیُوْتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِیْنَ كُتِبَ عَلَیْهِمُ الْقَتْلُ اِلٰى مَضَاجِعِهِمْ، لبرز، بروز په معنیٰ دَ بهر راوتلو سره دے۔

یعنی یو بل سبب به پیدا شوے وے او دوی به دَ کورونه
راوتلی وے- کُتِبَ دا کتابت دَ تقدیر دے په علم سابق دَ الله
تعالیٰ کښ- دَ الْقَتْلُ، نه مقتول کیدل مراد دی مَضَاجِعِ جمع دَ
مضجع ده ځائے دَ کیښودلو دَ بدن په زمکه باندے دَ پاره دَ
راحت او دَ خوب او دلته مراد ځایونه دَ غورځیدلو دَ مقتولانو
دی او په دے لفظ کښ اشاره ده چه شهیدانو روستو دَ شهادت
په نعمتونو او خوشحالی کښ دی لکه یو انسان چه په خپله بستره
باندے آرام کوی-
وَلِيَبْتَلِيَ اللّٰهُ مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ، دا عطف دے په پټ لفظ باندے
لِيَقْضِيَ اللّٰهُ اَمْرَهٗ وَلِيَبْتَلِيَ- یا علت دے دَ پټ فعل دَ پاره
فَعَلَ اللّٰهُ هٰذِهِ الْاُمُوْرَ لِيَبْتَلِيَ- بعضے مفسرینو وئیلی دی
چه دا عطف دے په لِكَيْلَا تَحْزَنُوْا باندے او په مینځ کښ
جملے معترضے دی- او مراد دَ ابتلاء نه دلته اظهار دے-
مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ مراد دَ دے نه پټ رازونه دی چه هغه منافقت
دے او دا خطاب دے منافقانو ته-
وَلِيُمَحِّصَ مَا فِيْ قُلُوْبِكُمْ، تمحیص، په معنیٰ دَ صفا کولو دے
دَ خیرونه او دا خطاب دے مؤمنانو ته-
صُدُوْرِ جمع دَ صدر ده سینے ته وئیلے شی چه هغه محل
دَ پاره دَ زړه دے او اطلاق ئے کیږی په باطنی احساس باندے
نو مراد ترینه اخلاق او رازونه دی- او قُلُوْبِ جمع دَ قلب
ده او اطلاق ئے کیږی په اعتقاد باندے دَ اخلاقو سره لفظ
دَ ابتلاء او دَ عقائدو سره لفظ دَ تمحیص مناسب دے- دا
رنګ اول دَ منافقانو او دویم دَ مؤمنانو دَ حال سره مناسبت
لری-
وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ، اشاره ده چه ابتلاء او تمحیص
دَ دے دَ پاره نه دے چه الله تعالیٰ ته علم حاصل شی-

إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ

يقينًا هغه خلق چه واپس اوګرځيدل ستاسو نه (دميدان دجنګ نه)

يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ ۙ إِنَّمَا

په هغه ورځ چه مخامخ شوے دوه ډلے يقينًا

اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَٰنُ بِبَعْضِ

خويولے دی دوی شيطان په سبب

مَا كَسَبُوا ۖ وَلَقَدْ عَفَا اللَّهُ

دَ هغه ګناهونو چه دوی کړيدی يقينًا معاف کړيدے الله تعالیٰ

عَنْهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٥٥﴾

دوی ته ، يقينًا الله تعالیٰ بخنه کوونکے دے صبرناک دے۔

۱۵۵:- په دے آيت کښ سبب معنوی دَ هزيمت دَ مؤمنانو ذکر کوی چه په ورځ دَاحد مشرکانو ته ئې شا اوګرځوله برابره خبره ده که مدينے ته نزدے شوے وی يا غر ته ختلی دی او مفسرينو وئيلی دی چه دَ نبی صلی الله عليه وسلم سره صرف ديارلس کسان پاتے شول۔

إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَٰنُ، استزل ، دَ زلل نه اخستلے شويدے خپے خوئيدل کنايه ده دَ هزيمت نه - او سين او تا دَپاره دَ تاکيد دی يعنی شيطان دَدوی دَ هزيمت پوره طلب کړيدے۔

بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا ، مراد دَدينه پريښودل دَ هغه مقام (ځائے) دو چه نبی صلی الله عليه وسلم دوی ته دَ هغے امر کړے وو يا نورے خطائی چه الله تعالیٰ ته معلومے دی او اشاره ده چه يو ګناه بل ګناه ته راښکل کوی او بَعْضِ لفظ اشاره ده چه الله تعالیٰ مؤمنانو ته دَ ټولو جرمونو سزا نه ورکوی اکثر ورته معاف کړی او دَ بعضو دَ وجے نه دَدنيا مصيبتونه راولی نو هغه هم معاف شی -

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ

اے ایمان والو مه کیږئ پشان د

كَفَرُوا وَقَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ إِذَا ضَرَبُوا

کافرانو او وايئ په باره د خپلو رونړو (نسبيانو) کښې کله چې هغوی سفراوکړي

فِي الْأَرْضِ أَوْ كَانُوا غُزًّى لَّوْ كَانُوا

په زمکه کښې

عِندَنَا مَا مَاتُوا وَمَا قُتِلُوا ج

نه به مړه کيدلے او نه به وژلے کيدلے

---

وَلَقَدْ عَفَا اللَّهُ عَنْهُمْ، هغه عفو چه ذکر ده په ۱۵۲ کښې د مرکز د پريښودلو د وجے نه ده او دا عفو د ميدان جهاد د پريښودلو د وجے نه وه - او دا هغه جمله ده چه ابن عمر رضی الله عنه د عراقي سړي په جواب کښې وئيلي وه هر کله چه هغه د عثمان رضی الله عنه په طعن کښې د احد نه تختيدل ذکر کړل (نو ده ورته جواب کښې اوئيل) چه لَقَدْ عَفَا اللَّهُ عَنْهُمْ، او دا هم لوے منقبت دے د صحابه کرامو چه د هغوی معافي په ډير تاکيد سره په قرآن کښې ذکر دے -

إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ، دا جمله په طريقه د علت سره ده د ما قبل عفو د پاره - غَفُورٌ دے گناهونه معاف کوي - حَلِيمٌ دے يعني زر عذاب نه ورکوي دواړه د مؤمنانو سره تعلق لري يا غفور کښې اشاره ده حال د مؤمنانو ته چه هغوی ته ئے مغفرت اوکړو - او حليم کښې اشاره ده حال د منافقانو ته چه هغوی په دے عفو او مغفرت کښې داخل نه دي ځکه د هغوی گناه د کفر (ريښه) ده هغه بغير د توبے نه نه معاف کيږي -

لِيَجْعَلَ اللّٰهُ ذٰلِكَ حَسْرَةً فِيْ

| دے دپارہ چہ اوګرځوی اللّٰه تعالیٰ دا خبرہ ارمان په |
|---|

قُلُوْبِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ؕ

| زړونو دَ دوی کښې او اللّٰه تعالیٰ ژوندی کول کوی او مړه کول کوی |
|---|

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿١٥٦﴾

| او اللّٰه تعالیٰ ستاسو عملونه وینی ۔ |
|---|

ت۱۵۶ ۔ ربط ۱ ؛۔ هرکله چه مخکښې آیت کښې احسان په مؤمنانو باندے ذکر کړے شو نو اوس منع کوی هغوی لره دَ مشابهت دَ کافرانو او منافقانو نه په الفاظو او په عقیده کښې دَ پاره دَ دے چه بیا په ګناه کښې اخته نشی ۔

ربط ۲ ؛۔ هرکله چه دَ مخکښې نه په تیر شوی آیت کښې دَ منافقانو دا قول ذکر کړو لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا ۔ نو اوس دَ دے پشان دَ هغوی بل قول په عامو حالاتو کښې ذکر وی او دواړو اقوالو دَ مشابهت نه منع کوی ۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا ، دا هم تعلیم دَ ادب دے مؤمنانو نه دَپاره دَ دفع کولو دَ هزیمت ۔

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ، نه مراد ټول کافران دی او منافقان پکښې اول داخل دی په سبب دَ سیاق دَ آیت سره او سمعانی وثیلی دی مراد دَ دینه منافقان دی ۔ او مقصد دَ دینه مشابهت په قول او په اعتقاد دواړو کښې دے ځکه چه مخکښې ذکر شول چه په حدیث دَ مسلم کښې استعمال دَ کلمے دَ لو (په مقابل دَ تقدیر کښې) منع کړے شو یدے ۔

وَقَالُوْا لِاِخْوَانِهِمْ اِذَا ضَرَبُوْا فِي الْاَرْضِ ، روستو دَ كَفَرُوْا نه په دے قول راوړلو کښې اشاره ده چه دا قول په سبب دَ کفر دَ دوی سره دے هسے همدردی ، رورولی نه ده ۔

اِخْوَانِهِمْ ، مراد دَ دینه اخوة دَ نسب دے ځکه چه منافقان او

شهداء دَ احد اکثر دَ خزرج قبیلې نه وو او دا وینا کوونکي منافقان وو- یا اخوانهم، اخوة دَ عقیدې او دَ نسب مراد دی که روستو دَ ضربوا او غزیً نه مراد منافقان شي-
سوال:- اذا دَ پاره دَ زمانې دَ استقبال راځي او قالوا فعل ماضي ده. اِذَا دَ هغې دَ پاره ظرف څرنګ صحیح کیږي-
جواب ۱:- ابن عطیه وئیلي دي چه الذین مبهم دے ماضي او استقبال دواړو ته شامل دے نو دا قول عام دے په پاره دَ تیرشوو او په پاره دَ راتلونکي زمانه کښ دغه عمل کوونکو ته-
جواب ۲:- ابوحیان وئیلي دي دلته اذا په معنیٰ دَ حین دے نو دَ ماضي سره استعمالیږي-
جواب ۳:- زمخشري وئیلي دي دلته دا په معنیٰ دَ حین تضربون في الارض سره دے-
ضرب في الارض، ضرب په اصل کښ واقع کول دَ یو څیز دي په بل څیز باندې بیا استعمالیږي په سیرکولو په زمکه په کیښودلو دَ قدمونو په زمکه او دلته مراد سفرکول دي دَ پاره دَ تجارت وغیره په زمکه کښ که سفر دَ اوچې وي او که دَ دریاب وي-
اَوْ کَانُوْا غُزًّی، دا جمع دَ غاز ده او دَ سفرکولو او غزا کولو په مینځ کښ عموم خصوص من وجه دے یعني سفر بغیر دَ غزا نه او غزا بغیر دَ سفر نه او سفر سره دَ غزا نه درې واړه حالتونه موجود دیږي دَ دے وجې نه دواړه ئې ذکرکړیدي او دَ دے کلام نه روستو مَاتُوْا او قُتِلُوْا پټ مراد دے-
لَوْ کَانُوْا عِنْدَنَا، کون نه مراد اقامت دے یعني سفر او غزا له تلې نه وے بلکه مونږ سره په کلي کښ دیره وے-
مَامَاتُوْا وَمَا قُتِلُوْا، ابوحیان وئیلي دي چه دا قول په ډیر جهل باندې دلالت کوي ځکه جاهلان خلق هم مني چه په سفر کښ مرګ شته دے-
لِیَجْعَلَ اللّٰهُ ذٰلِکَ حَسْرَةً فِیْ قُلُوْبِهِمْ، په دے لام کښ دوه اقوال دي: اول، دا چه لام دَ تعلیل دَ پاره دے او ذٰلک اشاره ده

# وَلَئِنْ قُتِلْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ

| او که | او وژلے شوئ تاسو | په | لار | دَ الله تعالیٰ کښې |
|---|---|---|---|---|

دَ دوی قول او اعتقاد ته او متعلق یې پټ دے اَوْ قَعَ ذَالِكَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ لِيَجْعَلَ ۔ یا لَا تَكُوْنُوْا مِثْلَهُمْ لِيَجْعَلَ ۔ یعنی دوی دا قول دَ دے دَ پاره کوو چه دَ جهاد نه منع شي او دَ دوی تابعداري اوکړی هرکله چه هغوی دا سے او نکړی نو دا قول به دَ دوی په زړونو کښې افسوس او پښیمانتیا پاتے شي۔

دویم قول، دا لام دَ صیرورت او دَ عاقبت دے متعلق دے په قالوا پورے او ذالك اشاره ده قول دَ دوی ته یعنی دَ دوی دا قول کوی لیکن هرکله چه دَ دوی مقصد حاصل نشي نو عاقبت دَ دے قول به پښیمانتیا اوګرځی۔

حسرة، غم کول په هغه فوت شوی څیز باندے چه دَ هغه حاصلیدل نه کیږی۔ یا لام دَ صیرورت او عاقبت دے او حسرة نه مراد په ورځ دَ قیامت کښې شرمندګی په سبب دَ دے قول سره۔

وَاللهُ يُحْيِيْ وَيُمِيْتُ، دا رد دے دَ هغوی په دغه قول باندے یعنی ژوند مرګ دَ وجے دَ اقامت او سفر نه نه دے بلکه ډیر ځله مسافر او غازی ژوندی پاتے شي او مقیم شخص باندے په خپل کور کښې مرګ راشي نو دا کار دَ الله په اختیار کښې دے ۔ وَاللهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ،

سوال:۔ مخکښې خو ذکر دَ قول وو دَ هغے سره سمیع مناسب دے؟

جواب:۔ هرکله چه دَ دوی دَ قول مطلب عمل کول دی چه پخپله هم جهاد نه کوی او نور خلق هم دَ جهاد نه منع کوی نو دا عمل الله تعالیٰ وینی۔

ف۱۵۷:- هر کله چه منافقان په دغه قول مخکنی سره دَ جهاد نه منع کول کوی نو اوس الله تعالیٰ دَ هغوی په خلاف کښ ترغیب ورکوی جهاد کولو ته۔

وَلَئِنْ قُتِلْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ، لام، دلالت کوی په قسم پټ باندے چه قسم دلالت کوی په تاکید باندے او جواب قسم لمغفرة دے۔

اَوْ مُتُّمْ ، دَ دے نه هم مراد موت دے په جهاد کښ بغیر دَ قتل نه په څه مرض وغیره سره۔

لَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَحْمَةٌ ، جزا دَ اِن، په اصل کښ پټه ده لَيُغْفَرَنَّ لَكُمْ ، لَمَغْفِرَةٌ په جزاء باندے دلالت کوی۔

مَغْفِرَةٌ ، نکره اشاره ده لږ جزء دَ مغفره ته دارنګ رحمة هم او دَ رحمة نه روستو مِنَ الله پټ مراد دے۔

خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ، یعنی په کلی کښ پاتے شی دَ جهاد نه مال او آرام دَ دنیا حاصلوی دَ هغې نه مغفرة او رحمة ډیر غوره دے۔

# لَاِ۟لَى اللّٰهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۱۵۸﴾

نو خامخا الله تعالىٰ ته به جمع کړے شئ تاسو -

۱۵۸ :- وَلَئِنْ مُّتُّمْ اَوْ قُتِلْتُمْ لَاِ۟لَى اللّٰهِ تُحْشَرُوْنَ ، په دیکښ اشاره ده تذکیر دَ موت او تذکیر دَ آخرت ته نو مقصد دَ دے آیت دا دے چه مړکیدل په خپل مرګ یا په قتل سره خو ضرور راځی نو مرګ او قتل فی سبیل الله غوره دے او دَ هغے په وجه مغفرت او رحمت په حشر کښ حاصلیږی نو دا تکرار بے فائدے نه دے -

فائده لـه :- په اول ۱۵۶ کښ ما توا ئے مخکښ کړیدے په قتل باندے ځکه چه سبب دَ عام موت چه سفر دے مخکښ ذکر دے او سبب دَ قتل چه غزوه ده روستو ذکر کړیده - په دویم ۱۵۷ کښ قتل مخکښ کړیدے په موت باندے دَ دوه دجو نه - اوله وجه ، دا چه په وخت دَ جهاد کښ مرګ په سبب قتل سره ډیر واقع کیږی په نسبت دَ مرګ په نورو عوارضو سره - دویمه وجه دا چه قتل فی سبیل الله ډیر اهم دے دَ عام موت نه نو اهم مخکښ ذکر کړیدے او په دے آیت ۱۵۸ کښ موت ئے مخکښ کړیدے په قتل باندے ځکه په عامو اوقاتو کښ بخپله مرګ ډیر واقع کیږی دَ قتل نه -

فائده لـه :- امام رازی وئیلی دی چه عبادت کوونکی دریے قسمه دی اول هغه دی چه عبادت کوی په اراده دَ بخشش دَ ګناهونو - دویم هغه دی چه عبادت په قصد دَ ثواب حاصلولو کوی - دریم هغه دی چه عبادت کوی په قصد دَ حصول دَ دیدار الٰهی سره دریوارو ته په دواړه آیاتو کښ اشاره اوشوه -

فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ لِنْتَ لَهُمْ ۚ

نو په وجه دَ رحمت دَ الله تعالیٰ نرم شې ته دوی ته

وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيْظَ الْقَلْبِ

او که ته بد ژبې او سخت زړه وے

لَانْفَضُّوْا مِنْ حَوْلِكَ ۖ فَاعْفُ

نو خامخا دوی به خواره شوی وو ستا دَ چاپیره نه نو معافی اوکړه

عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ

دَ دوی نه او بخنه اوغواړه دَ دوی دَپاره او مشوره غواړه دَ دوی نه

فِي الْأَمْرِ ۚ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ

په کار کښ نو کله چه قصد اوکړے دَ کولو دَ یو کار نو ځان او سپاره

عَلَى اللّٰهِ ۗ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِيْنَ ﴿۱۵۹﴾

په الله تعالیٰ باندے یقیناً الله تعالیٰ مینه کوی دَ توکل کوونکو سره۔

ف۱۵۹:۔ ربط:۔ هر کله چه مخکښ ذکر شول مرکز پریښودونکی او دَ میدان جهاد نه تیخته کوونکی او منافقان چه دَ دوی سره رسول الله صلی الله علیه وسلم نرمی اوکړله نو اوس دَ هغه نرمے کولو سبب بیانوی او دا رنګ مخکښ دوه کرته اوئیلے شو چه الله تعالیٰ دغه صحابه کرامو ته معافی کړیده او دغه معافی په سبب دَ نرمے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره معلومیږی نو اوس علامت دَ هغه عفو ذکر کوی۔

دا رنګ مخکښ آیت کښ دَ مغفرت او رحمت دَ الله تعالیٰ ذکر کړے شو دَ پاره دَ مجاهدینو او شهیدانو نو دَ رحمت الهیه خاص قسم ذکر کوی چه هغه بعثت دَ داسے رسول دے چه نرم اخلاقو والا دے۔ په دے آیت کښ عظمت شان دَ نبی صلی الله علیه وسلم او آداب ذکر کوی دَ ملګرو سره اګرچه دَ هغوی نه

کوتاهئ شوے وی۔
فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللّٰهِ لِنْتَ لَهُمْ، با، سببیه ده متعلق ده په روستو لنت پورے او ما دَ پاره دَ تاکید دے او رحمةٍ معنیٰ دا ده چه دَ دے دَرحمت دَ الله تعالیٰ نه په دے صحابه باندے نه نرم ئے دوی نه۔ نو دا انعام او احسان دَ الله تعالیٰ دے په صحابو باندے۔ یا مراد دَ دینه رحمت دَ الله تعالیٰ دے په نبی صلی الله علیه وسلم او هغه کلکوالے راوستل دَ الله تعالیٰ دی په زړه دَ هغه او تخصیص دَ هغه دے په ښائسته اخلاقو سره چه دَ هغے په سبب سره نبی صلی الله علیه وسلم دَ صحابو سره نرمی کوله۔
لنت، په صیغه دَ فعل ماضی سره دلالت کوی چه دا خوئ په نبی صلی الله علیه وسلم کښ پوخ وو۔ لَهُمْ، ټولو مسلمانانو ته شامل دے اول یکیں صحابه دَاحد داخل دی۔
وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ، دا په طریقه دَاستدلال دے دَ اثبات دَ لین دَ هغه دَپاره په نفی دَ ضد لین سره۔ فَظًّا په کلام کښ سختی کوونکے، بد ژبے۔ غَلِيظَ الْقَلْبِ، غلظه دَ زړه قسوت دَ هغه دے چه زر خفه کیږی بیا زر نه رضا کیږی او دا سبب دے دَفظ دَ پاره لیکن فظ ښکاره صفت دے هغه ئے ځکه مخکښ ذکر کړو۔
لَانْفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ، انفضاض په معنیٰ دَ جدا جدا کیدل او نفرت کول دی۔ مِنْ حَوْلِكَ، مبالغه ده یعنی دَ هر طرف نه به تس نس شوے وے۔ لیکن دَ نبی صلی الله علیه وسلم په ژوند کښ دَ هغه دَ صحبت نه هیچا نفرت نه دے کړے نو معلومه شوه چه هغه فظ غلیظ القلب نه وو۔ نو دلیل شو چه واقعی نرم اخلاقو والا وو۔ او مفسرینو وئیلی دی چه هر مؤمن داعی لره په اتباع دَخپل نبی کښ دا صفتونه ضروری دی۔
فَاعْفُ عَنْهُمْ، دا تفریع ده په لنت باندے یعنی نرم اخلاق مستلزم دی روستو دریے وایه کارونو لره۔ اول عفو کول دَ هغه حقوقو چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره تعلق لری۔

دویم وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ، په هغه حقوقو کښې چه تعلق دَ الله تعالیٰ سره لری۔

وَشَاوِرْهُمْ فِی الْاَمْرِ، دا ئې روستو دَ عفو او استغفار نه ذکر کړو اشاره ده چه په عفو او مغفرت سره دوی اهل دَ شوری اوګرځیدل۔ شَاوِرْ، دَ شَوْرٌ نه دے شور یو ځاروے دَ سوړلیٔ معلوموَل چه منډه وهی اوکه نه۔ یا شور په معنیٰ دَ اخستلو یو څیز دی دَ خپل مناسب ځائے نه دارنګ په مشوره کښې دَ عالم عاقل تجربه کار نه رائې اخستل دی۔ الْاَمْرِ، مراد دَ دے نه هغه کار دے چه مهم وی مراد دَ دینه تشریع نه ده ځکه چه په تشریع کښې وحی شته دے بلکه مراد دَ دینه هغه اهور دی چه مصالح دَ مسلمانانو او طریقے دَ جنګ کولو دی۔ قرطبی دَ ابن خویز منداد نه نقل کړیدی چه واجب ده په والیانو مشوره کول دَ علماؤ سره په امورو دَ دین کښې۔ او دَ مشرانو دَ فوج سره په کارونو دَ جنګ کښې۔ او دَ نورو مشرانو تجربه کارانو سره په عامو مصالحو دَ خلقو کښې۔ او دَ وزیرانو منشیانو عاملانو سره په مصالحو دَ آبادو او دَ کاروبارونو کښې۔ دَ حسن بصری نه روایت دے چه الله تعالیٰ خپل نبی ته امر دَ شوری دَ وجے دَ حاجت دَ هغه نه دے ورکړے بلکه دَ دے دَ پاره چه دَ ملګرو الفت پیدا شی او نفسونه ئې خوشحاله شی او نورو متیانو دَ هغه اقتداء اوکړه په مشوره اخستلو کښې ځکه چه دا صفت دَ مؤمنانو دے په سورة شوری (وَالَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمْ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَمْرُهُمْ شُوْرٰی بَيْنَهُمْ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ۳۸) کښې او دارنګ په وخت دَ بچی دَ پیو نه پریکولو کښې (فَاِنْ اَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا، او قرطبی په باب دَ مشوره کښې ډیر تفصیل ذکر کړیدے۔

فَاِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ، یعنی هر کله چه ستا زړه کلک شی په یو کار باندے روستو دَ مشورے کولو نه نو په کار باندے عمل کولو کښې توکل په الله تعالیٰ باندے کوه ځکه هغه پوره عالم دے

اِنْ يَّنْصُرْكُمُ اللّٰهُ فَلَا غَالِبَ
كه امداد اوكړي تاسو سره الله تعالى نو نشته زورآور
لَكُمْ ۚ وَاِنْ يَّخْذُلْكُمْ فَمَنْ
په تاسو باندے او كه پرېږدي الله تعالى تاسو نو څوك دے
ذَا الَّذِيْ يَنْصُرُكُمْ مِّنْ بَعْدِهٖ ۗ
هغه كس چه امداد به اوكړي تاسو سره روستو دَ هغه نه،
وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۶۰﴾
او خاص په الله تعالى د ځان اوسپاري مؤمنان.

په كارونو دَ مصلحت باندے اوقادر دے دلته مراد دَ توكل نه اميد دَ كاميابئ دَ هغه كار دے دَ الله تعالى نه. نه دَ مخلوق نه.
اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِيْنَ، دا دَ دے وجے نه چه توكل علامه دَ صدق دَ ايمان ده او اعتقاد دَ احتياج دے الله تعالى ته او استغناء نه كول دي او دا لوے ادب دے نو سبب دَ محبت دے.
۱۶۱: ربط:- هر كله چه مخكښ آيت كښ بعضے علامات دَ نصرت الهيه ذكر شول چه هغه رحمت دَ الله تعالى دے په رالېږلو دَ داسے رسول چه ښائسته اخلاقو والا دے نو اوس فائده دَ نصرت الهيه او نقصان دَ عدم نصرت دَ هغه ذكر كوي. دا رنګ مخكښ آيت كښ امر په توكل دَ الله تعالى او مدح دَ توكل ئے ذكر كړله اوس علت بيانوي دَ پاره دَ تخصيص دَ توكل په الله تعالى پورے.
اِنْ يَّنْصُرْكُمُ اللّٰهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ، دا اګرچه په ظاهر كښ جمله خبريه شرطيه ده ليكن مقصد پكښ انشاء ده يعنى اسباب دَ نصرت الهيه حاصل كړئ چه لوے سبب دَ هغے نه اطاعت دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم دے او دَ اسبابو دَ خذلان نه ځان بچ اوساتئ او دَ اول مثال غزوه بدر دَ او ددويم مثال غزوه دَ احد دے.
فَلَا غَالِبَ، په دے لفظ كښ تصريح ده په نفى دَ غالب په

په طریقه عموم سره دَ دے وجے نه لَا تُخْذَلُوْا ئے اوته وئیل.
سوال :- نصرت دَ الله تعالیٰ خو مستلزم دے غلبے لره نو داخو داسے شو لکه چه او وئیلے شی که تاسو الله تعالیٰ غالب کړے نو بل څوک غالب په تاسو نشته او په دے کلام کښې خو ډیره فائده نشته دے ؟
جواب :- دلته مراد اِنْ يَّنْصُرْكُمْ نه اراده دَ نصرت ده لکه (وَ اِنْ يُّرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَآدَّ لِفَضْلِهٖ - یونس ۱۰۷).
لَكُمْ ، په صله دَ غلبه کښې علیٰ راځی لیکن دلته لام ذکر دے دَ دے وجے نه چه غالب متضمن دے معنیٰ دَ مغلوب کولو لره او دَ هغے سره لام مناسب دے یعنی نشته داسے څوک غالب چه تاسو ته مغلوبیت درکړی - یعنی نشته داسے غالب چه منع کړی ستاسو نه نصرت دَ الله تعالیٰ.
وَ اِنْ يَّخْذُلْكُمْ ، خذلان ، پریښودلو دَ امداد ته وئیلے شی.
فَمَنْ ذَا الَّذِيْ يَنْصُرُكُمْ مِّنْۢ بَعْدِهٖ ، مَنْ ، استفهام انکاری دے یعنی نشته هیڅوک نصرت کوونکے فلا ناصر لکم ئے او ته وئیل دَ پاره دَ شفقت کولو په مؤمنانو باندے یعنی دَ مؤمن نه الله تعالیٰ مطلق نصرت نه قطع کوی.
مِنْۢ بَعْدِهٖ ، ضمیر راجع دے خذلان ته چه په یخذلکم کښې ضمناً موجود دے.
وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ، دا په طریقه دَ نتیجے سره دے یعنی مخکښې آیت کښې فتوکل علی الله په طریقه دَ دعوی سره وو او دغه دعوے ته ترغیب ذکر کوی په (ان الله یحب المتوکلین) بیا ئے په هغے باندے دلیل ذکر کړو نو روستو دَ دلیل نه نتیجه ئے ذکر کړه او قاعده دا ده چه اثبات دَ دعوی په دلیل سره اوشی نو په نتیجه کښې حصر او تاکید ذکر کیږی دَ دے وجے نه دلته وعلی الله مخکښې ذکر کړو او المؤمنون کښې اشاره ده چه دَ توکل بنیاد په ایمان باندے دے.

وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَغُلَّ

او نه دے لائق دَ شان دَ نبی سره چه خیانت اوکړی

وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ

او چا چه خیانت اوکړو نو راِبه شی دَ هغه څیز سره چه خیانت ئې کړیوی

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ ثُمَّ تُوَفّٰى

په ورځ دَ قیامت بیا به پوره ورکړے شی

كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ

هر چاته بدله دَ هغه عمل چه کړے وی هغه او په دوی به

لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۱۶۱﴾

ظلم نشی کیدے۔

۱۶۱: ربط ۱ :۔ ابن عاشورونیلی دی چه مخکښ نصرت الهیه ذکر شو او دَ هغے دَ حصول دَ پاره ضروری ده چه ځان به دَغلول نه بچ ساتی او نبی صلی الله علیه وسلم ته هم نسبت دَغلول نه کوی۔

ربط ۲ :۔ دَ مخکښ نه په تیر شوی آیت کښ عظمت شان دَ نبی صلی الله علیه وسلم په اعتبار دَ اخلاقو سره ذکر شو نو اوس دَ هغه صفت سلبیه ذکر کوی چه عصمت دے دَ هر قسم غلول نه که په مال کښ وی او که په وحی کښ وی ۔ او مناسبت دَ مسئلے دَ غزوه احد سره را کرچه سبب دَ نزول دَ دے آیت لکه چه ترمذی او ابوداؤد ذکر کړیدے په واقعه دَ بدر کښ دے) دا دے چه هغه غلوبیت کسان چه دَ خپل مقام نه راکوز شوی وو په وخت دَ غنیمت راغونډولو کښ دَ هغوی په زړه کښ دا خوف د وچه کیدیشی چه نبی صلی الله علیه وسلم به مونږ له دَ دے نه هیڅ حصه را نکړی نو الله تعالیٰ دَ نبی عصمت ذکر کړو۔

وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّغُلَّ ، وَمَا كَانَ ، دا صيغه دَ انكار ده چه مبالغه په نفی کښ پيدا کوی - او تخصيص دَ نبی صلی الله عليه وسلم دَ دے وجے نه شوے چه هغه امير او مالک دے دَ هغه د پاره غلول جائز نه دے نو دَ نور لښکر دَ پاره خو په طريقه اولی سره جائز نه دے - او بله وجه دا ده چه آيت نازل شو په باره دَ نبی صلی الله عليه وسلم لکه چه دَ دے په سبب نزول کښ مفسرينو ذکر کړيدی - يَغُلَّ ، دَ غلول نه دے غلول په لغت کښ دلالت کوی په پټولو باندے يا په بدلو باندے او په عرف دَ شرع کښ خيانت کول دی په غنيمت کښ - او کله مطلق خيانت کول په مال او په امانت دَ غير مال کښ هم استعماليږی. او مقصد دَ دے جمله امتيانو ته خطاب دے چه هر کله دَ نبی شان دَ غلول نه اوچت دے نو هغه ته نسبت دَ غلول مه کوئ او دا مناسب دے دَ بل قراءت سره چه (مَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يُّغَلَّ) - او قرطبی او ابن کثير او آلوسی وئيلی دی چه دا غلول دَ وحی او دَ علم او منع کول دَ کتابونو (دَ مستحق کسانو نه) ته شامل دے -

وَمَنْ يَّغْلُلْ يَاْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ، په ديکښ قباحت شان دَ غلول ذکر کوی دليل دے چه دا گناه کبيره دے -
يَاْتِ بِمَا غَلَّ ، بَاء ، دَ پاره دَ مصاحبت ده يعنی چه دَ قيامت ميدان ته راځی نو هغه څيز به ورسره وی کوم چه يے په غلول سره اخستلے وی او دا سے په حديث دَ بخاری او مسلم کښ راغلی دی مضمون يے دا دے چه چا غلول کړے وی په اوښ سره يا په غوا سره يا په بيزے ، گډے سره نو هغه به خپل خپل آوازونه کوی او دَ دغه سړی په سټ باندے به سواره وی معنیٰ دَ حديث دا ده چه دغه عملونه به ممثل شی په شکل دَ هغه مال چه په غلول سره اخستلے وی او دا سے تمثيل دَ مرگ او نور اعمالو هم په حديثو سره ثابت دے.
نو بعض معتزله چه دَ دے تاويلات يے کړيدی هغه جائز

أَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ

آیا نو څوک چه تابعداري کوي دَ رضا دَ الله تعالیٰ

كَمَنْ بَاءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللّٰهِ

پشان دَ هغه چا دے چه اخته شوے وي په غضب دَ الله تعالیٰ

وَمَأْوٰىهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ (۱۶۲)

او ځائے دَ هغه جهنم دے، او بد دے ځائے دَ ورتللو دا جهنم۔

نه دي۔ قرطبي او رازي وئیلي دي چه څو پورے حقیقت معنیٰ ممکن وي نو مجاز ته تلل دَ طریقے دَ عرب نه خلاف دے۔ او ابن کثیر په قباحت دَ غلول کښ شپاړس احادیث ذکر کړي دي او قرطبي تفصیل دَ اقوالو نقل کړي دے په پاره دَ سوځولو دَ مال دَ غلول کوونکي کښ هلته ئے او کوره۔
ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ، په مخکښ جمله کښ فضیحت (شرمنده کول) په میدان قیامت کښ ذکر کړو او س دَ هغوي نوره سزا اجمالاً ذکر کوي او لفظ دَ ثُمَّ دلالت کوي چه زمانه دَ فضیحت به هم اوږده وي۔ او مَا كَسَبَتْ کښ غلول داخل دے۔ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ، حال دے دَ پاره دَ تاکید دَ توفی کل نفس۔
س ۱۶۲۔ په دے آیت کښ نور قباحت دَ غلول ذکر کوي چه دا سبب دَ سخط دَ الله تعالیٰ دے دا رنګ دا آیت تفصیل دے دَ توفی کل نفس دَ پاره۔
أَفَمَنِ اتَّبَعَ، په دے آیت کښ تقابل دَ دواړو صفتونو والا دے او دا استفهام په معنیٰ دَ نفي سره دے۔ اتَّبَعَ، په معنیٰ دَ تَطَلَّبَ او کوشش کول په اتباع کښ۔ رِضْوَانَ اللّٰهِ، په دې کښ مضاف پټ دے یعني سبب دَ رضاء دَ الله تعالیٰ نو اکثر مفسرینو وئیلي دي چه مراد دَ دغه سبب نه عدم غلول دے۔ زجاج وئیلي دي مراد ترینه اتباع دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم ده

هُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ

دوی مختلف درجو والا دی په نیز دَ الله تعالیٰ او الله تعالیٰ

بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۶۳﴾

لیدونکے دے دَ هغه عملونو چه دوی ئے کوی۔

اوّل روایت دَ هغه کښ مراد دے جهاد دے۔

کَمَنْ بَآءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللّٰهِ، دلته مراد اسباب د سخط دی۔
سَخَطٍ ډیر غضب او خفګان ته وئیلے شی عذاب ورسره وی او که نه وی۔

وَمَاْوٰىهُ جَهَنَّمُ، دَ دے په مقابل کښ ماوٰیه الجنة پټ دے۔
دَ بِئْسَ الْمَصِيْرُ، مَصِيْرُ ظرف مکان یا مصدر دے په مصیر او مرجع کښ فرق دا دے چه مصیر کښ معنیٰ دَ انتقال ده دَ یو حال نه بل حال ته یعنی دوی په دنیا کښ په نعمتونو کښ دی لیکن په آخرت کښ به په عذابونو کښ وی او مرجع واپس کیدل دی حالت مخکنی ته که تغیر دَ حال پکښ وی او که نه وی۔
۱۶۳۔ په دے کښ تقابل اجمالی دے۔ هُمْ، ضمیر تابعداری کوونکے دَ رضا او خاوند دَ سخط دواړو ته راجع دے او دا جمله په منزله دَ جواب دَ افمن اتبع کښ ده چه لا، پټ دے۔
دَرَجٰتٌ، دا جمله مبالغه ده یعنی دَ دوی تفاوت دَ یو بل نه داسے دے لکه چه دَ درجاتو تفاوت وی نو دلته ذو لفظ یا لهم پټ دے۔ دَرَجٰتٌ، مطلق مرتبو ته وئیلے شی نو دَ جهنم والو په تفاوت باندے ئے اطلاق کیدیشی۔ یا دَ جهنم والو دَ پاره لفظ درکات پټ دے۔ یا ایت خاص دے په جنت والو پورے چه افمن اتبع رضوان الله والا دی۔ عِنْدَ اللّٰهِ، په معنیٰ دَ حکم الله یا دَ علم الله دے۔

دَ اللّٰهُ بَصِيْرٌ بِمَا يَعْمَلُوْنَ، بَصِيْرٌ، صفت مستقل دے دَ علیم نه په دیکښ معنیٰ دَ لیدلو موجوده ده۔ بِمَا يَعْمَلُوْنَ، دَ دوی اعمال او دَ هغے درجات پکښ داخل دی۔

لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ

يقيناً احسان كړى دے الله تعالىٰ په مؤمنانو باندے

إِذْ بَعَثَ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْ أَنْفُسِهِمْ

كله چه رالیږلے ئے دے په دوى كښ رسول دَ جنس دَ دوى نه

يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ

بيانوى دوى ته ايا تونه دَ الله تعالىٰ او پاكوى دوى لره

وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ج

او ښائى دوى ته كتاب (قرآن) او پوهه دَ دين (سنت)

وَإِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ

اگر چه دوى وو دَ دينه مخكښ خامخا په

ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۱۶۴﴾

په گمراهئ ښكاره كښ

س۱۶۴: ربط ۱: هر كله چه مخكښ دوه فريقه ذكر شول يو اهل الرضوان بل اهل سخط اوس دَ هغوى تفصيل ذكر كوى. او حال دَ مؤمنانو چه رضوان والا دى. دويم حال دَ منافقانو ذكر كوى په اَوَلَمَّآ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ سره چه دوى اهل سخط دى.
ربط ۲: هر كله مخكښ صفات دَ نبى صلى الله عليه وسلم ذكر شول دَ اخلاقو دَ هغه او عدم غلول او اتباع رضوان نو اوس ترغيب وركوى مؤمنانو ته اتباع دَ هغه ته په ذكر دَ احسان سره تو اشاره ده چه دَ داسے نبى ملگرتيا نه په جهاد كښ تخنيدل پكار نه دى لكه چه بعض په احد كښ اوكړل.
لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ، مَنَّ، احسان ښكاره كول او نعمتونو شمارل دى په بل چا باندے دا دَ بندگانو دَ طرف نه مذموم كار دے دَ وجے دَ ثواب باطيدلو نه او دَ الله تعالىٰ دَ طرف نه محمود كار دے

دَپاره دَ تذکیر او ترغیب دَ شکر کولو دے او دا رنګ په افعالو دَ بندګانو او دَ الله تعالیٰ کښې فرق وی۔
عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ، مراد دَ دے نه مؤمنان دَ هغه وخت دی چه عرب وو یا مؤمنان دَ ټولو زمانو عرب او عجم دی او تخصیص دَ مؤمنانو دَ دے وجے نه دے چه هغوی ترینه نفع حاصل کړیده ۔
اِذْ بَعَثَ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ ، مراد دَ دینه هم جنس دی لکه په سوره توبه ب۱۲۸ کښې او چه هم جنس دَ هغوی دے نو بشر دے او اوله وجه دَ امتنان دا ده چه په وجه دَ بشریت سره دوی ته دَ هغه نه هدایت او علم ایزده کول آسان دی ځکه چه دَ هم جنس په مینځ کښې نفرت او وحشت طبعی نه دی ۔ دویمه دا ده چه دَ دوی پښان بشر دے لیکن هر کله چه ئے معجزات ما فوق البشریه ښکاره کړل نو یقیناً معلومه شوه چه دا حق رسول دے او که مراد دَ مؤمنین نه صرف عرب وی نو وجه دَ امتنان دا ده چه عرب دَ دَه دَ وجے نه دَ ټولو قومونو نه اشرف شول ۔ او وجه دَ انفسیة دَ عرب سره دا ده چه په ټولو خاندانونو دَ عرب کښې دَ نبی صلی الله علیه وسلم نسبی شرکت وو ما سیوا دَ بنو تغلب نه چه هغوی نصاری وو نو الله تعالیٰ زمونږ نبی دَ هغوی دَ شرکت دَ نسب نه ېج ساتلے دے ۔
فائده :- آلوسی نقل کړیدی چه دَ شیخ ولی الدین عراقی نه تپوس اوکړے شو چه علم په بشریت او عربیت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم فرض عین دے او که فرض کفائی دے نو هغه جواب ورکړو چه دا علم (فرض عین) شرط دے دَ صحت دَ ایمان دَپاره نو که یو شخص اُوائی چه زه ایمان لرم دَ هغه په رسالت باندے لیکن نه پوهیږم چه هغه دَ جنس دَ بشر نه وو یا دَ ملائکو نه یا دَ جناتو نه او نه پوهیږم چه دَ عرب نه وو او که دَ عجم نه وو نو شک نشته په کفر دَ دغه شخص کښې ځکه دے دَ قرآن تکذیب کوی یعنی په دے آیت کښې دَ هغه درے صفات ذاتیه ذکر دی ۔ فِيْهِمْ ، کښې

أَوَلَمَّآ أَصَابَتْكُم مُّصِيبَةٌ قَدْ

آیا او هر وخت چه اورسیده و تاسو ته مصیبت نو یقینًا

أَصَبْتُم مِّثْلَيْهَا قُلْتُمْ أَنَّىٰ

تاسو رسولے دے دوچند دَ هغے او تاسو وائی دَ کوم ځائے نه دے

هَٰذَا ۖ قُلْ هُوَ مِنْ عِندِ

دا ؟ ته اُوایه چه دا دَ طرف

أَنفُسِكُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ

دَ نفسونو ستاسو نه دے یقینًا الله تعالی په هر

شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٦٥﴾

څیز باندے قدرت لری۔

عربیت ته اشاره ده رسولًا کښ دَ هغه رسالت ذکر دے۔ او من انفسهم، کښ دلیل دے دَ هغه په بشریت باندے۔
نور تفسیر دَ دے آیت په سوره بقره ۱۲۹ کښ تیر شوید ے۔
وَإِن كَانُوا مِن قَبْلُ، مضاف الیه پټ دے یعنی قَبْلَ بَعْثَتِهٖ۔ لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ، دا جمله بیان دے دَ تکمیل دَ نعمت دَ بعثت دَ هغه یعنی بعثت دَ هغه سبب دے دَ بچ کیدلو دَ گمراهئ نه۔ مُبِینٍ، کښ اشاره ده چه دوی شرک او ظلمونه کول او هغه ښکاره گمراهی ده۔
۱۶۵ ربط لـه :- هرکله چه امتنان په مؤمنانو باندے ذکر شو په بعثت دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره نو منافقانو اعتراض اوکړو چه دا څه رنگه احسان دے او حال دا چه په احد کښ دَ دے نبی په ملګرتیا کښ غټ مصیبت اورسیدلو او مؤمنانو هم تعجب (غیر اختیاری) اوکړو چه دَ نبی په ملګرتیا کښ دا مصیبت موږ ته ولے اورسیدلو۔
ربط ۲ه :- مخکښ دَ منافقانو دَ یو اعتراض په رسول باندے

جواب ورکړے شو چه هغه نسبت دَ غلول وو هغه ته نو اوس دَ هغوی دَ بل اعتراض جواب کوی۔ او په جواب کښ بیا درے علتونه دَ هزیمت احد ذکر کوی۔ په درے آیاتونو کښ۔

أَوَلَمَّا أَصَابَتْكُمْ مُصِيبَةٌ، همزه دَ استفهام انکاری دے یعنی زجر دے په دغه راتلونکی قول دَ دوی باندے۔ او ابن عطیه وئیلی دی چه دا استفهام تقریری دے یعنی دا قول دوی کړے دے او معطوف علیه پټ دے یعنی أَفَعَلْتُمْ كَذَا وَقُلْتُمْ حِينَئِذٍ كَذَا۔

مُصِيبَةٌ، مراد دَ دینه شهادت دَ اویا کسانو او زخمی کیدل دَ نبی صلی الله علیه وسلم او بعض صحابه کرامو دی سره دَ فوت کیدلو دَ غنیمت نه۔

قَدْ أَصَبْتُمْ مِثْلَيْهَا، دا جمله صفت دے دَ مصیبة دپاره یا حال دے۔ مراد دَ دے نه مالونه دَ غنیمت حاصلول دی۔

قُلْتُمْ أَنَّى هَذَا، دا محل دَ استفهام دے او دا خطاب دے مؤمنانو ته په طریقه دَ تعجب دَ هغوی سره لکه أَمْ حَسِبْتُمْ کښ هغوی ته خطاب دے او مصیبت هم مؤمنانو ته رسیدلے وو په ورځ دَ احد یا دا خطاب منافقانو ته دے او خطاب دَ امحسبتم په دے اعتبار سره دے چه دوی ځان په مؤمنانو کښ شمارل او دا قول غوره دے۔

قُلْ هُوَ مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِكُمْ، مراد په دے سره درے امور دی اول دا چه تاسو مرکز خالی کړو او عصیان دَ رسول صلی الله علیه وسلم اوکړو او دَ میدان جهاد نه اوتختیدلئ۔ دویم دا چه تاسو غوره کړے وو راوتل دَ مدینے نه احد ته دپاره دَ جهاد۔ دریم په حدیث دَ ترمذی کښ راغلی دی چه ورځ دَ بدر کښ هر کله صحابه فدیه اخستل دَ قیدیانو نه غوره کړله نو دوی ته اووئیلے شو چه فدیه واخلئ لیکن ستاسو نه به قتل کولے شی اویا کسان۔

إِنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، یعنی الله تعالی ستاسو په امداد

وَمَآ اَصَابَكُمْ يَوْمَ الْتَقَى

او هغه (مصيبت) چه رسيدلے دے تاسو ته په هغه ورځ چه مخامخ شوے

الْجَمْعٰنِ فَبِاِذْنِ اللّٰهِ وَلِيَعْلَمَ

دواړه لښکرے نو دا په حکم دَ الله تعالىٰ دے او دے دپاره چه ښکاره کړي

الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٦٦﴾

مؤمنان -

باندے قادر دے ليکن دَ هغه سبب دَ وجے نه ستاسو نصرت ئے اونکړو- په مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِكُمْ، کښ اشاره ده سبب ته نو دا رد دے په جبريه باندے او ذکر دَ قدرت دَ الله تعالىٰ کښ رد دے په قدريه باندے -

١٦٦ :- په دے آيت کښ دوه علتونه نور ذکر کوى - اول علت فَبِاِذْنِ اللّٰهِ - دا خو عام علت دے څکه هر څيز دَ خير او شر په اذن دَ الله تعالىٰ سره دے - او دويم علت خاصه دے تعلق لرى دَ مصيبت سره چه هغه وَلِيَعْلَمَ الْمُؤْمِنِيْنَ دے او مراد دَ علم نه امتياز او اظهار دے داسے مخکښ تير شويدى -

سوال :- مَآ اَصَابَكُمْ کښ مَا شرطيه دےليکن دَ دے په خبر کښ فَاء ، په دے شرط سره داخليږى چه فعل دَ استقبال وى او اَصَابَكُمْ خو فعل ماضى ده ؟

جواب :- ابن عطيه و ثعلبى دى چه فاء په داسے وخت کښ داخليدلے شى چه جزا سبب دَ پاره دَ شرط وى نو دلته ترتيب دَ عبارت په اصل کښ دا دے ( وَمَآ اَذِنَ اللّٰهُ فِيْهِ فَهُوَ الَّذِىْٓ اَصَابَكُمْ ) ليکن اصابت اهم وو په نفسونو کښ دَ دے وجے نه هغه ئے مخکښ کړيدے -

فَبِاِذْنِ اللّٰهِ ، دلته مراد اذن نه قضاء او تقدير دے ( ابن عباس ) -

وَلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ نَافَقُوْا ۚ

او دے دپاره چه ښکاره کړی هغه کسان چه منافقت ئې کړی دے

وَقِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوْا

او وئیلے شویدی دوی ته راشئ جنګ اوکړئ

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوِ ادْفَعُوْا ؕ

په لار دَ الله تعالیٰ کښ یا دفع کړئ دشمن ،

قَالُوْا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّاتَّبَعْنٰكُمْ ؕ

دوی وئیل که پوهیدلے موتږ په جنګ کولو خامخا موتږ به تابعداری کړے وے ستاسو

هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ اَقْرَبُ

دوی کفر ته په دغه درځ زیات نیزدے دی

مِنْهُمْ لِلْاِيْمَانِ ۚ يَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِهِمْ

په نسبت دَ ایمان ، وائی دوی په خلو خپلو باندے

مَّا لَيْسَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ

هغه چه نیشته په زړونو دَ دوی کښ ، او الله تعالیٰ

اَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُوْنَ ۚ ﴿۱۶۷﴾

ښه پوهه دے په هغه څه چه دوی پټوی۔

وَلِيَعْلَمَ الْمُؤْمِنِيْنَ، دا عطف دے په معنیٰ دَ اذن الله باندے عطف دَ سبب دے په مسبب باندے۔
الْجَمْعٰنِ، نه مراد جمع دَ مؤمنانو او جمع دَ کافرانو ده په احد کښ۔
۱۶۷۔ په دے آیت کښ آخری علت ذکر کوی او ورسره دَ منافقانو قبائح ذکر کوی چه هغه په دے آیت کښ څلور دی.
اول صفت ئې نَافَقُوْا، دے چه مراد دَ دے ښکاره کول

دَ اسلام او پټ ساتل دَ کفر دی او دویم صفت۔
وَقِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ، دا جمله عطف دے په صفت باندے او عطف دَ خاص دے په عام یا عطف دَعلامت دَ څیز دے په هغه څیز باندے۔ تَعَالَوْا، کښې دعوت دی دَ اوچت فعل او قَاتِلُوْا جواب امر دے یعنی راشئ دَ پاره دَ قتال کولو۔ او قائل په قیل کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم دے یا نور صحابه کرام۔
اَوِادْفَعُوْا، او، دَپاره دَ تخیر دے او دَ دواړو فرق دا دے چه که ستاسو په زړونو کښې محبت دَ دین اسلام وی نو دَ هغے دپاره قتال اوکړئ او که محبت دَ دین اسلام نه وی نو کم ازکم دَخپل نفسونو او اهل او مال نه خو دفاع دَ دشمن اوکړئ یا قتال کښې خو عمل دَ قتل دے او دفاع کښې دَ جماعت دَ مؤمنانو ډیرول دی دَپاره دَ هیبت اچولو په دشمن باندے۔
قَالُوْا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّا تَّبَعْنٰكُمْ، مخکښې تمهید وو او دا صفت دَ منافقانو دے۔ دا جواب دَ سوال پټ دَپاره دے۔ یعنی دوی څه جواب اوکړو دَ تعالوا دَپاره نودا وئیل قالوا الخ نودَدے وجے نه دَ دے عطف ئے په ما قبل نه دے کړے۔ او دَ دے قول دَ دوی دوه مطلبه دی اول مطلب دا چه مونږ دَ هیڅ نه خبر نه یو نه د واقع کیدلو دَ قتال نه او نه دَ طریقے دَ قتال نه او دا قول دَ دوی په طور دَ معاندے او مکابرے سره وو یا په طور دَ تجاهل (ځان په زوره جاهل کول) سره۔ دویم مطلب دا دے چه دا قتال فی سبیل الله نه دے دا هسے یو بل وژل اوظلم کول دی او دا قول دَ دوی تصریح ده په کلمه دَ کفر باندے ځکه دَ نبی صلی الله علیه وسلم عمل ته دَ دوی دَ ظلم نسبت اوکړو دَ دے وجے نه ورپسے فرمائیلی دی۔
هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ اَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْاِيْمَانِ، دا دَ دوی بل صفت قبیحه دے۔ هُمْ، مبتدا ده او اَقْرَبُ، اسم تفضیل دے خبر دے او لِلْكُفْرِ او لِلْاِيْمَانِ، دواړه په اقرب

پورے متعلق دی۔
سوال :- دوه حروف جاره چه یو شان وی په یو عامل پورے هله متعلق کیدیشی چه په عطف یا بدلیت سره وی دلته خو عطف او بدلیت دواړه نشته۔
جواب :- دا خاص دے په افعل التفضیل پورے ځکه افعل التفضیل په منزله دَ دوه فعلونو دے او لام او من او الی په صله دَ افعل التفضیل کښ راتلے شی۔
يَوْمَئِذٍ ، متعلق دے په اقرب پورے دا رنګ مِنْهُمْ، هم په دے پورے متعلق دے او دا مِنْ دَ پاره تفضیل دے په مفضول باندے داخل دے۔ نو حاصل معنیٰ دَ دے جملے دا ده چه دوی مخکښ دَ دے وخت نه پټو ونکی دَ نفاق وونو په ظاهرکښ دَ کفر نه ډیر لرے وو هر کله چه دوی دَ امداد دَ مسلمانانو نه رجوع اوکړه نو پټ نفاق ئے ښکاره شو نو اوس دوی کفر ته ډیر نزدے شول په نسبت دَ نزدیکت دَ دوی ایمان ته۔ یا معنیٰ دا ده چه دوی کافرانو ته ډیر نزدے دی په نصرت کولوکښ په نسبت دَ مؤمنانو ځکه هرکله چه ملګرتیا دَ مسلمانانو پریښودله دَ هغوی لښکر ئے کم کړو نو دا سبب شو دَ تقویت دَ کافرانو بنا په دے توجیه مضاف پټ دے یعنی اهل الکفر و اهل الایمان۔
دَ حسن بصری نه روایت دے چه هرکله الله تعالیٰ اوفرمائیل چه دوی کفر ته ډیر نزدے دی نو معلومه شوه چه دوی کافر دی۔ او واحدی په وسیط کښ وئیلی دی چه دا دلیل دے چه چا کلمه دَ کفر وئیلی وی نو تصریح به دَ هغه په کفر باندے نشی کیدلے۔ ترڅو چه تحقیق نه وی کړے شوے
يَقُوْلُوْنَ بِأَفْوَاهِهِمْ مَّا لَيْسَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ، دا دَ دوی بل صفت قبیحه دے او دا جمله مستانفه جواب دَ سوال دے چه دوی کلمه دَ توحید وائی نو څه رنګ او ئیلے شو چه دوی کفر ته نزدے دی حاصل جواب دا دے چه دَ دغه وینا سره

الَّذِيۡنَ قَالُوۡا لِاِخۡوَانِهِمۡ

دا هغه کسان دی چه وائی په باره دَ ورونړو خپلو کښی

وَقَعَدُوۡا لَوۡ اَطَاعُوۡنَا مَا قُتِلُوۡا ؕ

او ناست دی (دَ جهاد نه) که دوی زمونږ خبره منلے، نه به وو وژلے شوے.

قُلۡ فَادۡرَءُوۡا عَنۡ اَنۡفُسِكُمُ

ته اُووایه نو دفع کړئ دَ خپلو ځانو نو نه

الۡمَوۡتَ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ ﴿۱۶۸﴾

مرګ که تاسو رشتینی یئ -

دَ زړه عقیده نشته - ځکه دوی کفر ته نزدے دی -

سوال :- قول خو په خُلے باندے وی نو بافواههم ئے ولے ذکر کړو ؟

جواب ۱ :- دا تاکید دے ځکه قول کله نفسانی هم وی ئیلے شی نو په دے لفظ سره معلومه شوه چه دلته مراد قول لسانی دے.

جواب ۲ :- دلته دَ افواه او دَ قلوب تقابل دے دپاره دَ بیان دَ نفاق دَ دوی یعنی ایمان ئے صرف په افواه کښی موجود دے او نیشته په قلوبو دَ دوی کښی - وَاللّٰهُ اَعۡلَمُ بِمَا یَکۡتُمُوۡنَ ،

سوال :- په پټ څیز چه هر کله دوه کسان علم لری نو دا سے نشی وئیلے چه فلانے اَعۡلَم دے ؟

جواب :- علم دَ الله تعالیٰ په ما یکتمون باندے علم تفصیلی دے دَ بل چا علم دا سے نشی کیدے -

۱۶۸ :- په دے آیت کښی دَ منافقانو بل صفت قبیحه دے دَ مخکنی صفتونه لازمی دی او دا متعدی دے غیر ته - یعنی نور خلق دَ قتال نه منع کوی دَ دے وجے نه دائے په مستقل آیت کښی ذکر کړو.

الَّذِيۡنَ قَالُوۡا لِاِخۡوَانِهِمۡ ، په دے الذین کښی ډیر وجوه دَ اعراب دی حالت دَ رفع (رپیش) ۱ بنا په دے چه دا خبر دے دَ مبتدا محذوف - ۲ یا بدل دے دَ ضمیر دَ یکتمون نه -

ع۳ یا مبتداء دہ او خبر ئے قل فَادْرَءُوْا دے په تقدیر دَ فقل لهم سره - او حالت دَ نصب (زور).
ع۴ په تقدیر دَ فعل ذم سره یعنی اذم الذین - ع۵ یا بدل دے دَ الذین نافقوا نه - ع۶ یا صفت دے دَ هف دَ پاره - حالت دَ جر (زیر) - ع۷ بدل دے دَ ضمیر دَ افواههم نه - ع۸ یا بدل دے دَ ضمیر دَ قلوبهم نه -
لِإِخْوَانِهِمْ، لام اجلیه دے مراد دَ دینه اخوت دَ نسب دے یا مشارکت په وطن کښ -
وَقَعَدُوْا ، دا حال دے دَ ضمیر دَ قالوا نه او مراد دَ قعود نه پاتے کیدل په کورونو کښ یا قتال کښ شرکت نه کول -
لَوْ أَطَاعُوْنَا مَا قُتِلُوْا ، دا جمله مقوله دَ قالوا دَ پاره دہ او مقصد په دیکښ منع کول دی دَ قتال فی سبیل الله نه -
قُلْ فَادْرَءُوْا عَنْ أَنْفُسِكُمُ الْمَوْتَ ، وجه دَ ملازمے دا دہ چه ستاسو په اطاعت سره بل شخص دَ قتل او مرګ نه بچ کیږی نو لازم دا دہ چه تاسو به هم دَ ځانونو نه دَ مرګ نه بچ کوئے شئ او نو لو اهل عقلو ته معلومه دہ چه څوک ځان دَ مرګ نه بچ کوئے نه شی - ذکر دَ موت ئے اوکړو ځکه قتل سبب دَ موت دے او سبب مسبب دواړه په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دی - کشاف وغیره لیکلی دی چه په دغه ورځو کښ دَ دوی نه او بیا کسان بخپل مرګ سره مړه شول او دَ دوی ځان نشو بچ کوئے -
إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ، یعنی صادق ئے په دے خبره کښ چه قعود سبب دَ نجات دے دَ موت نه -
فائدہ :- دا سے مضمون په ۱۵۶ کښ تیر شوید ے لیکن هلته عموم دَ عادت دَ دوی مراد وو ځکه لفظ اذا ، په دے عموم باندے دلالت کوی او دلته دا قول دَ دوی په واقعه دَ احد کښ مراد دے او په واقعه دَ احد کښ صرف او یا ملګری قتل کړے شوے وو بخپل مرګ باندے نه وو مړه شوی ځکه په دے آیت کښ ذکر دَ موت ئے کړے نه دے نو معلومه شوه دا تکرار نه دے -

وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا

او گمان مه کوه په هغه کسانو چه او وژلے شول

فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا ۚ بَلْ

په لار د الله تعالیٰ کښې مړه (د عامو مړو پشان) بلکه دوی

أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ﴿١٦٩﴾

ژوندی دی نیزدے دے دی رب خپل ته رزق ورکیدیشی دوی ته۔

۱۶۹:۔ ربط :۔ هر کله چه۔ لَوْ أَطَاعُونَا مَا قُتِلُوا۔ نه معلومه شوه چه منافقانو خلقو مرګ د شهادت برباد ګنړلو د هغې نه ئې خلق منع کول نو په دے آیاتونو کښې د هغوی د دے ګمان رد کوی د دے وجے نه عطف سره ئې ذکر کړو۔

وَلَا تَحْسَبَنَّ ، خطاب نبی صلی الله علیه وسلّم ته دے او مراد ترینه هر مخاطب دے او تعریض دے په منافقانو باندے حسبان، ظن او ګمان ته وئیلے شی نو هر کله چه منع او کړله د ګمان کولو نه دوی باندے د اموات نو د یقین کولو نه په مرګ د هغوی باندے په طریقه اولی سره منع اوشوه او دا رنګ په قرآن کریم کښې په ډیرو آیاتونو کښې نهی د حسبان ئې کړیده او هغه مستلزم ده نهی د یقین او اعتقاد لره لکه په سوره ابراهیم ۴۲ ، ۴۷۔ او هر کله چه دلته رد دے په عقیده د منافقانو باندے نو د دے وجے نه ئې نهی د حسبان نه او کړله چه مستلزم ده نهی د عقیدے لره او په سوره بقره ۱۵۴ کښې صرف ذکر د ادب وو مؤمنانو ته نو هلته صرف لا تقولوا ، وئیلے دے۔

الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ، دا مفعول اول دے د تحسبن د پاره او أَمْوَاتًا ، دویم مفعول دے نکره ده مراد ترینه یو نوع د مرګ ده چه هغه موت د روح یا مشابه کیدل د عامو مړو سره دی۔

بَلْ أَحْيَاءٌ ، بَلْ ، اضراب دے د جملے لا تحسبن آه نه او

اضراب دَ جملے نه په جملے سره وی نو دلته هُمْ پټ دے بَلْ هُمْ اَحْيَآءٌ۔ نو دوی لره یو قسم حیات ثابت دے چه دَ هغے تفسیر په حدیث دَ ابوداؤد او احمد کښ دَ عبد الله بن عباس رضی الله عنه نه نقل دے (مضمون ئے دا دے) چه هرکله په احد کښ ادیا کسان شهیدان شول نو الله تعالیٰ دَ هغوی ارواح دَ شنو مارغانو په خیټو کښ واچول چه نهرونو دَ جنت ته تلل او دَ جنت میوے ئے خوړلے او آرام ئے کوو په هغه قندیلونو کښ چه دَ عرش دَ لاندے آویزان دی نو هرکله دوی دا مزے اولیدلے او اوخکلے نو دوی اوئیل آرمان چه وروڼو زمونږ ته علم وے دَ دے حال چه زمونږ دے دَ دے دَ پاره چه جهاد نه روستو نشی نو الله تعالیٰ اوفرمائیل زه به دا خبر ستاسو نه هغوی ته اورسوم نو دا آیات نو نه الله تعالیٰ نازل کړل۔ یعنی مونږ له ئے خبر راکړو چه دَ دوی ارواح ژوندی او په مزو کښ دی او دَ جنت میوے خوری او دا رنګ حدیث دَ مسلم کښ دَ ابن مسعود رضی الله عنه نه نقل دے (مضمون ئے دا دے) چه مونږ دَ دے آیت په باره کښ دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو نو هغه جواب راکړو چه دَ دوی ارواح دَ شنو مرغو په خیټو کښ دی ..... ابن جریر او ابن کثیر او نورو مفسرینو هم دا احادیث دَ دے آیت په تفسیر کښ ذکر کړیدی۔

نو معلومه شوه چه الله تعالیٰ شهداؤ لره موت ظاهری ذکر کړے په دے لفظ سره چه قتلوا او موت حقیقی (روحانی) دَ دوی نه نفی کړیدے په دے قول سره بل احیاءٌ نو معلومه شوه چه دَ دوی ژوند حیات دنیویه نه دے چه اجساد دَوِ دِ بالکل روغ وی او وینه دِ پکښ وی او نبض ئے خوزیږی۔ دا رنګ هغه ژوند صرف دَ ارواحو نه دے کوم چه ټولو خلقو ته ثابت دے بلکه دا ژوند په معنیٰ دَ وجود دَ آثارو دَ حیات دے ارواحو دَ دوی لره چه هغه حصول دَ مزو او دَ خوراکونو دَ جنت دے (ابن عاشور او ابن عطیه وئیلی دی چه دوی خو ضرور مړه شوی دی او

فَرِحِيْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ
خوشحالیږي په هغه څه چه ورکړېدي دوي ته الله تعالیٰ دَ
فَضْلِهٖ وَيَسْتَبْشِرُوْنَ بِالَّذِيْنَ
فضل خپل نه او زېرے به اخلي په باره دَ هغه کسانو کښ چه
لَمْ يَلْحَقُوْا بِهِمْ مِّنْ خَلْفِهِمْ
نه دي رسيدلے دوي ته دَ روستو دَ دوي نه
اَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۱۷۰﴾
چه نه به دي هيڅ يره په دوي باندے او نه به دوي خفه کيږي۔

بدنونه دَ دوي په خاورو کښ دي او ارواح دَ دوي ژوندي پشان دَ ارواحو دَ عامو مؤمنانو دي ليکن دوي له فضيلت ورکړے شوے دے په رزق دَ جنت سره دَ وخت دَ قتل نه گويا که دَ دوي دنيوي ژوند هميشه دے (عين حيات دنيويه نه دے)۔
ابن کثير هم په ابتدا دَ دے آيت کښ وئيلي دي چه دوي اگرچه قتل کړے شوے دي په دارُدنيا کښ ليکن ارواح دَ دوي ژوندي دي او قرطبي وئيلي دي چه دوي ژوندي دي په جنت کښ (نور تفصيل دَ دے متعلق ذکر کړے شويدے په تفسير دَ سورة بقره کښ)
عِنْدَ رَبِّهِمْ، دا لفظ دويم خبر دے دَ هُمْ، پټ دَ پاره يا صفت دَ احياء دے يا ظرف مقدم دے دَ پاره دَ يرزقون۔ او مراد دَ عِنْدَ نه عنديت دَ مکان دے چه جنت دے يا عنديه دَ قرب او شرافت دے۔
يُرْزَقُوْنَ، دا جمله صفت دَ احياء يا دريم خبر دے دَ هُم پټ دَ پاره او مراد دَ رزق، نه رزق دَ جنت دے لکه مخکښ احاديث کښ ذکر شول۔
۱۷۰:۔ فَرِحِيْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ، دا حال دے دَ ضمير دَ يرزقون نه او دا فرح په نعمتونو دَ جنت باندے ده ذا دَ دنيا په نعمتونو باندے نه ده ځکه چه هغه صفت دَ کافرانو دے چه هغه

په سوره قصص ۵۴ کښ دے. مِنْ، اجلیه دے یعنې دا نعمتونه او خوشحالي په عمل سره نه ده ځکه په الله تعالیٰ باندے ثواب ورکول دَ عملونو واجب نه دي بلکه دا دَ هغه دَ فضل دَ وجے نه ده.

وَيَسْتَبْشِرُوْنَ بِالَّذِيْنَ لَمْ يَلْحَقُوْا بِهِمْ مِّنْ خَلْفِهِمْ، دا عطف دَ فعل دے په اسم (فرحين) باندے ځکه دا فعل هم په تاويل دَ اسم کښ دے یا هغه اسم په معنیٰ دَ فعل کښ دے او يَسْتَبْشِرُوْنَ ،سين، او تاء، دَ پاره دَ طلب نه دي بلکه دا دَ پاره دَ قبوليت دَ بشارت دي.

بِالَّذِيْنَ لَمْ يَلْحَقُوْا، په دیکښ دَ مفسرينو دوه اقوال دي - اول قول، دا چه مراد دَ دینه دَ دوی ملګري او اولاد دي چه دوی پریخودلي وو په ایمان او په جهاد کښ نو دوی له په الله تعالیٰ خبر ورکړي چه هغوی شهیدان شي چه تاسو سره په جنت کښ یوځائے شي - او لَمْ يَلْحَقُوْا، نه مراد دا چه دَ دوی سره یو وخت کښ شهیدان شوے نه دي -

دويم قول دا دے چه مراد دَ دینه ټول مؤمنان دي چه قتال ئے نه وي کړے یعنې دوی ته یقین راغے چه دا نعمتونه په اصل په سبب دَ ایمان سره دي نو دَ ځانونو دَ پاره خوشحاله شي په بے شماره نعمتونو چه اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ، کښ مراد دي او خوشحاله به شي دَ عامو مؤمنانو په باره کښ په دے خبره چه هغوی باندے به هم خوف او حزن نه وي یعنې جنت ته به داخل شي او دیته اشاره ده په سوره طور ۲۱ کښ.

اَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ، دا بدل اشتمال دے دَ الذين لم يلحقوا نه دَ "باء" لاندے دے او دا مبشر به یعنې بشارت ورکیدیشي چه له تاسو نه روستو خلقو باندے به خوف او حزن نه وي بلکه جنت ته به داخليږي - یا مبشر به پټ دے او اَلَّا ،کښ لام، اجلیه حذف دے یعنې بشارت به ورکیدیشي په دیرو بشارتونو سره ځکه چه په دوی باندے خوف او حزن نشته دے - او په دیکښ دیر اقوال دي اول قول دا چه نه به ویره وي په دوی باندے په راتلونکي وخت کښ او نه به غمژن کیږي په جدا کے دَ دنیا باندے دويم قول دا دے چه نه به وي

ویره په دوی باندے په باره دَ اولاد دَ دوی کښ او نه په غمژن وی په پاتے شوے مالونو پسے۔ دریم قول دا دے چه نه په ویریږی دَ ناکاره هیبتونو نه او نه به غمژن کیږی په فوت کیدلو دَ نعمتونو سره او په دواړو جملو کښ مقصد دَ همیشوالے دَ عدم خوف او حزن دواړو دے۔

۱۷۱۔ یَسْتَبْشِرُوْنَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ، په دے آیت کښ دریے اقوال دی: اول قول دا چه دا استیناف دے ځکه چه اول استبشار په باره دَ ورورنړو کښ وو او دا استبشار په باره خپل ځانونو کښ دے۔ دویم قول دا دے چه دا بدل دے دَ مخکښ یستبشرون نه دَ پاره دَ تاکید او په اول الا خوف ---آه سره علت ذکر کړے وو او په دے آیت کښ مبشر به ذکر کوی چه نعمت او فضل دے۔
دریم قول دا دے چه اول استبشار دَ شهیدانو وو او دویم استبشار دَ الذین لم یلحقو دَ پاره دَی بناء په دے قول یستبشرون ضمیر الذین لم یلحقوا ته راجع دے۔ فرق په مینځ دَ نعمت او فضل کښ په څو وجوهو سره دے۔

اوله وجه، چه نعمت ثواب دَ عمل دے او فضل دَ هغے نه زیاتے ورکول دی۔

دویمه وجه، نعمت په قدر دَ کفایت سره دے او فضل زیاتی په هغے باندے په سرور او لذت کښ او دواړه ئے نکرے ذکر کړیدی دَ پاره دَ عظمت دَ هغوی۔

الَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِلَّهِ وَالرَّسُولِ

هغه کسان چه منلے دے حکم دَ الله او دَ رسول

مِنْ بَعْدِ مَا أَصَابَهُمُ الْقَرْحُ ط

روستو دَ دینه چه رسیدلے دے دوی ته زخم،

لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا

او دَ پاره دَ هغه چا چه شائسته عمل ئے کړیدے دَ دوینه او یره ئے کړیده

أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿۱۷۲﴾

ثواب لوے دے.

وَأَنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ، دا هم عطف دے په نعمة باندے او هم مستقل بشارت دے ځکه په دنیا کښ دَ دوی سره خوف دَ بد انجام خپل وو او ویره وه په خپل ایمان باندے او دا صفت دَ کامل مؤمن دے نو قیامت کښ ورله بشارت ورکوی چه ستاسو هیڅ عمل برباد شوے نه دے۔ او المؤمنین کښ اشاره ده چه ثوابونه دَ اعمالو بنا دی په ایمان باندے۔

فائده :- په سورة بقره کښ صرف ادب بنودل مراد وو نو په هغے کښ اختصار کړیدے او په دے سورت کښ رد وو په زعم دَ منافقانو باندے نو دَ هغوی بشارتونه په اول آیت کښ څلور ذکر کړل او په دویم آیت کښ دوه بشارتونه ذکر کړل او په دریم آیت کښ درے بشارتونه ذکر کړل ټول نهه بشارتونه دی۔

۱۷۲ :- ربط :- مخکښ آیاتونو کښ بشارت وو دَ پاره دَ شهداؤ دَ احد نو اوس بشارت ذکر کوی زخمیانو دَ احد ته په سبب دَ دویم استجابت سره۔ قرطبی او بعض مفسرینو دَ دے په باره کښ دوه اقوال ذکر کړیدی۔ اول قول :- بخاری او مسلم اجمالاً ذکر کړیدی دَ عائشه رضی الله عنها چه دے ابن زبیر ته وئیلی وو چه اے خوریه ستا پلار او نیکه (زبیر او ابوبکر رضی الله عنهما) دَ الذین استجابو

کښې داخل دی او ووئیل چه کله مشرکان دَ احد نه واپس شول او نبی
صلی الله علیه وسلم او دَ هغه ملګرو ته تکلیف او رسیدلو نو نبی
صلی الله علیه وسلم سره خوف پیدا شو چه هسې نه دوی واپس
را اوګرځی نو هغه آواز اوکړو چه څوک زما سره په دغه مشرکانو
پسې ځی دَ پاره دَ دے چه هغوی ته معلومه شی چه په مونږ کښې
قوت شته دے نو ابوبکر او زبیر سره دَ اویا کسانو نه دا دعوت
قبول کړو او په هغوی پسې اووتل نو هغوی چه واوریدل (چه
دوی را پسې راغلل) نو اوتختیدل او مؤمنان په نعمت او فضل
سره واپس شول او تفصیل دَ دے دا دے چه دَ احد دَ ورځې نه
په دویمه ورځ چه دَ اتوار ورځ وه نبی صلی الله علیه وسلم
دا اعلان اوکړو او اوفرمائیل چه نه به اوځی زما سره مګر هغه
کسان چه پرون زما سره وو نو دوه سوه کسان یا اویا کسان
را اوچت شول او روان شول تر دے چه حمراء الاسد مقام
ته اورسیدلو (او هغه دَ مدینې نه اته میله لرې دے) نو هلته
نعیم بن مسعود یا ابونعیم دوی ته مخامخ شو هغه ورته اوئیل چه
ابوسفیان ستاسو مقابلې دَ پاره ډیر لښکر جمع کړیدے او اراده
لری چه مدینې ته راشی او ستاسو بیخ کندے اوکړی نو صحابو رضی الله عنهم
اُوئیل حسبنا الله ونعم الوکیل نو دوی هلته درے ورځې تیرے
کړے (دَ کل ورځ او پنځمه اوشوړو) دغه وخت معبد خزاعی
قریش او بیرول چه تاسو دَ لښکر دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره
مقابله نشئ کولے نو دَ دوی په زړونو کښې رعب راغے او واپس مکې
ته اوتختیدل او بعضو روایاتو کښې شته دے چه په دغه ځائے
کښې تجارتی میله به لګیدله نو صحابه کرامو په هغې کښې تجارت اوکړو
او ډیره ګټه ئے اوکړله - بل روایت کښې دی چه یو قافله دَ
عبد القیس قبیلې په ابوسفیان باندے را تیریدله نو ابوسفیان
ورته اُوئیل چه تاسو چیرته اراده لرئ هغوی اُوئیل دَ مدینې
او هلته نه غله راوړو ابوسفیان ورته اُوئیل چه مدینې والا
زمونږ نه اوبیروئ چه مونږ دَ هغوی دَ مقابلې دَ پاره ډیر

لښکرے جمع کړیدی او زړه یه تا سو له ډیر انعام درکړم نو هغوی په حمراء الاسد کښ صحابه کرامو ته دغه خبره اوکړله هغوی اوئیل حسبنا الله ونعم الوکیل - دویم قول دَ مجاهد او دَ عکرمه دے چه ابوسفیان دَ احد نه واپس تللو نو نبی صلی الله علیه وسلم ته ئے جواب پریښودلو چه وعده داده چه راتلو نکی کال به په بدر کښ جنګ کوو نو نبی صلی الله علیه وسلم دَ وعدے مطابق بل کال ته بدر ته راغے ابوسفیان دَ رعب دَ وجے نه نهٔ وو راغلے صرف نعیم ئے دَ مسلمانانو یرولو دَ پاره رالیږلے وو هر کله چه نبی صلی الله علیه وسلم دَ صحابو سره هغه ځائے ته راغے هلته بازار لګیدلے وو نو دوی پکښ تجارت اوکړلو الله تعالیٰ ورله ګټه ورکړله - قرطبی او آلوسی وئیلی دی چه اول قول دَ اکثر مفسرینو دے او دویم قول شاذ دے۔

اَلَّذِیۡنَ اسۡتَجَابُوۡا لِلّٰهِ وَالرَّسُوۡلِ، استجابة دَ احکامو دَ الله تعالیٰ موقوف دے په استجابت دَ احکامو دَ رسول دَ دے وجے نه دواړه ذکر کړے او دَ دواړو استجابتونو مقصد یو دے یعنی احکام دَ الله تعالیٰ او دَ هغه دَ رسول منل - او دلته خصوصاً مراد دَ دینه دعوت قبلول دَ رسول دی دَ جهاد دَ پاره -

مِنۡۢ بَعۡدِ مَاۤ اَصَابَهُمُ الۡقَرۡحُ، فرق دَ استجابت او اجابت او فرق دَ قرح او دَ جرح مخکښ تیر شویدے مراد دَ قرح نه دلته مصائب دَ بدن او دَ مال دی چه رسیدلے وو مؤمنانو ته په غزوه دَ احد کښ -

لِلَّذِیۡنَ اَحۡسَنُوۡا مِنۡهُمۡ وَاتَّقَوۡا اَجۡرٌ عَظِیۡمٌ، مستجبین ټول محسنین او متقین دی نو معلومه شوه چه مِنۡ په منهم کښ دَ پاره دَ بیان دے لکه په سورة فتح ۲۹ کښ او په ذکر کولو دَ دے دواړو صفتونو کښ مقصد مدح دَ هغوی ده سره دَ تعلیل نه یعنی استجابت خو سبب دَ اجر دے لیکن په سبب دَ احسان او تقوٰی سره عظمت دَ اجر حاصلیږی - او په دے آیت کښ ادب ذکر دے دَ پاره دَ دفع دَ هزیمت -

الَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ

داهغه کسان دي چه اوئيل دوی ته خلقو (رحاسو سانو)

اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ

يقيناً کافرانو خلقو جمع کړي دي ستاسو مقابلے دپاره (ډيرے لښکرے)

فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا ۖ

نو اويريږئ د دوی نه نو زيات ئے کړو دوی لره ايمان ،

وَقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ

او اوئيل دوی پوره دے مونږ له الله تعالیٰ او ښهٔ

الْوَكِيْلُ ﴿۱۷۳﴾

کارساز دے ۔

۱۷۳:- په دے آيت کښ د صحابه کرامو لوے شان ذکر کوی او په ديکښ تعليم د ادب دے دپاره د دفع د هزيمت چه هغه دا قول دے حسبنا الله ونعم الوکيل دے په وخت د دباؤ د مشرکانو کښ ۔

الَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ ، د اول النَّاسُ نه مراد ابونعيم بن مسعود اشجعی دے بنا په دے د النّاس اطلاق په ده باندے مجازاً شوی دے يا هر کله چه ده دا پراپيګنډه شروع کړه نو څه کسان ورسره ملګری شول نو د النّاس اطلاق د دے وجے نه شوی دے ۔ يا مراد د النّاس نه قافله د عبد القيس قبيلے ده دواړه روايتونو کښ مختکښ ذکر کړے شول ۔ او دويم النّاس نه مراد ابوسفيان سره د نورو ملګرو نه ۔

قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ ، مفعول د دے پټ دے الجنود والاسلحه (لښکرے او وسلے) ۔ لَكُمْ ، نه مراد لِقِتَالِكُمْ د (ستاسو د جنګ دپاره) ۔

فَاخْشَوْهُمْ، مراد دَدینه خوف دے چه دَ هغې وجے نه دوی دَابوسفیان مقابله کول پریږدی۔

فَزَادَهُمْ اِیْمَانًا، ضمیر دَ زَادَ راجع دے قول ته چه په ضمن دَ قالوا کښ دے یا مقول ته۔ او دا صریح دلیل دے چه په ایمان کښ زیاتے راځی او زیاتے مستلزم دے نقصان لره نو زیاتے او کمے پکښ دواړه راځی او دا دوه قسمونه دی اول قسم زیاتیدل دی په اعتبار دَ اعمالو صالحو سره او کمیدل دی په اعتبار دَ ګناهونو سره او دا مستلزم دے دے لره چه اعمال جزء دے دَ پاره دَ ایمان چه دَ هغې په زیاتی کمی سره په ایمان کښ زیاتے او کمے راځی لیکن په انتفاء دَ عمل صالح سره زوال دَ ایمان نه راځی او دا مسلك دَ محدثینو دے۔ او دویم قسم زیاتیدل او کمیدل دی په اعتبار دَ یقین سره ځکه چه یقین دَ جبرائیل او میکائیل او یقین دَ ابو بکر او عمر رضی الله عنهما مثلاً زیات دے په یقین زمونږ باندے او دا ثابت دے په واقعه دَ ابراهیم علیه السلام کښ (لیطمئن قلبی) او دا هم مسلك دَ محدثینو دے او دا قول دَ بعض خلقو چه ایمان بسیط دے او بسیط کښ کمے زیاتے نه راځی دا اصطلاح دَ شریعت نه ده بلکه اصطلاح دَ منطقیانو ده۔ امور شرعیه په دے باندے بناء نه دی۔

وَقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ، دَ دغه جاسوس په قول کښ دوه مقصدونه وو اول خشیت پیدا کول دَ صحابه په زړونو کښ نو دَ هغې په رد کښ او ئیلے شول چه فزادهم ایمانا او دویم مقصد خبر ورکول په جمع ده خلقو سره نو دَ هغې په رد کښ دوی او ئیل حسبنا الله، حسب، اسم جامد دے په معنیٰ دَ کافی سړی دے او دَ ده فعل مستعمل نه دے۔ او صاحب قاموس وئیلی دی چه دا اسم فعل دے په معنیٰ دَ کفی سره دے او سیبویه وئیلی دی چه دا مصدر دے دَ دے وجے نه تثنیه او جمع

فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ

نو رنتیجه دا شوه چه) واپس شول دوی په نعمت دَ الله تعالیٰ

وَفَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ ۙ

او فضل سره نه وو رسیدلے دوی ته هیڅ تکلیف

نه راځي - او تَحَسُّبْ خاص دے په الله تعالیٰ پورے په دلیل دَ سورة الانفال ۶۲، ۶۴ او سورة التوبه ۱۲۹، ۵۹ او زمر ۳۸، سورة النساء ۶، سورة الاسراء ۶۵، سورة الاحزاب ۳۹ -

وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ ، وَكِيْلُ ، فعل په معنیٰ دَ مفعول دے یعنی موکول الیه هغه څوک چه هغه ته سپارنه کیدیشی نو هغه قائم وی په هغه کارچه هغه ته سپارلے شویدی او دا مختلف کیږی په اختلاف دَ کارونو سره او په دے وجے سره معانی دَ وکیل هم مختلف کیږی - نو په معنیٰ دَ دفع کولو دَ دشمنیٔ او دَ ظلم سره راځي په معنیٰ دَ ناصر او دفع کوونکی - لکه (قل لست علیکم بوکیل) - یا (ام من یکون علیهم وکیلا) او دے ته وکیل دَ خصومت وئیلے شی او په معنیٰ دَ کافی او کافل (ذمه وار) سره چه کارونه دَ ډوند چلولو ته ئے نسبت اوکړیشی - لکه (الا تتخذوا من دونی وکیلا) او بنا په دے معنیٰ سره وکیل نوم دَ الله تعالیٰ دے او خاص دے په الله تعالیٰ پورے دے په دلیل دَ سورة النساء ۸۱، ۱۳۲، ۱۷۱، سورة الاسراء ۲، ۶۵، سورة الاحزاب ۴۸، ۳ او سورة المزمل ۹ -

او په حدیث دَ بخاری کښ وارد دی چه دا کلمه ابراهیم علیه السلام وئیلے ده کله چه اور ته او غورځولے شو - او زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم (او صحابوٓ) وئیلے ده کله چه کافرانو ورته او ئیل (ان الناس قد جمعوا لکم) -

وَاتَّبَعُوا رِضْوَانَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ

او تابعداري يې اوکړه دَ رضا دَ الله تعالىٰ او الله تعالىٰ

ذُو فَضْلٍ عَظِيمٍ ﴿١٧٤﴾ إِنَّمَا

لوئے فضل والا دے يقيناً

ذٰلِكُمُ الشَّيْطٰنُ يُخَوِّفُ

دا (جاسوس) شيطان دے يره دى تاسو

أَوْلِيَاءَهُ ۠ فَلَا تَخَافُوهُمْ

دَ ملګرو خپلو نه ، نو مهٔ يريږئ دَ هغوى نه

وَخَافُونِ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿١٧٥﴾

او او يريږئ زما نه ځکه چه تاسو مؤمنان يئ ـ

۱۷۴:ـ دا دَ مخکښ صفاتو جزاء ده چه استجابت او زيادت دَ ايمان او قول دَ حسبنا الله او نعم الوکيل جزا کانے هم ځلور دى ـ ۱ نعمت ، ۲ فضل ، ۳ تکليف نه رسيدل ، ۴ او اتباع دَ رضا دَ الله تعالىٰ ـ مراد دَ نعمت نه سلامتيا او ـ روغ کيدل دى دَ دشمن نه ـ او فضل زياته ګټه ده په تجارت کښ ـ

لَمْ يَمْسَسْهُمْ سُوٓءٌ ، يعنى هيڅ زخم او تکليف په دغه سفر کښ او نه رسيدلو ـ

وَاتَّبَعُوا رِضْوَانَ اللّٰهِ ، او دا په سبب دَ نيت دَ جهاد فى سبيل الله او بهادرئ او شجاعت دَ دوى سره ـ

وَاللّٰهُ ذُو فَضْلٍ عَظِيمٍ ، دا اشاره ده ثوابونو دَ آخرت ته چه هغه دَ دنيا دَ عوضونو نه ډير عظمت لرى ـ

۱۷۵:ـ مخکښ ذکر شوه چه صحابه دَ الناس په قول سره او نهٔ ويريدل او س په دے آيت کښ مؤمنانو لره پوخ والے ورکوى په دے عقيده باندے ـ

ذٰلِكُمْ ، اشاره ده ابو نعيم يا قافلے دَ عبد القيس يا ابوسفيان ته

وَلَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ

او نه دِ خفه کوي تا هغه کسان چه جلتي کوي

فِي الْكُفْرِ اِنَّهُمْ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ

په کارونو د کفر کښې، يقيناً دوي چرے ضرر نشي ورکولے الله تعالیٰ ته

نو دوي ته ئے شيطان وئيلے دے ځکه چه دوي منع کوونکي وو مؤمنانو لره دَ جهاد نه او دے ته شيطان انسي وئيلے شي۔
يا ذالکم، اشاره ئے مخکښې ټول واقعاتو ته يعنې مقرر کول دَ ابوسفيان جاسوس لره او دَ هغه قول کول او په منافقانو کښې نردد پيدا کيدل نو الشَّيْطَانُ، کښې مضاف پټ دے يعنې فعل الشيطان۔
يُخَوِّفُ اَوْلِيَاءَهٗ، دلته يخوف په شد سره متعدي دے دوه مفعولونو ته نو يو مفعول ئے پټ دے يعنې يُخَوِّفُكُمْ اَوْلِيَاءَهٗ، جمله حاليه ده او په دے کښې نور وجوه دَ اعراب هم صاحب اللباب ذکر کړيدي او مراد دَ تخويف نه دا دے چه دَ هغوي (مشرکانو) سره دوي قتال او نه کړي۔
فَلَا تَخَافُوْهُمْ وَخَافُوْنِ، خوف نه مراد داسے يره ده چه دَ هغې دَ وجے نه يو کار پريږدئ نو دا خوف مختص دے په الله تعالیٰ پورے يعنې دَ هغه دَ ويرے دَ وجے نه دَ کفارو سره قتال کول مه پريږدئ ځکه چه پريښودل دَ قتال في سبيل الله خو معصيت دے او دَ معصيت نه دَ بچ کيدلو دَپاره خوف الٰهي پکار دے۔
اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ، دا جمله دَ پاره دَ تيزے ورکولو ذکر کيږي۔ يا اِنْ، په معنیٰ دَ اِذْ سره دے۔ او دا دليل دے چه ايمان مستلزم دے خوف دَ الله تعالیٰ لره۔

شَيْـًٔا ۗ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ

| هیڅ ، غواړي الله تعالی چه ونکړي دوی لره |
|---|

حَظًّا فِي الْاٰخِرَةِ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ

| برخه په آخرت کښ ، او دوی لره عذاب |
|---|

عَظِيْمٌ ﴿۱۷۶﴾

| لوے دے۔ |
|---|

سـ۱۷۶ :۔ هر کله چه نبی او مؤمنان ئې دَ خوف دَ اولیاء الشیطان نه منع کړل نو اوس نبی صلی الله علیه وسلم او مؤمنانو لره دَ حزن نه په مسارعه فی الکفر دَ هغوی بانده منع کوی۔ او دا تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته او بیا دَ هغه تابعدارانو ته۔ وَلَا يَحْزُنْكَ ،

سوال :۔ حزن خو امر غیر اختیاری دے نو دَ هغې نهی څرنګ صحیح کیږی ؟

جواب :۔ مراد دَ حزن هغه اثر دے چه مرتب کیږی په حزن بانده یعنی پریښودل دَ کار دَ دعوت۔

سوال :۔ حزن په کفر دَ کافر بانده خو طاعت دَ الله تعالی دے ؟

جواب ۱ :۔ مراد دَ دینه افراط دے په حزن کښ تر دے پورے چه اهلاک دَ نفس ته اورسیږی لکه په دے قول دَ الله تعالی کښ (فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرَاتٍ ۔ فاطر سـ۸) او (لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ اَلَّا يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ۔ شعراء سـ۳) ؟

جواب ۲ :۔ مراد دَ دینه حزن دے په سبب دَ خوف دَ ضرر رسیدلو سره دَ طرف دَ هغوی نه او روستو جمله دَ دے علت دے۔

يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ ، منځکښ دَ دوی مسارعه په کارونو دَ کفر کښ ذکر شویدی لکه صحابه قتل کول ، زخمی کول ، او بیا اراده دَ حملے کولو او بیا جاسوس لیږل دَ پاره دَ ویرولو دَ

مؤمنانو دی دا مشرکینو دَ مکے اوکړل او آیت ټولو کافرانو ته شامل دے۔

اِنَّهُمْ لَنْ يَّضُرُّوا اللهَ شَيْئًا ، دا علت دے دَ لا يحزنك لکه په مخکښ جواب کښ تیر شول یعنی دَ مسارعه فی الکفر وبال په دوی باندے راځی په دنیا او آخرت کښ - او مراد دَ ضرر نه دلته اسلام مغلوب کول او کفر غالب کول دی-

شَيْئًا مفعول مطلق دے شيئًا من الضرر یا حرف جر پټ دے یعنی بِشَيْءٍ او دیته منصوب علی نزع الخافض وئیلے شی۔

يُرِيْدُ اللهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِى الْاٰخِرَةِ ، دا جواب دَ سوال دے - که او ئیلے شی چه مسارعه فی الکفر کښ دَ دوی هیڅ نفع نشته نو دوی ولے دا کار کوی حاصل دَ جواب دا دے چه الله تعالیٰ اراده کوی چه دوی له هیڅ برخه دَ ثواب په آخرت کښ ورنکړی دَ دے وجے نه دوی مسارعه کوی نو نسبت دَ مسارعے دوی ته - رد دے په جبریه باندے او نسبت دَ ارادے الله تعالیٰ ته رد دے په قدریه باندے او دا دلیل دے چه کفر دَ کافر هم په ارادے دَ الله تعالیٰ سره دے او په لفظ دَ اراده کښ اشاره ده ډیر غضب دَ ارحم الراحمین ته په دے کافرانو باندے گویا دا دَ هغه مراد دے او په صیغه دَ مضارع کښ اشاره ده چه دَ دوی کفر هر وخت دے نو اراده دَ الله تعالیٰ هم هر وخت ده۔

وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ، یعنی دَ ثواب نه محروم کیدلو سره دَ دوی عذاب هم ډیر لوے دے ځکه مسارعه په کفر کښ لوئے کفر دے نو عذاب یئے هم لوے دے۔

إِنَّ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ

يقينًا هغه کسان چه اخستې دے کفر

بِالْإِيمَانِ لَن يَضُرُّوا اللَّهَ

په بدله دَ ایمان کښ چرے ضرر نشي ورکولے الله تعالیٰ ته

شَيْئًا ج وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (۱۷۷)

هیڅ او دوی لره عذاب دردناک دے۔

وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا

او گمان دِ نه کوی کافران

أَنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ خَيْرٌ

چه مهلت ورکول زمَا دوی لره غوره دے

۱۷۷:۔ مخکښ آیت کښ تخویف وو ښکاره کافرانو ته نو په دے آیت کښ تخویف دے منافقانو ته ځکه جمله دَ إِنَّ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ، پشان دَ اشتروا الضلالة بالهدى ده په سورة البقرة کښ په بارهِ دَ منافقانو کښ او مراد دَ اشتراء نه تبدیل یا اختیار دے۔

لَن يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا، هر کله چه دَ منافقانو کَيدُ وَنه په مقابله دَ اسلام کښ یو قسم دی او کیدونه دَ ښکاره کافرانو بل قسم دی دَ دے وجے نه دا جمله ئے مکرر ذکر کړیده۔

وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ، دا هم دلیل دے چه آیت په باره دَ منافقانو کښ دے لکه سورة بقره کښ دَ ښکاره کافرانو دَ پاره عذاب عظیم ذکر وو او دَ منافقانو دَ پاره عذاب الیم ذکر وو دا رنګ دلته هم دغه ترتیب دے۔

لَا نُفُسِهِمْ ۭ اِنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ

دَ پاره دَ ځانونو دَ دوی ، یقینًا مهلت ورکوو موږ دوی لره

لِيَزْدَادُوْٓا اِثْمًا ۚ وَلَهُمْ

دَ دے دَ پاره چه زیات شي ګناه دَ دوی ، او دوی لره

عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۱۷۸﴾

عذاب شرموونکے دے۔

۱۷۸ :- دا جواب دَ سوال دے سوال دا وو چه هرکله دا کافران او منافقان مسارعت او اشتراء دَ کفر کوی او مختلف کیدونه دَ اسلام په خلاف کوی نو په دوی باندے الله تعالیٰ ذر عذاب ولے نه راليږي حاصل دَ جواب دا دے چه دوی ته په مهلت ورکولو کښ دَ دوی ضرر دے او عذاب ورله هم شته دے۔

وَلَا يَحْسَبَنَّ ، دا عطف دے په لا يحزنك باندے دَ دے فاعل اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا دے او اِنَّ سره دَ مَا نه قائم دے په ځائے دَ دوه مفعولو دَ يَحْسَبَنَّ پسے نيز دَ سيبويه باندے او په ځائے دَ يو مفعول قائم او بل حذف دے په نيز دَ اخفش باندے۔

اَنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ ، مَا موصوله ده يا مصدريه ده۔ املاء ، زيات والے او اوږد والے په عمر کښ ورکول او مهلت ورکول دی۔ خَيْرٌ لِّاَنْفُسِهِمْ ، دا خبر دَ اَنَّ دے۔ مقصد دَ دے جملے رد کول دی په خوشحاله کيدلو دَ کافرانو په اوږدو عمرونو او ډير والي دَ مالونو او په عذاب نه راتللو باندے۔

اِنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ لِيَزْدَادُوْٓا اِثْمًا ، دا علت دے دَ ځکښ حکم دَ پاره او ذکر کوی حکم دَ مهلت ورکولو۔ دلالت کوی په حصر باندے يعنی ګمان دَ خيريت په املاء کښ بالکل غلط دے بلکه دا حصر دے په ګناه زياتی کولو کښ۔ لِيَزْدَادُوْا۔ لام ، په معنی کښ دَ تعليل دَ پاره يا لام عاقبت او صيرورة دے۔ يعنی په وخت دَ مهلت کښ طغيان او بغی کوی او کفر

مَا كَانَ اللّٰهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِيْنَ

نه دے الله تعالیٰ چه پریږدی مؤمنانو لره

عَلٰى مَا اَنْتُمْ عَلَيْهِ حَتّٰى

په هغه حال (ګډوډ) باندے چه تاسو په هغے یئ ، تر دے

يَمِيْزَ الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ ؕ

چه جدا کړی پلیت (منافق) د پاک (مخلص) نه

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ

او نه دے الله تعالیٰ چه خبر کړی تاسو

عَلَى الْغَيْبِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِيْ

په پټو خبرو باندے، او لیکن الله تعالیٰ غوره کوی

مِنْ رُّسُلِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ۠ فَاٰمِنُوْا

د رسولانو خپلو نه څوک چه اوغواړی، نو ایمان راوړئ

بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ۚ وَاِنْ تُؤْمِنُوْا

په الله تعالیٰ او په رسولانو د هغه، او که ایمان راوړئ تاسو

وَتَتَّقُوْا فَلَكُمْ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۷۹﴾

او ځان بچ کړئ (د نفاق نه) نو تاسو له ثواب لوے دے ۔

او منافقت کښې تیزی کوی ځکه چه دوی د ا مهلت خیر ګڼړی نو ګناه ته نه وائی ۔
وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ، هر کله چه کافران په وخت د مهلت د دین د الله تعالیٰ توهین کوی نو د هغوی د پاره ئے عذاب مهین ذکر کړو ۔
۱۷۹ ۔ ربط نه :۔ مخکښې سزا اخروی ذکر شوه کافرانو او منافقانو ته اوس دنیوی سزا د هغوی ذکر کوی چه هغه

فضیحت او شرمندګی دَ هغوی په اظهار دَ نفاق دَ هغوی سره۔
ربط ۲:۔ مخکښې ذکر شوه چه املاء (مهلت) دَ کافرانو او منافقانو دَ پاره شر دے اوس ذکر کوی چه په وخت دَ املاءکښې کله کله مصیبتونه راځی دَ پاره دَ تمیز دَ دوی دَ مؤمنانو نه نو داحکمت دَ املاء دے۔
ربط ۳:۔ دا رجوع ده ذکر دَ حکمتونو او علتونو دَ مصائبو دَ احد نه روستو دَ جملے معترضے نه نو تعلق دَ دے وما اصابکم یوم التقی الجمعان سره دَے یعنی په وخت دَ مصیبت دَ احد کښې په مسلمانانو باندے منافقانو خوشحالی اوکړه په غلبے دَ کافرانو نو معلومه شوه چه دوی منافقان دی۔
مَا كَانَ اللّٰهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلٰى مَآ اَنْتُمْ عَلَيْهِ ، دا جواب دَ دے سوال دا دے چه الله تعالیٰ په احد کښې ولے مصیبت راوستلو په مؤمنانو باندے په دے کښې څه حکم وو نو په دے جمله کښې دَ دے جواب دے۔ مَا كَانَ ، نفی دَ جحود ده او دلته یو فعل پټ دے ما كان الله يريد ليذر المؤمنين ، دَ دے نه مراد مخلصان مؤمنان دی۔ او اَنْتُمْ عَلَيْهِ خطاب کښې مؤمنان او منافقان دواړه داخل دی او مراد دَ ما انتم حالت دَ اختلاط دَ مؤمنانو او دَ منافقانو دے یعنی الله تعالیٰ مؤمنان او منافقان همیشه مخلوط اوګډوډ نه پریږدی دَ پاره دَ دے چه په خلقو باندے التباس رانشی۔
حَتّٰى يَمِيْزَ الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ ، دَ دے درے توجیهات دی۔ اول دا چه مراد دَ خبیث نه منافق او دَ طیب نه مخلص مؤمن دے او دا تمیز حاصل شو په ورځ دَ احد کښې چه منافقانو خپل نفاق ښکاره کړو چه دَ میدان جهاد نه مخکښې دَ جهاد نه واپس شول او بیائے خوشحالی اوکړله په غلبے دَ کافرانو باندے۔
دویمه توجیه دا ده چه مراد دَ خبیث نه ګناه دے او طیب نه مراد مؤمن دے او یمیز په معنیٰ دَ یحط دے یعنی او رژوی ګناه دَ مؤمنانو نه په سبب دَ مصیبتونو سره۔

دریمه وجه، داچه مراد دَخبیث نه کفر او شرک او مراد دَ طیب نه اسلام دے او تمیز راغے په تدلیل دَ کفر او په اوچتوالی دَ اسلام سره او دا توجیه په اعتبار دَ مستقبل سره ده۔(اللباب)
سوال:۔ په اوله توجیه سوال دا دے چه په تمیز سره خو ظهور راځئ نو معلومه شوه چه دوی منافقان نه دی بلکه ښکاره کافر دی نو بیا ئې په هغوی باندے احکام دَ کافرانو ولے نه جاری کول؟
جواب ۱:۔ اجراء دَ احکامو دَ کفر خو په اذن دَ الله تعالیٰ سره وی او دَ منافقانو په باره کښې اذن دَ اجراء دَ احکامو دَ کفر نه وو۔
جواب ۲:۔ په تمیز سره ظهور ظنی راځئ ظهور قطعی نه راځئ۔
فائده:۔ دَ دے وخت منکرین حدیث وائی چه حدیث ته په دین کښې اعتبار نشته دے ځکه چه په هغه وخت کښې معلومه نه وه چه صحابی څوک دے او منافق څوک دے نو دَ رواياتو تمیز نشی کیدے نو په دے جملے سره دَ هغوی دا شبه رد شوه یعنی الله تعالیٰ په ژوند دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم کښې وخت په وخت داسے امتحانات راولیستل چه په هغے سره منافقان معلوم شوی دی نو دَ هغوی نه هیڅ روایت دَ حدیث نقل شوے نه دے۔

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ، دا جواب دَ یل سوال دے سوال دا دے چه الله تعالیٰ په ذریعه دَ مصائبو سره تمیز دَ منافق او مؤمن راولی نو داسے ولے نه کوی چه مونږ له خبر راکړی په وحی سره چه فلانے منافق دے او فلانے مؤمن مخلص دے حاصل جواب دا دے چه وحی خو غیب دے او الله تعالیٰ په دے غیب باندے ماسیوا دَ رسولانو نه بل چا ته خبر نه ورکوی۔ نو دَ الغیب نه مراد دلته خاص وحی ده په باره دَ تمیز دَ منافق او مؤمن کښې یا مراد دَ دینه مطلق وحی ده او معنیٰ دَ دے جملے دا ده چه الله تعالیٰ تاسو ټولو ته

په وحی سره علم نه ورکوی ترڅو چه تاسو ټول رسولان
اوګرځئ دا د الله تعالیٰ د نظام نه خلاف ده -
وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِىْ مِنْ رُّسُلِهٖ مَنْ يَّشَآءُ، په لکن، سره جواب
د یل سوال دے - سوال دا دے چه الله تعالیٰ هیچا لره خبر
په وحی سره نه ورکوی نو جواب او شو چه الله تعالیٰ صرف
رسولانو ته علم په وحی سره ورکوی او دا تعین په مشیئت
د الله تعالیٰ سره دے مخلوق ته ئې په دیکښ اختیار نه دے
ورکړے - يَجْتَبِىْ، اجتبا د جَبَىَ نه اخستلے شوید ے او جبی
ریائی یا واوی) په معنیٰ د راټول د غوره څیز دی او په
عرف کښ په معنیٰ د اصطفاء او اختیار سره راځی نو اطلاق
ئې په رسول باندے د دے وجے نه کیږی چه الله تعالیٰ په
مینځ د بندګانو نه هغه لره غوره کړی د پاره د پیغام خپل.
په لفظ د لکن کښ قاعده دا ده چه واقع کیږی په مینځ د
دوه نقیضو یا اضدادو کښ - نو دلته هم دا ده چه الله تعالیٰ
وحی یل چاته نه ورکوی لیکن صرف رسولانو له ورکوی -
مِنْ رُّسُلِهٖ، دا مِنْ د پاره د ابتداء غایه دے نو مراد ترینه
ټول رسولان دی. یا مِنْ د پاره تبعیض دے ځکه اطلاع
علی الغیب په بعض وخت کښ وی او بعض کښ نه وی.
فائده :- دا دلیل دے چه کهانت او علم نجوم سره او دا رنګ
په کشف او الهام سره علم د غیب نه حاصلیږی هاں په هغے
سره ظن حاصلیږی - د دے وجے نه اهل علم تصریح کړے
چه کشف او الهام د اسبابو د علم نه نهٔ دی.
فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ، دا تفریع ده په ماقبل جوابونو
باندے یعنی چه هر کله ستاسو د سوالونو جوابونه او شول
صدق د دے نبی ثابت شو نو لازم دا ده چه ایمان په الله
او د هغه رسول باندے راوړئ نو ایمان بالله دا دے چه
د هغهٔ د الوهیت صفتونه خاص د هغه د پاره او منئ چه په
هغے کښ یو صفت علم غیب کلی دے - ایمان په رسولانو

باندے دادے چه هغوی بندګان اجتباء والا اوګنړے او هغوی له صرف هغه علم او منئے کوم چه الله تعالیٰ ورکړیدے او علم غیب دَ هغوی دَپاره مه ثابتوے (ابوحیان ، زمخشری) او رُسُلِهٖ ، جمع ذدے وجه نه اوئیل چه ایمان په یو رسول باندے مستلزم دے ایمان لره په ټولو رسولانو باندے او انکار دَیو نه انکار دے دَ ټولو نه۔

وَإِنْ تُؤْمِنُوْا وَتَتَّقُوْا فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيْمٌ ، ایمان شرعی مستلزم دَ تقوی وی لکه په توحید سره دَ شرک نه تقوی حاصله شی او ایمان بالرسول سره دَ کفر بالرسول نه تقوی حاصلیږی او په اتباع رسول سره دَ بدعاتو نه تقوی حاصلیږی دَ دے وجه نه په دے جمله کښ دَ ایمان نه روستو تصریح کړیده په صفت دَ تقوی سره نو ګویا که مخکښ آیتونو سره واتقوا پټ مراد دے۔ مراد دَ اجر عظیم نه دخول اوله دَ جنت دے چه بچ به وی دَعذاب جهنم نه۔

فائده :۔ بعض متجاهلان عقیده لری چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ پاره بلکه ټولو انبیاوُ دَپاره علم غیب کلی الله تعالیٰ ورکړیدے چه هغوی ته په دے علاقه کښ بربیلیان وئیلے شی۔ او دلیل نیسی دَ دے آیت نه۔ طریقه دَ استدلال ئے داده چه الغیب کښ الف لام استغراقی دی او لکن سره استثناء متصله ده نو معنیٰ داشوه چه نه دے الله تعالیٰ چه تاسو له خبر درکړی په ټولو مغیباتو باندے لیکن دَرسولانو اجتباء کوی نو خبر ورله دَ ټولو مغیباتو ورکوی؟

جواب له :۔ دا سورة آل عمران دَ مدینے دریم سورت دے په نزول کښ او دَدیته روستو شپاړس سورتونه نازل شویدی لکه چه سیوطی په ترتیب دَ نزول سُوَرْ کښ په اتفاق سره ذکر کړیدی نو هر کله چه هغه ته دَ ټولو مغیباتو علم ورکړے شوے وو نو دَ دغه روستو سورتونو نزول بے فائدے دے۔

جواب ۲ :۔ دَ دے سورت نه روستو سورة النساء کښ واقعه

دَ سَرِقَه ۱۰ ، اوسورة النور کښې واقعه دافك ۱۱ ، سورة المنافقون ۷ اوسورة التوبه ۱۰۱ نازل شوي دي او په هغې سورتونو کښې نفي دَ علم غيب شوي ده دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه نو دا خو په کتاب دَ الله تعالىٰ کښې تعارض لازميږي او تعارض په کلام کښې خو دليل دَ جهل يا نسيان او دَ بطلان وي او الله تعالىٰ او دَ هغه کتاب دَ دينه پاک دے.

جواب ۳ :- مفسرينو دَ دے نه بعض غيب مراد کړے دی يعنې تميز دَ مؤمن او منافق .

۱ ابن عطيه وئيلي دي مراد د غيب نه مَنْ يُّؤْمِنُ وَ مَنْ يَّبْقَىٰ كَافِرًا دے يا مراد دَ دينه هزيمت دَ احد دے يا مراد دَ دينه منافقان دي په تصريح دَ نومونو دَ هغوی سره.

۲ :- قرطبي وئيلي دي چه تعين دَ منافقانو چه تاسو ئے اوپيژنئ . يا هغه څوک چه مستحق دَ نبوت دے .

۳ ابو حفص دمشقي صاحب اللباب . تميز دَ منافقانو چه فلانے منافق او فلانے . يا مراد دَ دے نه علم دَ رسول يعنې وحي ده .

۴ :- قاسمي وئيلي دي چه هغه څيز چه په هغې سره تميز راځي دَ کفر او ايمان دَ خلقو .

۵ :- ابوحيان دَ سدی روايت نقل کړيدے چه څوک ايمان راوړی او څوک په کفر باندے باقي دي او په روايت دَ مجاهد او ابن جريج کښې هزيمت دَ احد مراد دے .

۶ :- آلوسي وئيلي دي چه کفر او نفاق دَ خلقو . دا رنګ نشته تاسو لره مرتبه دَ اطلاع په غيب باندے بلکه تاسو لره صرف مرتبه دَ علم استدلالي ده چه علم دے په علاماتو سره .

۷ :- ابن کثير وئيلي دي تميز دَ مؤمن دَ منافق نه .

۸ :- خازن وئيلي دي تميز دَ مؤمن او کافر او منافق .

۹ :- ابن جرير وئيلي دي پيژندل دَ مؤمن دَ کافر او منافق نه .

ع۱۰ :- شربیني وئیلي دي پیژندل دَ منافق وغیره .- نو وحي کوي نبي صلی الله علیه وسلم ته او خبر ورکوي په بعضے مغیباتو سره۔
ع۱۱ :- نیشا پوري وئیلي دي رسول علم دَ مغیباتو ته لري دَ خپل ځان دَ طرق ته بلکه په وحي سره او وحي کښ اطلاع دہ دَ دے خبرے چه فلانے مؤمن دے او فلانے منافق دے
ع۱۲ :- مظهري وئیلي دي اطلاع ورکوي په بعضے دَ علومو دَ غیب پاندے۔
ع۱۳ :- جامع البیان - خبر ورکوي په بعضے مغیبات سره۔ نو څوک چه دَ دے غیب نه ټول مغیبات مرادکوي نو دَ دے ټولو مفسرینو نه خلاف کوي۔
جواب ۵ :- الغیب کښ الف لام استغراقي نه دي ځکه چه علماءِ عربیت تصریح کړیده - تفتازاني په تلویح کښ وئیلي دي چه اصل په الف لام کښ عهدي دي دا رنګ سیالکوټي په حاشیه دَ مطول کښ وئیلي دي چه اصل په الف لام کښ عهدي دي یا جنسي نو اصل پریښودل او خلاف اصل ته تلل په غیر دَ دلیل نه جائز نه دي۔
سوال :- روح المعاني او بعضے تفاسیرو کښ روایت نقل دے چه الله تعالی نبي صلی الله علیه وسلم ته ټول صور نو نه دَ بني آدمو پیش کړل او علم ورکړے شو چه څوک مؤمن دے او څوک کافر دے دا دلیل دے په علم غیب کلي باندے؟
جواب :- آلوسي وئیلي دي چه سند دَ دے اثر کښ مقال دے او بعضے حفاظو حدیث وئیلي دي چه په دیکښ داسے راویان دي چه مونږ ئے نه پیژنو بلکه دَ ابو العالیه نه دَ دے خلاف روایت نقل دے۔

وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ

او گمان دِ نه کوی هغه کسان چه شومتیا کوی

بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ

په هغه مال سره چه ورکړی دے دوی ته الله تعالیٰ دَ فضل خپل نه

هُوَ خَيْرًا لَّهُم ۖ بَلْ هُوَ

چه دا غوره دے دوی لره ، بلکه دا

شَرٌّ لَّهُمْ ۖ سَيُطَوَّقُونَ مَا

بد دے دوی لره زر دے دَ دوی غاړے ته به واچولے شی هغه شے چه

بَخِلُوا بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ

شومتیا کوی دوی په هغے په ورځ دَ قیامت ،

وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۗ

او خاص الله تعالیٰ لره دی آخری پاتے کیدل دَ آسمانونو او زمکے ،

وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿١٨٠﴾ ع

او الله تعالیٰ په هغه عملونو چه تاسو کوئ خبردار دے۔

۱۸ ع ۹

۱۸۰ ربط له :- هر کله چه مخکښ آیت کښ تمیز دَ منافقانو او مؤمنانو په مصائبو دَ جهاد سره ذکر شو نو اوس دَ هغوی تمیز په خرچ دَ مال سره ذکر کوی۔
ربط ۲ه :- هر کله مخکښ مضمون دَ آیاتونو ترغیب ورکول وو جهاد ته په نفسونو سره نو اوس ترغیب ورکوی جهاد ته په مال خرچ کولو سره۔
وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ هُوَ خَيْرًا لَّهُم ، په دیکښ زجر او تخویف اخروی دے په بخل کولو سره الَّذِينَ يَبْخَلُونَ فاعل دے او مفعول

اول پټ دے چه دغه فعل دَ یبخلون په هغې باندے دلالت کوی
چه هغه بخلهم دے او هو ضمیر فصل دے دَ پاره دَ تاکید
او خیرًا مفعول دوئیم دے - بخل ، اکثر اهل علمو
وئیلی دی چه دلته مراد دَ بخل نه منع دَ واجب ده
په دلیل دَ وعید شدید سره او دَ هغې ډیر قسمونه
دی - اول انفاق ، په خپل ځان او اهل وعیال - دوئیم ،
زکوٰة - دریم ، انفاق په جهاد کښ او په دعوت دَ دین
کښ - څلورم ، ورکول محتاج ته په مقدار دَ سد رمق
(چه ساپرے اخستلے شی) -
بِمَآ اٰتٰهُمُ ، دا مال او علم دواړو ته شامل دے لیکن دلته
اول مراد دے -
بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ، ذکر دَ دے دَ پاره دَ تاکید دَ نفی
دَ خیریت دے یعنی نفع پکښ هیڅ نشته او شر ئے ډیر
دے دَ دے وجے نه دائے نکره ذکر کړے دَ تعظیم دَ پاره -
سَيُطَوَّقُوْنَ مَا بَخِلُوْا بِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ، دا تفصیل دَ شر
اخروی دے - تطویق ، طوق غاړے ته اچول دی او غوره
دا ده چه دلته معنیٰ حقیقی مراد شی په قرینه دَ حدیث
دَ بخاری دَ ابو هریره رضی الله عنه نه په کتاب الزکوٰة کښ
روایت دے مضمون ئے دا دے چاله چه الله تعالیٰ مال ورکړے
وی او زکوٰة دَ هغې نه ورکوی نو په ورځ دَ قیامت دغه مال په
شکل دَ ښامار دَ ده غاړے ته واچولے شی دا سے ښامار چه
(ډیرو زهرو دَ وجے نه به) ګنجے وی او دَ او سکو پشان به ئے
دوه سترګے وی دَ ده وخکی دَ خولے به راکاږی ورته وائی به
چه زه ستا مال یم ستا خزانه یم - نور روایات هم دَ دے
مضمون شته دے او دَ بعضے مفسرینو نه نقل دی چه دا
په طریقه دَ تاویل سره دے یعنی په دوی باندے انبار شی
عذاب دَ بخل دَ دوی -
وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ، دَ دے دوه معنیٰ دی اوله

لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ
یقینًا واوریدہ اللہ تعالیٰ وینا دَ هغه کسانو
قَالُوْا اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ وَّنَحْنُ
چه وائی یقینًا اللہ تعالیٰ مسکین دے او مونږ
اَغْنِيَآءُ ۘ سَنَكْتُبُ مَا قَالُوْا
مالداریو، زر دے چه اوبه لیکو هغه چه دوی وائی
وَقَتْلَهُمُ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ
او وژل دَ دوی پیغمبرانو لره بغیر دَ جرم شرعی نه،
وَّنَقُوْلُ ذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ﴿۱۸۱﴾
او اوبه وایو اوڅکئ عذاب دَ اور سوزوونکی۔

معنیٰ دا ده چه مخلوق کوم مالونه دَ یو بل نه په میراث سره اوړی نو دَ هغے دَ ټولو مالونو آخری مالك الله تعالیٰ دے نو حاصل دا شو چه دا ملك دَ الله تعالیٰ دے او تاسو ته دَ څه ورځو دَپاره درکړے شوی دی۔ نو ولے په دے سره بخل کوئ او دا سے مضمون په سورة الحدید کښ دے۔
دویمه معنیٰ ئے دا ده چه آسمانونو او زمکو والا به ټول روستو فنا شی نو دَ هیچا ملکیت به پکښ پاتے نشی نو پشان دَ هغه مال به شی چه دَ فنا دَ یو شخص نه بل ته میراث پاتے شی نو په اوله معنیٰ سره میراث په معنیٰ حقیقی مراد دے او په دویمه معنیٰ سره میراث تشبیهی مراد دے۔
وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ، خَبِيْرٌ په باطنی امورو کښ استعمالیږی او بخل هم امر باطنی دے او په دیکښ اشاره ده جزا ورکولو ته په هر عمل باندے۔
۱۸۱:- خلاصه:- دَ دے آیت نه تر ۱۸۴ پورے دَ دے حصے دویم باب دے په دے باب کښ درے قبائح دَ اهل کتابو

ذکر دی دَ پاره دَ تحذیر دَ دے امت اول انکار کول دَ انفاق فی سبیل الله په باطل عذار سره په ۱۸۱ کښ. دویم انکار دَ رسول نه په دلیل باطل سره په ۱۸۳ کښ. دریم دَ الله تعالیٰ دَ کتاب پریښودل او پټول دَ پاره دَ حصول دَ دنیا په ۱۸۷ کښ او په مینځ کښ تسلی نبی صلی الله علیه وسلم ته او ذکر دَ ابتلاء اتو جانی او مالی په لار دَ الله تعالیٰ کښ. او آخر کښ زجر ورکول په فرح کول دَ هغه کار چه کړے نه دی او امید لری چه زمونږ مدح دِ اوکړیشی په ۱۸۸

ربط :- هر کله چه مخکښ آیت کښ په ضمن دَ زجر دَ بخلاؤ کښ ترغیب وو انفاق فی سبیل الله ته او دا ترغیب کله ذکر کړے شوے وو په دے لفظ سره. من ذا الذی یقرض الله قرضًا حسنًا. سره نوحی بن اخطب او فنحاص او نورو یهودیانو دَ دے دواړو دَ تقلیل دَ وجے نه او ئیل چه الله تعالیٰ فقیر دے چه زمونږ نه قرض غواړی نو پدے آیت کښ په دے باندے زجر ورکوی دا رنګ مخکښ ردوو په منافقانو باندے په صفت دَ بخل دَ هغوی او په دے آیت کښ یهودیان ورسره شریک وو نو یهودیانو دا بهانه جوړه کړله.

لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا، دَ زجر ورکولو دَ وجے نه تاکید ئے اوکړو په لام او قد سره او دا سے عبارت کله دَ زورنے دَ پاره استعمالیږی لکه په دے ځائے کښ او کله دَ شفقت دَ پاره ذکر کیږی لکه سورة المجادله ۱ کښ.

اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ، دا قول دَ دوی په طریقه دَ استهزاء او جدل او الزام سره وو یعنی خوک چه قرض غواړی نو لازم دا ده چه هغه فقیر وی او دَ دے وجے نه تفسیر فتح البیان کښ وئیلی دی چه دلته حرف استفهام پټ دے یا په طریقه دَ اعتقاد دَ دوی سره لکه چه دوی وئیل ید الله مغلولة.

نو دا رنګ داخبره هم دَ دوی دَ شان نه لرے نه ده - بیا علماؤ دَ دوی په طریقه دَ جدال سره او وئیل او عوامو ته په طریقه دَ اعتقاد سره او وئیل - او دَ ډیر تاکید دَ وجے نه دوی دا جمله په ان سره ذکر کړیده -
وَ نَحۡنُ اَغۡنِیَآءُ ، په دے کښ دوی تاکید او نکړو اشاره ده چه زموږ غنا خو بالکل ښکاره ده -
سَنَکۡتُبُ مَا قَالُوۡا ، هرکله دا قول دَ دوی په ضد او عناد باندے بنا وو دَ دے وجے نه جواب تحقیقی ورته ورنکړو بلکه جواب په طریقه دَ زجر او تخویف سره ورکوی -
کتابت نه مراد معنیٰ حقیقی ده یعنی لیکل په صحیفو دَ ملائکو کراماً کاتبین کښ - او سین ، دَ پاره دَ تاکید دے دَ استقبال دَ پاره نه دے ځکه نور نصوص دلالت کوی چه ملائک اقوال او اعمال دَ انسانانو فی الحال لیکی او بل قول دا دے چه دَ کتابت نه مراد لزوم دَ سزا دَ دے قول دے لکه - کُتِبَ عَلَیۡکُمُ الصِّیَامُ - لیکن اول قول صحیح دے - او لیکل دَ دے قول دَ پاره دَ محفوظ ساتلو دی دَ دے وجے نه امام بخاری معنیٰ کړیده په سنحفظ سره -
وَ قَتۡلَهُمُ الۡاَنۡۢبِیَآءَ بِغَیۡرِ حَقٍّ ، دا عطف دے په مَا قَالُوۡا باندے عطف دَ مصدر په فعل باندے (چه په تاویل دَ مصدر کښ وی) جائز دے -
سوال :- قتل خو دَ دوی مشرانو کړے وو نو موجوده کسانو ته ولے نسبت اوشو؟
جواب :- هرکله چه دوی رضا وو په دغه عمل دَ مشرانو خپلو باندے او رضا په ګناه دَ بل چا باندے هم ګناه وی دَ دے وجے نه دوی ته هم نسبت اوکړے شو دا رنګ قرطبی او صاحب اللباب ذکر کړی دی او وئیلی دی چه یو شخص دَ امام شعبی په مخکښ او وئیل چه قتل دَ عثمان چه چا کړیدے نو ښه کار ئے کړیدے نو امام شعبی ورته اُو وئیل

چه ته هم دَ هغه په وینه تو یولو کښ شریک شوے۔ ځکه چه رضا په یو معصیت باندے پښان دَ شرکت دے په هغه معصیت کښ۔
سوال:۔ دَ قتل په ذکر کښ دلته څه فائده ده؟
جواب:۔ اشاره ده لکه دغه قول دَ دوی په باره دَ الله تعالیٰ کښ ډیر قبیح قول دے نو دا رنګ قتل دَ دوی په حق دَ انبیاؑ کښ ډیر قبیح عمل دے نو قول او عمل ئے دواړه اقبح دی او سبب دی دَ استحقاق دَ عذاب دَ پاره لکه چه وړسے ذکر دی۔
وَنَقُوْلُ ذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ، په معنیٰ دَ محرق لکه الیم په معنیٰ دَ مولم سره دے۔ او بعضو وئیلی دی چه حریق لمبو والا اور ته وئیلے شی یا دا نوم دَ یو طبقے دَ اور دے او دا اضافت بیانیه دے۔ او دا قول په واسطه دَ ملائکو سره په وخت دَ مرګ دَ دوی کښ یا په وخت دَ حشر کښ یا په دواړه اوقاتو کښ دی۔ ذُوْقُوْا، په اصل کښ دَ محسوساتو نه دے اشاره ده چه دَ دغه عذاب درد به په دوی باندے پښان دَ محسوس وی۔ او آلوسی ذکر کړیدی چه مناسبت دَ ذوق دَ دے ځائے سره دا سے دے چه بخل په مال باندے دَ پاره دَ مقصد دَ خوراک دے نو اشاره ده چه سزا پښان دَ څکلو دَ خوراک ده او بله وجه دا ده چه دوئی ځپلو ناکاره اقوالو او اعمالو سره انبیاؑ او دَ هغوی تابعدارانو ته دَ تکالیفو سخت ګوټو نه څکولی دی نو دَ هغے په صِله کښ دوی ته هم دَ عذاب دَ ګوټو نو نه څکولے کیږی او زجاج وئیلی دی چه ذوق په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه دَ معافے نه بالکل ناامیدی وی او مستلزم وی سخت غیظ او غضب لره۔

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْكُمْ

دا عذاب په سبب دَ هغه عمل دے چه مخکښ لیږلے دے لاسونو دَ دوی

وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿۱۸۲﴾

او یقیناً الله تعالیٰ نه دے ظلم والا په بندګانو باندے۔

س۱۸۲ :- ذٰلِكَ بِمَا ، کښ اشاره ده ما قبل ذکر کړے شوے عذاب ته۔ بَاءُ ، دَپاره دَ سببیت ده او تا دَ قَدَّمَتْ ، دلته شامل دے اقوالو او اعمالو او عقائدو ټولو ته لیکن اَيْدِيْكُمْ ، ذکر په اعتبار دَ اکثر سره دے نو ایدی په معنیٰ دَ انفس سره دے دَ قبیلے دَ ذکر دَ جز او مراد تری نه کل دے۔

وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ، دا عطف دے په ما قدمت باندے او نفی دَ هر ظلم نه مستلزم ده عدل کامل لره نو حاصل دا دے چه دَ دوی عذاب دَپاره دوه اسباب دی چه مجموعه دَ هغے نه یو سبب کامل جوړیږی : اول سبب دَ دوی عملونه دی او دویم سبب عدل دَ الله تعالیٰ دے یعنی عدل دَ الله تعالیٰ تقاضا کوی چه دَ دوی دَ قولی او عملی ظلمونو سزا دَ سخته ورکړیشی۔

سوال :- ظلام صیغه دَ مبالغے ده چه دلالت کوی په کثرت او په زیادت باندے نو په دیکښ نفی دَ ظلم کثیر ثابته شوه او په نفی دَ کثرت او زیادت سره نفی دَ نفس خیز نه لازمیږی او الله تعالیٰ په دے سورت ۱۰۸ کښ دَ ځان نه نفی دَ نفس ظلم کړیده په نفی دَ ارادے دَ هغے ؟

جواب ۱ :- وزن دَ فعال همیشه دَ کثرت دَپاره نه وی بلکه کله په صرف اتصاف او په نسبت باندے دلالت کوی معنیٰ دا ده لیس بذی ظلم (جلالین)۔

جواب ۲ هر کله چه عبید کثیر دی او په هر عبد باندے چه ظلم اوشی نو ظلمونه به هم کثیر شی دَ دے وجے نه

اَلَّذِیْنَ قَالُوْۤا اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ

دا هغه کسان دي چه وائي دوی یقیناً الله تعالیٰ وصیت کړیدے

اِلَیْنَاۤ اَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُوْلٍ

مونږ ته چه ایمان به نه راوړو په یو رسول

حَتّٰی یَاْتِیَنَا بِقُرْبَانٍ تَاْكُلُهُ

ترڅو چه راوړي مونږ ته قرباني چه اوسیزي هغې لره

النَّارُ ؕ قُلْ قَدْ جَآءَكُمْ

اور، ته اووایه یقیناً راغلي دي تاسو ته

رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِیْ بِالْبَیِّنٰتِ

ډیر رسولان زما نه مخکښ په ښکاره دلیلونو سره

وَبِالَّذِیْ قُلْتُمْ فَلِمَ قَتَلْتُمُوْهُمْ

او په هغه شي چه تاسو وائي نو ولې تاسو وژل هغوی لره

اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ ﴿۱۸۳﴾

که تاسو رشتني یئ ۔

صیغه دَ کثرت ذکر کړیده ۔

جواب ۳ :۔ په نفي دَ کثیر ظلم سره نفي دَ قلیل لازمیږي ځکه څوک چه ظلم کوي نو دَ خپلې انتفاع دَ پاره ئې کوي نو هر کله چه څوک کثیر ظلم نه کوي سره دَ کثیر و منافعو نه نو لږ ظلم خو په طریقه اولیٰ سره نه کوي ۔ او دا سې جمله په قرآن کښ په سورة الانفال ۵۱، سورة الحج ۱۰، سورة حٰمٓ سجده ۴۶ او سورة قٓ ۲۹ کښ ذکر ده ۔

فائده :۔ امام راغب وئیلي دي چه عبید لفظ عام دے چه بندګي دَ الله تعالیٰ کوي یا دَ غیر الله کوي او عباد لفظ خاص دے په هغه چا پورے چه بندګي صرف دَ الله تعالیٰ کوي ۔

۱۸۳:- په دے آیت کښ هم زجر دے دَ دوی په بل قباحت باندے دَ ابن عباس رضی الله عنهما روایت دے چه دَ یهودیانو مشران نبی صلی الله علیه وسلم ته راغلل او اعتراض ئے اوکړو چه په تورات کښ موتږ ته حکم دے چه هغه رسول باندے ایمان راوړئ چه قربانی (صدقات) دَ هغه په وخت کښ په اور باندے سوزیږی نو ته موتږ ته قربانی راوړه چه په اور باندے اوسوزی نو په دے آیت کښ دَ هغوی تردید کوی۔

اَلَّذِیۡنَ قَالُوۡا، دا صفت یا بدل دے دَ الذین چه دَ قول مضاف الیه دے په تیرشوی آیت ۱۸۱ کښ۔ یا دَ دے مبتدا پټه ده (هم)۔

اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ اِلَیۡنَا، عَهِدَ په معنیٰ دَ وصیت سره دے او عهد خاص دے دَ امر نه ځکه عهد په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه دَ هغے وخت اوږد وی۔

اَلَّا نُؤۡمِنَ لِرَسُوۡلٍ، دلته فِیۡ پټ دے یا مفعول دے عهد چه هغه په معنیٰ دَ الزم دے او دَ ایمان په صله کښ لام، په اعتبار دَ معنیٰ دَ اقرار او اعتراف سره دے۔

حَتّٰی یَاۡتِیَنَا بِقُرۡبَانٍ، دا په اصل کښ مصدر دے په معنیٰ دَ مفعول سره۔ و ټولے کیږی هر هغه څیز ته چه په هغے سره تقرب الله تعالیٰ ته حاصلیږی که څاروے وی او که بل څیز وی۔

تَاۡکُلُهُ النَّارُ، نسبت دَ خوراک اور ته مجازی دے یعنی اور هغے لره اوسیزی یا ختم کړی۔

قُلۡ قَدۡ جَآءَکُمۡ رُسُلٌ مِّنۡ قَبۡلِیۡ بِالۡبَیِّنٰتِ، دا جواب دے په طریقه دَ الزام سره اشاره ده چه خوړل دَ اور قربانئ لره یو معجزه ده او دَ دینه علاوه ډیر معجزات رسولانو دَ بنی اسرائیلو دَ هغوی انکار کړیدے۔

وَبِالَّذِیۡ قُلۡتُمۡ، دا تخصیص دے روستو دَ تعمیم نه یعنی معجزه دَ قربانی چه اور ئے خوری هم ستا سو رسولانو راوړیده۔

# فَإِن كَذَّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَ

نو كه دوى تا ته دروغژن وائى (صبر كوه) نو دروغژن وئيلے شويدى

دا دليل دے چه واقعى په تورات كښ دا شرط د رسول د تصديق د پاره موجود وو لكه چه آدم عليه السلام په زمانه كښ داسے په واقعه قابيل او هابيل كښ او دا رنګ د يوشع عليه السلام زمانه كښ په باره د مال غنيمت كښ۔ او داسے واقعه په صحيح حديث سره ثابت ده دا رنګ قرطبى وئيلى دى چه داسے معجزه زكريا او شعيب انبياؤ پيش كړى دى۔ ليكن يهوديانو په تورات كښ تحريف يا كتمان كړے وو۔ ځكه چه په هغے كښ الا المسيح ومحمد صلى الله عليه وسلم موجود وو او دوى دا لفظ نه ښكاره كولو دا د سدى نه نقل دے او بعضے مفسرينو وئيلى دى چه دا شرط د دوى په تورات كښ موجود نه وو چه هر رسول به داسے معجزه راوړى بلكه بعضے رسولانو لكه د موسى عليه السلام په معجزاتو كښ دا ثابت نه ده اګرچه د بعضے رسولانو په وخت كښ معجزه په صادره شويوے نو طلب د دوى دا سے معجزه د محمد صلى الله عليه وسلم نه داسے وو لكه چه قوم د صالح د هغه نه معجزه طلب كړے يا لكه مشركان مكه د هغه نه (اقتراحى) معجزات طلب كول۔

فَلِمَ قَتَلْتُمُوهُمْ، دا قتل د دوى مشرانو كړے وو لكه مخكښ آيت كښ ذكر شوه او په هغے عمل د مشرانو باندے روستنى رضا وو ځكه دوى ته نسبت اوشو او قتل كول زيات دے د تكذيب نه نو د دير الزام د پاره ئے قتل ذكر كړو۔

إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ، يعنى صادق په دے عهد كښ يا صادق چه بينات او قربان مستلزم د ايمان دى۔

رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ جَآءُوْا

ډیرو رسولانو ته ستا نه مخکښې داوړی وو هغوی

بِالْبَيِّنٰتِ وَالزُّبُرِ وَالْكِتٰبِ

ښکاره دلیلونه (عقلی) او واړه کتابونه او لوی کتاب

الْمُنِيْرِ ﴿۱۸۴﴾

رڼا کوونکې

س۱۸۴ :- په دے آیت کښې تسلي ده نبي صلی الله علیه وسلم لره۔
فَاِنْ كَذَّبُوْكَ ، اِنْ په معنیٰ دَ اِذَا دے۔
فَقَدْ كُذِّبَ ، جزاء دَ شرط پټه ده (فاصبر)۔
رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ ، صیغه دَ مجهول او جمع دَ رُسُلٌ دلالت کوی چه صرف یهودیان مراد نه دی بلکه یهود او دَ هغوی نه مخکښې امتونه چه هغوی ته رسولان رالیږلے شوی وو۔
مِنْ قَبْلِكَ ، متعلق دے په كذب پورے۔
جَآءُوْا بِالْبَيِّنٰتِ ، دا جمله صفت دَ رسل دے اَلْبَيِّنَاتِ ښکاره معجزات ،
وَالزُّبُرِ ، جمع دَ زبور ده او دا اخستلے شوے دے دَ زبر نه په معنیٰ دَ مفعول دے یعنی الکتب المزبورة (کتابونه لیکلے شوی) او اطلاق ئے کیدے شی په هغه لیکلو شوو کتابونو چه معانی دَ زجر او وعظ پکښې ډیر وی احکام پکښې لږ وی یا نه وی۔ زبور دَ داؤد علیه السلام په زواجرو او مواعظو او فضائلو باندے مشتمل وو احکام پکښې نه وو دا رنګ صحیفے دَ ابراهیم او موسیٰ علیهما السلام او دَ نورو انبیاؤ۔ نو دلته مراد هغه ټول صحف دی سره دَ کتاب زبور دَ داؤد علیه السلام ته۔
وَالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ ، مراد په دے سره لوئے کتابونه دی لکه تورات او انجیل او منیر په دے وجه سره وئیلے کیږی

كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ۗ وَإِنَّمَا

هر ساه والا څکونکے دَ مرګ دے ، او یقینًا

تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ

پوره به درکړے شي تاسوته ثوابونه ستاسو په ورځ دَ قیامت ،

فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ

نو څوک چه لرے کړے شو دَ اور نه

وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ ۗ

او داخل کړے شو جنت ته نو یقینًا کامیاب شو

وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ إِلَّا مَتَاعُ

او نه دے ژوند دنیوی مګر سامان

الْغُرُورِ ﴿۱۸۵﴾

دَ دهوکے دے۔

چه مشتمل وی په احکامو باندے۔ بعضو مفسرینو وئیلی دی
چه البینات هغه دی چه عوام په هغے باندے پوهیږی۔ اوکتاب
منیر دَ خواصو دَ علم دَ پاره وی۔ او الزبر درمیانه خلقو دَ پاره
وی۔ او بعضے مشائخو دَ دے زمانے وئیلی دی چه البینات
اشاره ده عقلی دلیلونو ته او الزبر نقلی دلیلونه او کتاب
منیر وحی دلیلونو ته۔ لیکن دَ دے تخصیص دَ پاره څه قرینه
او نقل نشته دے۔ او دا راتلل دَ رسولانو په دے درے
قسمونو سره دَ مجموع په حیثیت سره دی یعنی هر یو نبی
دا درے واړه نه دی راوړی چا یو یو چا دوه دوه او چا درے واړه
امور راوړی دی۔ دا رنګ په سوره فاطر ۲۵ کښ درے واړه
امور ذکر دی او په سوره نحل کښ دوه ذکر دی ۴۴۔
۱۸۵:۔ په دے آیت کښ هم تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم

اودَ هغه تابعدارانو ته ځکه چه څوك عقيده دَ مرګ لرى نو دَ زړه نه نورغمونه لرے وى دا رنګ تسلى ده چه زوستو دَ مرګ نه دَ مکذبينو اوحق پرستو تميز به حاصل شى او په ديکښ تشجيع وركول په جهادباندےاو انفاق فى سبيل الله سره هم شته دے۔

كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ، لفظ دَ كُلُّ اګرچه مذکر دے ليکن نحويانو وئيلى دى چه په وخت دَ اضافت دَ کل کښ اعتبار مضاف اليه دَپاره دے۔ كُلُّ نَفْسٍ ، ابن عطيه وئيلى دى چه مراد دَ دينه نفس مخلوقه ژوندے دے اوآلوسى وئيلى دى چه مستثنيات دَ دينه ډير دى په دليل دَ (فَصَعِقَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَاءَ اللّٰهُ) بِنا په دے چه مراد دَ صعق نه موت دے۔ او دا آيت عام دے دَ کل من عليها فان نه ځکه ظاهر په هغے کښ دَ زمکے دپاسه مخلوق مراد دے اوکه دَ هغے نه هم هر مخلوق مراد شى ځکه په مخلوق دَ آسمانونو باندے هم دَ عليها اطلاق کيدے شى۔ نو په هغے کښ هم عموم دے او دا خوره دے په قرينه دَ يبقى وجه ربك ذوالجلال والاکرام او په قرينه دَ کل شئٍ هالك الا وجهه ۔ نو معلومه شوه چه دا درے واړه جملے کليات دى ليکن په سبب دَ بعضے نصوصو سره دَ هغےنه مستثنيات شته دے دَ دے تفصيل په تفسير دَ سورة قصص آخرى آيت کښ شته دے۔ ابن کثير وئيلى دى چه په دے کليه کښ پيريان ، انسانان، ملائک اوحَمَلَةُ العرش ټول داخل دى ما سيوا دَ الله تعالىٰ نه چه الحى الذين لا يموت دے۔ صاحب اللباب وئيلى دى که سوال اوکړے شى چه دَ نفس اطلاق خو په الله تعالىٰ باندے قرآن کښ شته دے دا رنګ صحيح دا ده چه نفس او ذات يو څيز دے نو جِما دات پکښ هم داخليږى نو جواب دا دے چه مراد دَ کل نفس نه هغه نفوس دى چه مکلف کيدے شى په دارِ دنيا کښ يعنى مخلوق اوژوندى دى۔

فائده :- دَ نفس اطلاق کله په روح باندے کیږی او کله په ذات (بدان) باندے نو فلاسفه وائی چه دلته مراد دَ نفس نه صرف بدان دے او هغوی دَدے دوه وجے ذکر کړیدی۔
اوله وجه، چه ذاتی ځکنه کوونکے په وخت دَ ځکنه کولو کښ موجود وی نو معلومه شوه چه روح باندے مرګ نه راځی۔
دویمه وجه دا ده، چه مرګ خو دَ اسباب حرارت او رطوبت غلبه ده په یو بل باندے او دا صفات دَ بدان دی او اهل شرع وئیلی دی چه نفس دلته روح او بدان دواړو ته شامل دے او دَ هر یو موت په جدا جدا معنٰی سره دے دَ بدان موت دا دے چه روح دَ ده نه جدا شی نو هیڅ حاسه پکښ پاتے نشی او دَ روح مرګ دا دے چه هغه دَ بدان په واسطے سره څه لذتونه وغیره حاصلول نو کله چه دَ روح نه جدا شو نو دَ هغه لذ تونو نه محروم شی بیا دَ انبیاء او شهداؤ ارواحو له الله تعالیٰ حیات په یو قسم سره ورکوی چه هغه په تفسیر دَ احیاء (سوره بقره - آلعمران) کښ ذکر دے او لفظ دَ ذوق دلالت کوی چه مرګ همیشه نه دے بلکه روستو ژوند بعد الموت شته دے نو معلومه شوه چه دَ مرګ وخت لږ دے او حرارت او رطوبت کښ تغیر دَ اسبابو دَ مرګ نه نه دے بلکه مرګ په حکم دَ الله تعالیٰ سره دے یعنی په کلمه دَ کن سره دے۔
وَاِنَّمَا تُوَفَّوْنَ اُجُوْرَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، دَ دینه مخکښ ذکر دَ بعث بعد الموت مراد دے یعنی تبعثون بعد الموت وتوفون آه۔
سوال :- توفیه دلالت کوی په پوره ورکولو نو دَ قیامت نه وړاندے خو په دنیا او په قبر کښ هم څه اجور ورکړے شویدی نو هغه پکښ شمار نه دی؟
جواب ۱ :- قرطبی وئیلی دی چه اصل اجر دَ مؤمن جنت او دَ کافر جهنم دے نو دَ دینه مخکښ ئے پکښ اجر او جزا نه ده حساب کړے۔
جواب ۲ :- توفیه پوره کولو ته وئیلے شی یعنی مخکښ دَ دینه لږ څیز ورکړیدے او په قیامت کښ به هغه ناقص پوره کوی۔

سوال :- په قیامت کښ عذابونه دَ کافرانو او گنهګارانو هم شته دے نو دَ هغې ذکریې ولے او نه کړو؟

جواب ۱ :- دلته مقصود په خطاب سره نبی صلی الله علیه وسلم او دَ هغه تابعداران دی نو اشاره ده چه هغوی ته مغفرت کیدیشی دَ ګناهونو دَ هغوی او ثوابونه دَ طاعاتو به ورکیږی.

جواب ۲ :- قرطبی ابوحیان وئیلی دی چه اجر نه مراد هر هغه جزا ده چه مرتب کیږی دَ طاعت یا په معصیت باندے نو عذابونه هم شامل شوه.

فَمَنۡ زُحۡزِحَ عَنِ النَّارِ وَ اُدۡخِلَ الۡجَنَّةَ فَقَدۡ فَازَ ، دا جورو ورکولو نه دوه قسمونه خلق جوړیږی نو" فا " سره دَ هغوی تفصیل کوی چه اول قسم یعنی کامل مؤمنان دی دَ هغوی ذکر په دے جمله کښ دے.
زُحۡزِحَ ، تحزح ، لرے والی او بچ ساتلو ته وئیلے شی یعنی چه دَ دخول دَ جهنم نه داول وخت نه بچ ارساتلے شی او اولا جنت ته داخل کړیشی نو دغه شخص ته فائز وئیلے شی نو معلومه شوه چه څوک جهنم ته دَ څه وخت دَپاره داخل کړیشی بیا روستو جنت ته داخل کړیشی یا څوک په اعراف کښ دی او روستو جنت ته داخل کړیشی نو دوی ته فائز نشی وئیلے کیدلے اګرچه جنتیان دی. نو دَ دے کامل مرتبے ذکرکولو کښ اشاره ده چه صحابه کرامو داسے مرتبه حاصل کړیده.
زحزح او ادخل مجهول کښ اشاره ده چه دا سعادت دَ دوی په اختیار کښ نه دے بلکه دا خالص فضل دَ الله تعالیٰ دے . اودویم قسم چه دَ کامل مؤمنانو نه غیر دی دَ هغوی دَ عقوبت ذکریے صراحتًا نه دے کړے خو دَ هغوی سبب دَ عقوبت او معصیت ته اشاره ده په دے جملے سره . وَمَا الۡحَيٰوةُ الدُّنۡيَاۤ اِلَّا مَتَاعُ الۡغُرُوۡرِ ، حَيٰوةُ الدُّنۡيَا نه مراد سامانونه دَ تیرولو دَ معاش دی یا مراد تر ینه هغه عمر دے چه صرف دَ دنیا په حصول کښ خرچ شی او آخرت ته هیڅ توجه نه وی . مَتَاعُ ، اکثر مفسرینو وئیلی دی چه متاع هغه څیزونه دی چه لږه نفع ورباندے حاصل شی او بیا فنا شی عکرمه وئیلی دی لکه تبر ، کاسه ، کټوئ وغیره او حسن بصری وئیلی دی

لَتُبۡلَوُنَّ فِیۡۤ اَمۡوَالِكُمۡ وَ اَنۡفُسِكُمۡ قف

خامخا ازمیښت به اوکړیشي په تاسو باندې په مالونو ستاسوکښې او نفسونو ستاسو کښې

وَ لَتَسۡمَعُنَّ مِنَ الَّذِیۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ

او خامخا به واورئ تاسو د هغه کسانو نه چه ورکړې شوې دې ورته کتاب

مِنۡ قَبۡلِكُمۡ وَ مِنَ الَّذِیۡنَ

مخکښې ستاسو نه او د هغه کسانو نه

اَشۡرَكُوۡۤا اَذًی كَثِیۡرًا ؕ وَ اِنۡ تَصۡبِرُوۡا

چه شرک یې کړیدې بده دیناﾞ ډیره او که صبر اوکړو تاسو

وَ تَتَّقُوۡا فَاِنَّ ذٰلِكَ مِنۡ عَزۡمِ الۡاُمُوۡرِ ﴿۱۸۶﴾

او ځان موبچ کړو د ګناه نه نو یقیناً دا د پخو (او د ضروري) کارونو نه دے۔

چه لکه شنه بوټي، ګوډې د وړو ځینکو د لوبو کالي او حاصل یې نه وي پشان د سراب۔ زمحشري وئیلي دي چه متاع هغه سامان دے چه یو مشتري یې په دهوکے سره سودا اوکړي روستو ورته د هغې فساد (ردي والے) معلوم شي۔

اَلۡغُرُوۡرِ، دا مصدر دے په معنیٰ د دهوکه کیدلو سره او جمع هم کیدیشي چه مفرد یې غار (دهوکه ورکوونکے) دے۔ نو په دیکښې اشاره ده چه منافع د دُنیا ډیر خلق دا سے دهوکه کړیدي چه آخرت یې هیر کړیدے یا د آخرت نه منکر شویدي نو هغوي د کامل مؤمنانو په ضد کښې دي د هغوي د پاره د هغوي مناسب عقوبت دے۔

۱۸۶:- ربط:- په دے آیت کښې هم تسلي ده ایمان والو ته روستو د تسلئ ورکولو نه په مصیبتونو د احد باندے یعنی د دینه روستو په راتلونکی زمانه کښې به هم تاسو د دشمنانو د دین د طرف نه مصائب راځي خو صبر به کوئ۔ دا رنګ د دینه وړاندے د مشرکانو او کتابیانو قباحتونه ذکر کړل نو اوس د هغوي د طرف نه د نورو ابتلاءاتو ذکر دے۔

لَتُبْلَوُنَّ فِیْٓ اَمْوَالِکُمْ وَ اَنْفُسِکُمْ، ابتلاء، دَ بلاء نه دے په اصل کښ حال او حقیقت معلومولو ته وئیلے شي او دا معلومیږي کله په مصائبو سره او کله انعاماتو سره دَ دے وجے نه دَ بلاء اطلاق په دواړو کیدے شي لیکن اکثر ابتلاء په مصائبو راتللو سره وی دلته په مالونو کښ ابتلاء عامه ده که په تکالیف شرعیه سره وی لکه زکوٰة انفاق فی سبیل الله یا تکالیف کونیه قحط، او هلاکت دَ مالونو په نورو حوادثو سره دا رنګ په نفسونو کښ ابتلاء هم عامه ده کله په تکالیف شرعیه سره وی شهادت یا زخمي کیدل په جهاد کښ مونځ کول یا تکالیف کونیه مرضونه، غمونه راتلل دا رنګ په سوره بقره کښ تیر شوي دي۔

وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْکِتٰبَ مِنْ قَبْلِکُمْ، په دیکښ ابتلاء روحاني ذکر کوی روستو دَ ابتلاء مالی او بدنی نه، اُوْتُوا الْکِتَابَ، نه مراد یهود او نصارٰی دی لیکن په دے صفت ذکر کولو کښ اشاره ده ډیر قباحت دَ دوی ته چه دوی سره دَ علم دَ کتاب نه داسے ګناهونه کوی۔ او مِنْ قَبْلِکُمْ، کښ زیات تاکید ته اشاره ده چه زاړه عالمان دی یادَ یٔ دَ دے دَپاره راوړلو چه دَ اوتوا الکتاب اطلاق په قرآن والو باندے هم کیږي نو دا قید احترازی یٔ اوړلو، وَلَتَسْمَعُنَّ، کښ هم اشاره ده چه دوی دغه اذی په اعلان سره کوی تردے پورے چه تاسو ته یٔ آوري۔

وَمِنَ الَّذِیْنَ اَشْرَکُوْٓا، عوام مشرکین عرب او عجم مراد دی۔ اَذًی کَثِیْرًا، اذی عام په هغه تکلیفونو باندے اطلاق کیږي چه دَ ژبے نه صادریږي دا لفظ شامل دے دَ دوی شرکیه اقوالو ته او طعن کول په نبي او په قرآن او سب او شتم کول او صحابه کرامو ته او په شعرونو او نثرونو سره دَ هغوی یدی بیانول او نور بهتانونه وئیل په هغوی باندے چه دَ دے په آوریدلو سره دَ مؤمنانو زړونو ته تکلیف رسیږي۔

وَإِذْ أَخَذَ اللّٰهُ مِيثَاقَ الَّذِينَ

او کوم وخت چه واخستو الله تعالیٰ پوخ لوظ د هغه کسانو نه

أُوتُوا الْكِتٰبَ لَتُبَيِّنُنَّهٗ لِلنَّاسِ

چه ورکړې شوې دې هغوی ته کتاب خامخا بیان (تشریح) به کوئ دَ خلقو ته

وَلَا تَكْتُمُونَهٗ فَنَبَذُوهُ وَرَآءَ

او نه به پټوی دے لره نو اوغورځوو هغوی روستو

ظُهُورِهِمْ وَاشْتَرَوْا بِهٖ ثَمَنًا

دَ شاګانو خپلو نه او واخستو هغوی په هغې سره عوض

---

وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا ، یعنی چه په دغه اذی بانُدے صبر اوکړئ او سره دَدے په دین بانُدے کلک پاتے شئ۔ وَتَتَّقُوا ، کوم کارونه او اخلاق چه مناسب نه دی دَ شان دَ مؤمن داعی مجاهد سره دَ هغې نه ځان بچ ساتئ۔

فَإِنَّ ذٰلِكَ ، دا اشاره ده مجموعه صبر او تقویٰ ته مفرد یې دَ دے وجې نه ذکر کړو چه دَ دواړو خصلتونو جمع کول فائده ورکوی۔

مِنْ عَزْمِ الْأُمُوْرِ ، عَزْمِ ، مصدر دے په معنیٰ دَ پوخ قصد کولو او دا مصدر په معنیٰ دَ مفعول دے۔ اضافت دَ صفت دَ موصوف ته اَلْأُمُوْرَ الْمَعْزُوْمَاتِ عَلَيْهَا هغه کارونه چه پوخ قصد اوکړی دَ هغې هر یو عاقل شخص۔ یا هغه کارونه چه الله تعالیٰ پوره واجب کړیدی په بندګانو خپلو بانُدے۔ ابوحیان وئیلی دی چه ډیر پاخه او ښائسته کارونه۔ صاحب اللباب وئیلی دی چه دَ حق او دَ خیر دَ کارونو نه۔ بعض مفسرینو وئیلی دی چه دا منسوخ دے په آیت دَ قتال سره لیکن صحیح قول دا دے چه دا ښائسته اخلاق دَ مدارات دَ دعوت دَپاره دی منسوخ نه دی۔

# قَلِيلًا ۭ فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُوْنَ ﴿۱۸۷﴾

| لږ (دنیا) نو بد دے هغه چه دوی اخلی - |
|---|

۱۸۷ :- په دے آیت کښ دَ دوی دریم قباحت ذکر کوی چه هغه حق پټول او عهد ماتول دی او په هغے باندے زجر ورکوی او دَ مخکښ آیت سره ربط دا دے چه مخکښ دَ دوی دَ طرف نه اذیت ذکر کړے شو نو دلته دَ هغه اذیت مثال ذکر کوی چه هغه صدق دَ آخری نبی صلی الله علیه وسلم دَ دوی په کتاب کښ ذکر وو دَ هغے پټول دی دَ دے وجے نه په طریقه دَ عطف سره ذکر کړے دے -

وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ، لفظ دَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ، دَ زیات تقبیح دَ پاره دے چه کتاب ورسره شته دے او بیا هم حق پټوی - او دا مِيْثَاقَ دَ دوی په دغه کتاب کښ موجود دے کوم چه دوی له ورکړے شوے دے -

لَتُبَيِّنُنَّهٗ لِلنَّاسِ ، هٗ ، ضمیر راجع دے کتاب ته - تبیان نه مراد تشریح دَ هغے دَ عقیدو او دَ احکامو ده چه په هغے کښ دَ آخری نبی صلی الله علیه وسلم دَ نبوت ذکر هم دے -

وَلَا تَكْتُمُوْنَهٗ ، دا عطف دے په لتبيننه باندے او تاکید په نون سره پکښ ځکه نشته دے چه دا منفی دے یا اکتفاء شویده په مخکښ نون موکده سره او بعضے مفسرینو وئیلی دی چه دا جمله دَ حال په ځائے کښ ده -

سوال :- امر دَ تبیان خو مستلزم دے نهی دَ کتمان لره نو دائے ولے ذکر کړو ؟

جواب :- تبیان نه مراد تشریح دَ هغه آیاتونو ده چه په دغه کتاب کښ دی او کتمان نه مراد تاویلات فاسده او شبهات باطله دی او دا منافی دی دَ تبیان سره .

فَنَبَذُوْهُ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ ، هٗ ، ضمیر راجع دے کتاب ته یا میثاق ته او نبذ روستو دَ شا ګانو ته اشاره ده چه دوی هغے ته

هیڅ اعتبار نه ورکوی او نه ورته التفات کوی لکه چه یو څیز شاته وی نظر ورباندے نه لګیږی۔

وَاشْتَرَوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا ، نبذ ، یو قباحت دے او اشتراء دَ دنیا دَ هغے نه زیات قباحت دے ځکه چه په دیکښ غوره کول دَ دُنیا دی په آخرت باندے۔ ثَمَنًا قَلِيْلًا ، ټولو مالونو او جاه و مرتبه دَ دنیا ته وئیلے شی۔

فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُوْنَ ، وجه دَ ناکاره والی دا ده چه دا سبب دَ عذاب الیم دے۔

فائده :- آلوسی په اشارات کښ لیکلی دی چه اوتوا الکتٰب مطلق علماؤ ته اشاره ده او تفسیر فتح البیان کښ لیکلی دی هرچا ته چه الله تعالیٰ ورکړے وی علم دَ یو کتاب که هر یو کتاب (الٰهی) وی مراد دے۔ او علماء دَ دے ملت اسلامیه هم اهل کتاب دی۔ رازی وئیلی دی چه ظاهر دَ دے آیت اګر چه خاص دے په یهودو او نصارٰی پورے لیکن بعید نه ده چه مسلمانانو ته هم شامل شی ځکه چه هغوی اهل قرآن دی او قرآن دَ ټولو کتابونو نه اشرف دے۔ قرطبی وئیلی دی چه دا خبر عام دے دوی ته او نورو (مسلمانانو) ته۔ حسن او قتاده وئیلی دی دا آیت دَ هر هغه چا په باره کښ دے چه علم دَ یو څیز دَ کتاب (الله) ورکړے شوے وی نو څوک چه علم لری نو هغه دِ بیان کړی او ځان دِ بچ کړی دَ پټولو دَ علم نه ځکه چه دا هلاکت دے۔ او محمد بن کعب وئیلی دی حلال نه دی عالم لره چه چپ شی په خپل علم باندے او حلال نه دی جاهل لره چه پټ شی په خپل جهل باندے ځکه چه الله تعالیٰ دَ علماؤ په باره کښ دا آیت نازل کړے دے او جاهلانو ته یې امر کړیدے فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ۔

ابو هریره رضی الله عنه وئیلی دی چه که چرے نه وے دا عهد چه الله تعالیٰ دَ اهل کتابو نه اخستلے دے نو ما به تاسو ته هیڅ حدیث نه وے بیان کړے نو بیا یې دا آیت او لوستلو۔

لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ

گمان مه کوه په هغه کسانو چه خوشحالیږی

بِمَآ اَتَوْا وَّيُحِبُّوْنَ اَنْ يُّحْمَدُوْا

په هغه کار چه کوی (رحق پټول) او غواړی چه صفت او کړیشی . دَ دوی

بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ

په هغه کار چه دوی نه دے کړے نو گمان مه کوه په دوی باندے

بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ ۚ وَلَهُمْ

په بچ کیدلو سره دَ عذاب نه او دَ پاره دَ دوی

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۸۸﴾

عذاب درد ناک دے ۔

او ابن جریر نقل کړیدی چه کعب احبار رضی الله عنه او ئیل چه دا آیت ستا سو دَ پاره نه دے (اے مؤمنانو) نو عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ورته غصه شو۔

۱۸۸ :۔ په دے آیت کښ کتابیانو ته بل زجر ورکوی او دَ ایذاء ورکولو بل مثال دے چه هغه ابن جریر دَ سعید بن جبیر نه روایت کړیدے چه دوی په صفت دَ نبی صلی الله علیه وسلم (چه دَ دوی په کتاب کښ ذکر وو) پټولو او په دے باندے ئے خوشحالی کوله او تمنا به ئے کوله چه زموږ تعریف دِ اوکړیشی چه دوی دَ ابراهیم علیه السلام تابعداری ۔ او په دے قول سره دَ ما قبل آیت سره دا تړلے شویدے او مراد په الذین سره په لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ بِمَآ اَتَوْا کښ هغه کسان دی چه دَ هغوی نه میثاق اخستلے شوے وو او په مخکښ آیت کښ ذکر وو نو اسم ظاهر ئے په ځائے دَ ضمیر کښ ذکر کړیدے او تائید دَ دے حدیث دَ بخاری او مسلم دے چه مروان ابو رافع ته او ئیل لاړشه ابن عباس رضی الله عنهما ته اُو وایه

که یو شخص زمونږ نه چه خوشحالی کوی په هغه څیز چه ورکړے
شوی ورته (په قراءت دَ اوتوا) او خوښوی چه دَ هغه تعریف
اوکړے شی په هغه کار سره چه ئے کړے نه وی نو بیا خو په مونږ
ټولو باندے به عذاب وی (یعنی دا سے خوئی په هر یو شخص
کښ شته دے) نو ابن عباس رضی الله عنهما جواب ورکړو
چه ستاسو دَ دے آیت سره څه کار دے دا خو دَ اهل کتابو په
باره کښ نازل شوید ے او وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ الَّذِيْنَ
اُوْتُوا الْكِتٰبَ دواړه آیاتونه ئے اولوستل او ورپسے ئے اُوئیل
چه مراد دلته دَ اوتوا نه پټول دَ صفت دَ نبی صلی الله
علیه وسلّم دے. نو دَ دینه ثابته شوه چه دا آیت دَ مخکښ
آیت سره تړلے شوے دے. او بِمَا اُوْتُوْا، نه مراد حق
پټول او نورکتا هونه دی - یعنی دلته اتیان په معنیٰ دَ فعل
(کولو) دے - او يَفْرَحُوْنَ، نه مراد فرح دَ اعجاب او دَ
تکبر دہ -

وَيُحِبُّوْنَ اَنْ يُّحْمَدُوْا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا، هغه چه نه دے کړے
هغه حق پرستی او اطاعت دَ رسول دے او دا رنګ اتباع دَ ملت
ابراهیمیه دہ او بعضے مفسرینو وئیلی دی چه داخل دی په دے
کښ هغه څوک چه کار دَ نیکۍ اوکړی او په هغے باندے ریا او تکبر
کول ئے مقصد وی او غواړی دا چه نور خلق دَ دہ ستائنه اوکړی
په دینداری او تقوی سره - او دا سے خلق خو په دے زمانه
کښ ډیر دی -

فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ، زجاج وئیلی دی چه
کله چه قصه اوږده شی او مخکښ کلام لیرےکړے پاتے وی نو هغه
فعل واپس راګرځولے شی دَ تاکید دَ پاره نو دلته فلا تحسبن دَ
مخکښ لاتحسبن اعاده دہ او بمفازۃ دویم مفعول دے دَ هغے
دَ پاره مفازۃ مصدر میمی یا اسم مکان دے. بچ کیدل یا ځائے دَ
بچ کیدلو ته وئیلے شی او باء، دَ ملابسۃ دَ پاره دہ یعنی متلبسین
بمفازۃ او فراء وئیلی دی چه مفازۃ په معنیٰ دَ بعید من العذاب

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط

او خاص الله تعالیٰ لره بادشاهي د آسمانونو او د زمکې ده ،

وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ (۱۸۹) ع

او الله تعالیٰ په هر څيز باندې قدرت والا دے۔

سره دے۔

وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ، دا تاکيد دے د ماقبل جملې د پاره۔

۱۸۹:- خلاصه:- د دے آيت نه تر آخر د سورت پورې دريم باب دے په ديکښ څلور مضامين د سورت واپس ذکر کوي توحيد په ۱۸۹ کښ او رسالت په ۱۹۳ او جهاد په ۱۹۵ کښ او اشارة انفاق ته ده په ۱۹۶ کښ۔ اولس صفتونه ذکر کوي د صالحينو، اولوا الالباب، ذکر لساني، عبادت په جوارحو سره فکر په زړه سره، او لوستل د څلورو دعاګانو۔ او پنځه صفتونه په ۱۹۵ کښ او صفات د صالحينو د کتابيانو۔ او آخري آيت متعلق دے د ټول سورت سره۔

تفسير

په دے آيت کښ علت دے د دے د پاره چه۔ فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ، يعني هغه ذات چه د هر څيز بادشاهي د هغه د پاره خاص ده او دا خلق د هغه رعيت دي دا رنګ په هر څيز باندې هغه قادر دے۔ نو د داسې ذات د عذاب نه په دوی څه رنګه بچ شي (اللباب)

او په دے آيت کښ توحيد د تصرف او د قدرت کلي د الله تعالیٰ ذکر دے۔

إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ

بیقینًا په پیدائش دَ آسمانونو او دَ زمکه کښ

وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ

او تلو راتلو دَ شپې او دَ ورځ کښ

لَآيٰتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ﴿۱۹۰﴾

ډیر دلیلونه دی صفا عقل والو لره -

س۱۹۱ :- هر کله چه مخکښ آیت کښ دعوی دَ توحید ذکر شوه نو دَ هغې دَ اثبات دَپاره دلیل عقلی ذکر کوی۔

إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيٰتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ، تفسیر دَ اول چه خیر دَ إِنَّ دے په سورة البقره س۱۶۴ کښ او تفسیر دَ اولی الالباب په دے سورت کښ تیر شوید ے۔

سوال :- دلته ئے لږ امور ذکر کړید ی او په سورة البقره س۱۶۴ کښ لس خیزونه ذکر کړید ی دَ دے وجه څه ده ؟

جواب :- هلته لقوم یعقلون ذکر وو چه هغه عام خلق دی نو دَهغوی دَ پوهے دَپاره تفصیل پکار دے او دلته اولی الالباب ذکر دی چه دا خاص مسلمانان دی نو دَ دوی دَ پوهے دَپاره اختصار کافی دے۔

فائده :- ابو حیان او سیوطی او ابن کثیر دَ عائشه رضی الله عنها روایت ذکر کړید ے چه نبی صلی الله علیه وسلم یو شپه عبادت کوو او ژړائے کوله بیائے اوفرمائیل چه زه به ولے نه ژاړم او حال دا چه الله تعالیٰ نن شپه دا آیاتونه نازل کړید ی (ان فی خلق السموت ------- الآیات) بیائے اوفرمائیل هلاکت دے هغه چا لره چه دا لولی او فکر پکښ نه کوی -او بل روایت کښ دی چه هلاکت دے هغه چا لره چه شوخندکوی په مینځ دَ دواړو ژامو کښ په دے آیتونو سره او فکر

اَلَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيٰمًا

دوی داسے خلق دی چه یادوی الله تعالیٰ په ولاړے

وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِهِمْ

او په ناستے او په دوه خپلو بانډے

وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ خَلْقِ

او فکر کوی په پیدائش

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ رَبَّنَا مَا

دَ آسمانونو او دَ زمکه کښ (وائی دوی) اے ربه زمونږ نه دی

خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا ۚ سُبْحٰنَكَ

پیدا کړی تا دا بے فائدے ، پاکی ده تا لره

فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۹۱﴾

نو بچ کړے مونږ دَ عذاب دَ اُور نه .

پکښ نه کوی - او دا رنګ بخاری مسلم حدیث دَ ابن عباس رضی الله عنهما ذکر کړیدے چه په هغے کښ راغلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلّم دَ شپے دَ خوب نه بیدار شو او آسمان طرف ته ئے اوکتل نو دا آیاتونه ئے اولوستل بیا ئے یوولس رکعته مونځ اوکړو نو پدے روایت کښ دَ لس آیاتونو دَ خاتمے دَ سورة آلعمران ذکر دے او بل روایت کښ دَ آخر دَ سورة آلعمران تر اختتام پورے ذکر دے نو دَ دے آیت نه تر آخر پورے یوولس آیاتونه دی نو کوم روایت کښ چه دَ لس ذکر راغلے دے نو مراد دَ هغے دا دے چه دَ ان فی خلق السمٰوٰت آیت نه روستو ئے لس آیاتونه اولوستل -

ف۱۹۱ :- په دیکښ درے صفات صراحتًا ذکر کوی ذکر دَ ذړے ،

فکر کول، دعا کول او ښلورم صفت چه عبادت دَ جوارحو دے هغه په درے حالاتو کښ ذکر کړیدے۔
الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَامًا وَّقُعُودًا وَّعَلَىٰ جُنُوبِهِمْ، غوره دا ده چه دا صفت دے دَ اولی الالباب۔ او په دے ذکر کښ دوه اقوال دی اول قول دَ ابن مسعود او دَ علی او ابن عباس رضی الله عنهما او نخعی او قتاده نه هم نقل دے۔ چه دا په مونځ کښ دے چه په ولاړے کول دی او چه طاقت ئے نه کیږی نو په ناستے او چه په ناستے نشی کولے نو په ډډه لګولو سره او دا سے په حدیث دَ عمران بن حصین کښ وارد دے په روایت دَ بخاری سره او تائید دَ دے آیت دَ سورة النساء ۱۰۳ دے۔ او دویم قول دَ اکثر مفسرینو دے چه مراد دَ دینه دوام دَ ذکر دَ الله تعالیٰ دے په هر حال کښ چه په هغے کښ انسان وی او انسان دَ دے درے حالاتو نه خالی نه وی او مراد ذکر دَ ژبے دے سره دَ حضور دَ زړه نه آلوسی وئیلی دی چه اجماع دَ اهل علم ده چه ثواب دَ هغه چا نشته چه ذاکر وی په ژبه او غافل وی زړه دَ هغه او په دے ذکر کښ حمد تسبیح تهلیل تکبیر وغیره اذکار داخل دی او دَ ابن جریج نه نقل دی چه قراءت دَ قرآن هم ذکر دے۔
بیا بناء په اول قول باندے قیام ئے مخکښ ذکر کړیدے چه اصل حال دَ مونځ قیام دے بیا چه دَ قیام طاقت نه وی نو په ناسته سره دے بیا چه ناسته نشی کولے نو په اړخ سره دے نو په هغے کښ انتقال دے دَ اعلیٰ نه ادنیٰ ته۔ او بنا په دویم قول باندے ذکر دَ حال دَ قیام ډیر آسان دے بیا په حال دَ کیناستلو انسان اکثر په څه شغل کښ اخته وی نو ذکر ورباندے لږ ګران وی بیا په حال دَ اضطجاع کښ خو انسان اکثر آرام کوی او په حال دَ آرام کښ ذکر کول ډیر ګران وی یا دا چه دَ قیام زمانه لږه وی بیا زمانه دَ کیناستلو دَ قیام نه ډیره وی بیا زمانه دَ اضطجاع خوشیه ده او هغه دَ ټولو نه اوږده ده۔

سوال :- په سوره یونس ۱۲ کښ دَ دے ترتیب په عکس سره دے دَ هغې څه وجه ده ؟

جواب :- هلته دَ ناشکره یا مشرک دعا ذکر ده هغه په ډیر مصیبت کښ مجبورًا الله تعالیٰ ته آواز کوی او مجبوری دَ ډیرے دَ حالت نه شروع کیږی بیا لږه مجبوری دَ ناسته کښ وی بیا په حال دَ ولاړه کښ وی۔

وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِیْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ، دا عطف دے په یذکرون باندے او دا عبادت قلبیه دے۔ دا ئے دَ ذکر نه روستو راوړلو اشاره ده چه عقل او هدایت په ستور دَ ذکر سره حاصلیږی دغه وجه ده چه عام سائنس دانان چه په عقل سره فکر چلوی لیکن نور دَ ذکر ورسره نه وی نو گمراه شی۔ فکر اړول راړول دَ زړه دی په یوڅیز کښ (قرطبی) خَلْقِ معنیٰ مصدری مراد ده او مصدر مضاف دے مفعول ته یعنی فکر کوی په هیئاتُ او صفاتُ دَ دے مخلوقاتو کښ۔ یا په معنیٰ دَ مخلوق دے او اضافت په معنیٰ دَ فی دے یا اضافت بیانیه دے۔ مقصد دا دے چه فکر کوی په عجائباتو دَ مخلوق دَ الله تعالیٰ کښ او دَ هغې په حکمتونو او لطائفو رازونو کښ او دَ هغې نه دلیل نیسی په وجود دَ پیدا کوونکی او په توحید دَ هغه باندے او دَ هغه په علم او قدرت او نورو صفتونو دَ کمال باندے او طریقه دَ تفکر دَ الله تعالیٰ په مختلفو آیاتونو کښ ذکر کړیده لکه په سوره ق دَ ۶ نه تر ۱۱ پورے او په سوره ملک ۳ ۴ ۵ او سوره نباء ۶ نه تر ۱۶ پورے او نازعات دَ ۲۷ نه تر ۳۳ پورے۔ او سوره غاشیه ۱۸ ۱۹ ۲۰ او سوره انبیاء دَ ۳۰ نه تر ۳۳ پورے۔ دا رنګ نور هم ډیر آیاتونه دی او ځایونه دَ فکر ئے ذکر کړیدی اول خلق دَ آسمانونو او زمکے لکه دا آیت۔ دویم خپل نفسونه لکه سوره روم ۸ آیت۔ دریم آیاتونه دَ قرآن کریم لکه سورة البقره ۲۱۹ سورة نحل ۲۱۔ څلورم حال دَ نبی صلی الله علیه وسلم لکه په سوره

اعراف ۱۸۴ - پنځم په مثالونو دَ قرآن کریم لکه سوره حشر ۲۱.
شپږم په عقلی دلیلونو کښې لکه سوره رعد ۳ - اووم په عمل دَ نحل (تورۂ مچی) لکه سورۂ نحل ۶۹ -
سوال :- په ان فی خلق السموات والارض واختلاف اللیل والنهار کښې ځلور اشیاء ذکر کړے دی او دلته دوه ذکر کړیدی ؟
جواب :- اختلاف دَ شپے او ورځے دَ هغه حالاتو نه دی چه تابع دی دَ احوالو دَ آسمانونو او زمکو او اشاره ده چه په بعضے آیاتونو کښې تفکر کولو سره هم انسان زر صحیح مقصد ته رسیدلے شی -
فائده ۱ :- فی خلق السموات ...... آه کښې اشارۂ ده چه تفکر په ذات دَ الله تعالیٰ کښې منع دے ځکه چه قاسمی دَ ابن ابی حاتم نه او آلوسی دَ عمرو بن مرۂ روایت او دَ ابن عمر او ابن عباس رضی الله عنهما نه روایات نقل کړیدی چه فکر په نعمتونو او په مخلوق دَ الله کښې کوئ - او په ذات دَ الله تعالیٰ کښې فکر مه کوئ قاسمی وئیلی دی چه دَ دے دَ پارۂ ډیر شواهد شته دے - او دا رنګ فکر په ذات الهیه کښې اکثر وسوسو ته رسیدل کوی او دَ هغے نه تعوذ غوښتل پکار دی -
فائده ۲ :- په بارۂ دَ عبادت دَ تفکر او اهمیت دَ دے کښې ډیر اقوال دَ سلف صالحینو قرطبی او ابن کثیر نقل کړیدی اګرچه په هغے کښې حدیث مرفوع صحیح متصل معلوم نه دے لیکن دَ قرآن کریم په ډیرو نصوصو سره چه په هغے کښې امر یا ترغیب دَ تفکر ذکر دے او په اقوالو دَ سلفو سره هم اکتفاء کیدیشی - ځینی دَ هغه اقوالو نه دا دی -
۱ حسن بصری دَ ډیرو صحابه کرامو نه نقل کړیدی چه هغوی وئیلی دی رنړا دَ ایمان فکر کول دی -
۲ دَ عمر بن عبد العزیز نه روایت دے چه کلام په ذکر دَ الله تعالیٰ سره ښه کار دے او فکر په نعمتونو دَ الله تعالیٰ کښې

افضل عبادت دے۔
۳ دَ حسن بصری نه روایت دے چه تفکر دَ یو ساعت غوره دے دَ قیام دَ یوے شپے نه۔
۴ او قرطبی بغیر دَ سند نه ذکر کړیدی چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه فکر دَ یو ساعت غوره دے دَ عبادت دَ یو کال نه۔
۵ قرطبی دَ ابن عربی نه نقل کړیدی چه په مذهب دَ صوفیه کښ فکر افضل دے دَ صلوٰة نه او په نیز دَ فقهاؤ صلوٰة افضل کړ دَ تفکر نه۔
۶ ابن عطیه وئیلی دی چه غوره دَ امورو نه درمیانه وی (یعنی صلوٰة او فکر دواړه لکه چه نبی صلی الله علیه وسلم دَ شپے پاڅیدلو اول ئے نظر اوکړو آسمان ته او بیا ئے مونځ اوکړو) دَ قراءت دَ کتاب او دَ معانی دَ سنت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه چالړه چه فهم دَ هغے لری دا افضل کار دے او رد ئے کړیدے په بعضے صوفیه باندے چه فکر ته دا سے عبادت وائی چه مونځ نه کوی او کله بے اودسه مونځونه کوی (او دا خو الحاد فی سبیل الله دے)
رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا ، دا جمله حال دے په تقدیر دَ یقولون سره۔ یا جمله مستانفه ده په ذکر دَ نتیجے دَ تفکر سره او هغه څلور نتیجے دی په ترتیب سره آلوسی ذکر کړیدی یعنی هر کله چه دوی فکر اوکړو په مخلوقاتو دَ الله تعالیٰ کښ نو پوهه شو چه دَ دے مخلوقاتو دَ پاره پیدا کوونکے شته نو دوی اوئیل چه ربنا او هر کله چه دوی پوهه شو چه په دے مخلوقاتو کښ دَ الله تعالیٰ بے شماره حکمتونه دی نو دوی اُوئیل مَا خلقت هذا باطلًا۔ هذا اشاره ده مخلوق ته باطل عبث او بے فائدے ته وئیلے شی یا هغه چه فائده پکښ مقصود نه وی او هر کله چه لویه فائده او حکمت پکښ توحید دَ الله تعالیٰ دے په طریقه دَ پاکوالی سره دَ مشابهت دَ مخلوق نه نو وریسے اُوئیل

رَبَّنَآ اِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ

اے ربه زمونږ یقیناً څوک چه داخل کړے ته اور ته

فَقَدْ اَخْزَيْتَهٗ ؕ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ

نو یقیناً او شرموؤ تا هغه لره او نیشته ظالمانو لره

مِنْ اَنْصَارٍ ﴿۱۹۲﴾

هیڅ مددګاران -

سُبْحَانَكَ ، هرکله چه معلومه شوه چه عالم باطل نه دے او الله تعالیٰ دَ باطل جوړولو نه پاک دے نو خلق په دے عقیده کښې مختلف دی صحیح اعتقاد والا او باطل اعتقاد والا دَ دواړو دلو په جزا کښې ضرور فرق دے نو سوال کیږی دَ الله تعالیٰ نه چه مونږ په صحیح اعتقاد سره دَ اور نه بچ اوساتے دَ دے وجے نه ئے فاء ذکر کړه -

فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ، نو مراد دَ دینه طلب دَ توفیق دَ هغه اعتقاد دے چه سبب دے دَ بچ کیدلو دَ اور نه -

۱۹۲:- دا دویمه دُعا روستو دَ طلب دَ توفیق دَ توحید نه - په دے سره طلب کوی چه بچ شی دَ شرک نه او دا په طریقه دَ علت دے دَ قنا عذاب النار دَ دے وجے نه حرف عطف ئے نه دے ذکر کړے -

رَبَّنَآ اِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ اَخْزَيْتَهٗ ، اخزاء ، نه مراد اهلاک دے یا سخت شرمنده کول او سخت ذلیل کول دی او اخزاء په دے معنیٰ سره خاص دہ په کافرانو پورے او دا قول دَ سعید او ثوری او قتاده نه روایت دے - نو معلومه شوه چه مراد دَ ادخال دَ اور نه خلود فی النار دے - او مقصود په دے دُعا کښې په طریقه دَ ذکر دَ مسبب او مراد ترینه سبب دے یعنی مونږ دَ شرک نه بچ اوساتے چه سبب دَ سخت شرمندګی دے -

رَبَّنَآ اِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا

اے ربه زمونږ یقینًا مونږ واوریدلو یو آواز کوونکے

يُّنَادِيْ لِلْاِيْمَانِ اَنْ اٰمِنُوْا

چه آواز کوی ایمان ته چه ایمان راوړئ

بِرَبِّكُمْ فَاٰمَنَّا ۖ رَبَّنَا

په رب خپل نو ایمان راوړو مونږ اے ربه زمونږ

فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا

نو او بخښے مونږ ته گناهونه زمونږ او لرے کړے زمونږ نه

سَيِّاٰتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْاَبْرَارِ ﴿۱۹۳﴾

بدئ زمونږ او مرګ راولے په مونږ په ملګرتیا د نیکانو کښې۔

---

وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ، په نفی د نصرت کښې نفی د شفاعت او نفی د ولایت داخل دے او ذا دلیل دے چه مراد د دینه کافران او مشرکان دی۔

۱۹۳:۔ دا دریمه دُعا ده روستو د عقیدے د توحید او د بیخ کیدلو د شرك نه ایمان په رسول او قرآن باندے ذکر کوی او هغه وسیله ګرځوی د پاره د مغفرت د ګناهونو مخکښې دواړه دعا ګانے بناء دی په تفکر کولو سره په عقلی دلیلونو کښې او دا دواړه دُعا ګانے بناء دی په تامل کولو په سمعی (نقلی) دلیلونو کښې۔ او تکرار د لفظ رَبَّنَا دلالت کوی په ډیر عاجزئ او ډیر توجه کول الله تعالیٰ ته۔

رَبَّنَا اِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا، سمع چه کله متعدی شی هغه څیز ته چه مسموع وی نو یو مفعول غواړی او هر کله چه متعدی شی ذات ته چه سماع ئے نه کیږی نو روستو دا سے جمله چه دلالت کوی په سمع باندے یا به حال وی یا به دویم مفعول وی دلته هغه لفظ د يُنَادِيْ لِلْاِيْمَانِ، مراد د

مُنَادِیٍ ، نه رسول الله صلی الله علیه وسلم دے په قول دَ ابن مسعود رضی الله عنه او ابن عباس رضی الله عنه وغیرهم کښ او په نیز دَ محمد بن کعب او قتاده مراد دَ دینه قرآن کریم دے۔

مُنَادِیًا ، کښ تنوین دلالت کوی په تعظیم دَ شان دَ هغه باندے او په لفظ دَ منادی کښ زیات تاکید دے په دعوت کښ ځکه چه دا لفظ عام دے لرے او نیزدے ټولو ته شامل دے۔

یُنَادِیُ روستو مُنَادِیًا ته هم دلالت کوی په تاکید دَ دعوت باندے په سبب دَ اجمال روستو دَ تفصیل نه یا تخصیص روستو دَ تعمیم نه۔

لِلْاِیْمَانِ ، دَ نداء نه روستو کله لام استعمالیږی چه دلالت کوی په خصوصیت باندے او کله الی ذکر کیږی چه دلالت کوی په انتهاء باندے دلته خصوصیت مراد وو دَ دے وجے نه لام ئے ذکر کړیدے۔

اَنْ اٰمِنُوْا بِرَبِّكُمْ فَاٰمَنَّا ، اَنْ ، تفسیر یه دے بیان دے دَ ینادی۔ یا باء ، پټه ده او متعلق ده په ینادی پورے۔

فَاٰمَنَّا عطف دے په سمعنا باندے یعنی دَ سماع سره پیوست مونږ ایمان قبول کړو۔

رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا ، فاء ، تفریع ده په ایمان او په ربوبیت باندے دلالت کوی چه دغه ایمان وسیله ده دَ پاره دَ دے دُعاء کولو۔ ذُنُوْبَ ، نه مراد غټ ګناهونه دی۔

ذُنُوْبَ ، اخستلے شویدے دَ ذنب نه لکئ ته وئیلے شی یعنی هغه ګناه چه په هغے پسے عقوبت پشان دَ لکئ اخختلے وی نو هغه کبیره وی۔

وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّاٰتِنَا ، مراد سیاٰت نه صغائر ګناهونه دی ماخوذ دے دَ سوء نفس نه قبیح کار ته وئیلے شی چه بد ګنړلے کیږی۔

غفران او تکفیر کښ اول فرق دا دے چه غفران اکثراً

رَبَّنَا وَاٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا عَلٰى

اے ربه زمونږ راکړے مونږ ته هغه چه تا وعده کړے ده مونږ سره په

رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ

ژبه د رسولانو ستا او مه شرموے مونږ په ورځ د قيامت.

اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴿۱۹۴﴾

يقيناً ته خلاف نه کوے د وعدے نه۔

استعماليږي په فعل د الله تعالىٰ کښ او تکفير اکثر د بنده په فعل کښ استعماليږي۔ لکه کفاره د قسم او د ظهار وغيره ورکول نو معلومه شوه چه دويم لفظ افضل دے د اول نه نو اول لفظ مناسب دے د غټو ګناهونو سره۔ او دويم د وړو ګناهونو سره۔ دويم فرق دا دے چه تکفير کښ معنىٰ د پټولو ده نو غټ ګناه سره پټول او پرده اچول مناسب دي او د وړوکی سره زائل کول مناسبت لري۔

وَتَوَفَّنَا مَعَ الْاَبْرَارِ، دا جمع د بار يا د بَر ده هغه خوک چه نيک کارونه ئے په وسعت سره وي۔ په ديکښ سوال د وفات نه دے ځکه چه په حديث کښ د هغے نه منع کړے شويده۔ بلکه مقصد پکښ معيت د ابرار دے او د معيت دوه معنے دي۔ اوله معنىٰ دا ده چه د دوي پشان عاقبت ئے وي نو د دوي سره به ئے روح په حال د برزخ کښ ملګرې شي او په جنت کښ هم د هغوي سره يو ځائے وي۔ دويمه معنىٰ دا ده چه معيت په معنىٰ د تابعدارئ سره دے لکه په (اولئك مع الذين انعم الله عليهم ---- نساء ۶۹) کښ۔

۱۹۴:۔ په ديکښ خلورمه دعاء ده د دواړو د مغفرت د ګناهونو نه طلب کوي د استحقاق د جنت په توفيق د حسناتو سره روستو د ايمان نه۔

رَبَّنَا وَاٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا ، دَ مغفرت دَ گناهونو دَ توفیق دَ حسنا تو سره مناسبت دے دَدے وجے نه واو دَ عطف ئے ذکر کړو -

سوال :- الله تعالیٰ خو هیڅ کله دَ خپلے وعدے نه خلاف نه کوی نو په دے طلب کولو کښ څه فائده ده ؟

جواب ع۱ :- په دُعا کښ دَ حصول دَ مقصد نه علاوه اصل مقصد الله تعالیٰ ته تضرع او عاجزی پیش کوی دی په اظهار دَ عبودیت سره -

جواب ع۲ دلته مراد طلب دَ توفیق دَ اسبابو دَ حصول دَ وعدے دے نو معنیٰ دا ده چه توفیق راکړے مونږ ته دَ حصول دَ هغے وعدے او آسان کړے مونږ ته هغه اعمال چه په هغے سره دغه وعده حاصلیږی -

عَلٰی رُسُلِكَ ، دلته مضاف پټ دے علی سنة رسلک یا متعلق پټ دے مُنَزَّلًا عَلٰی رُسُلِكَ - او هر کله چه دَ دے وعدے سوال په دے آیت کښ ذکر دے نو په سوره فرقان ۱۶ کښ دیته وعدًا مسئولًا وئیلے شوید ے - او دا دلیل دے چه ثوابونه په نیک اعمالو سره په طریقه دَ استحقاق سره نه دی لکه چه معتزله وائی بلکه په سبب دَ وعدے دَ الله تعالیٰ سره دی او دیته حق تفضلی وئیلے شی په نیز دَ اهل سنت باندے -

وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ، هر کله چه وعده دَ جنت په دوه قسمه سره ده یو دا چه جنت ته دَ اول وخت نه داخل شی او دَ جهنم دَ شرمندگی نه بچ شی - دویم دا چه جنت ته لاړ شی روستو دَ جهنم دَ داخلیدلو نه نو دلته دَ حصول دَ اول قسم دَ پاره ئے دا جمله هم ورسره ذکر کړله - مخکښ دُعاء کښ ۱۹۲ اخزاء کامل مراد وه یعنی جهنم ته ابدی دخول - او دلته نفس اخزاء مراد ده چه هغه په صرف داخلیدو دَ جهنم سره حاصلیږی - نو تکرار نشته -

فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ اَنِّیْ

نو قبول کړے دعا ګانے د دوی رب د دوی ځکه چه زهٔ

لَآ اُضِیْعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنْکُمْ

نه برباد وم نیک عمل د عمل کوونکی ستاسو نه

مِّنْ ذَکَرٍ اَوْ اُنْثٰی ج بَعْضُکُمْ

که نارینه وی او که زنانه وی بعضے ستاسو

مِنْ بَعْضٍ ج فَالَّذِیْنَ هَاجَرُوْا

د جنس د بعضو نه دی، نو هغه کسان چه هجرت ئے کړیدے

اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِیْعَادَ، دا صفت سلبیه د الله تعالیٰ په دعا کښ په طریقه د وسیلے سره ذکر کړیدے او په دے سورت کښ ان الله لا یخلف المیعاد - په طور د اخبار سره د پاره د تسلیٔ ذکر کړے وو - د دے وجه دلته مخاطب او هلته په غائب صیغه سره ذکر دے -

فائده :- په دے دعا ګانو کښ لفظ د ربنا پنځه کرته ذکر کړیدے دا د پاره د مبالغے د طلب په دعا کښ نو معلومه شوه چه الحاح په دعا کښ سبب د استجابت دے - او حسن بصری نه روایت دے چه دوی ډیر کرته ربنا ربنا اوئیل نو الله ځکه استجابت اوکړو - او امام جعفر نه روایت دے په هرچا چه لوے تکلیف راشی یائے څه حاجت وی نو ربنا پنځه کرته په عاجزیٔ سره اوائی نو الله تعالیٰ د هغه نه هغه تکلیف لرے کوی او د هغه حاجت پوره کوی دا اسے ابوحیان په البحر المحیط کښ لیکلی دی -

وَأُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ

او ویستلی شوی دی د کورونو خپلو نه

وَأُوذُوا فِي سَبِيلِي وَقَاتَلُوا

او کړولی شوی دی په لار زما کښ او جنګونه ئې کړیدی

وَقُتِلُوا لَأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ

او وژلی شویدی، خامخا لرې به کړم د دوی نه

سَيِّئَاتِهِمْ وَلَأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّاتٍ

بدئ د دوی او خامخا داخل به کړم دوی جنتونو ته

تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ

چه بهیږی به لاندے د هغے نه ویالے،

ثَوَابًا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ ط وَاللَّهُ

بدله ده د الله تعالیٰ د طرف نه، او الله

عِنْدَهُ حُسْنُ الثَّوَابِ ﴿۱۹۵﴾

سره ښائسته بدلے دی۔

ف۱۹۵:۔ په دے آیت کښ بشارت ذکر کوی په استجابت سره او بیا پنځه صفات نور ذکر کوی د بشارت اخرویه د پاره۔

فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ، تیر شوے صفات او دُعا گانے په صیغه د مستقبل سره وی اشاره ده استمرار د عادت د اولوا الالباب ته او استجاب فعل ماضی ذکر کول د تیقن د اجابت د پاره دا هم په معنیٰ د مستقبل ده۔ استجابت و تیلے شی اجابت ته په حصول د مراد سره لکه چه مخکښ تیر شوی دی او کله چه د دے سره داعی ذکر شی نو په لام سره متعدی کیږی او کله چه دُعاء ذکر شی نو بالذات متعدی راځی۔

أَنِّیْ لَا أُضِیْعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنْکُمْ، باء، سببیه پته ده او په کلام کښ دَ غائب نه التفات اوکړو متکلم ته او مخاطب ته دَ پاره دَ اظهار دَ شرافت دَ دعا کوونکو۔ او په نیز دَ کوفیانو استجاب کښ معنیٰ دَ قول ده نو مراد دا دے چه قَائِلًا یا مَقُوْلًا لَهُمْ انی ۔عَمَلَ عَامِلٍ، مراد دَ عمل نه دعا کانے دی چه مخکښ ذکر شوے یا مراد دَ دینه نور اعمال صالحه دَ دوی دی یعنی سبب دَ استجابت صرف دعا نه ده بلکه ورسره نور اعمال صالحه دی۔

مِنْ ذَکَرٍ اَوْ اُنْثٰی، بیان دے دَ عامل او تعمیم دَ دے بشارت دَ استجابت دے نارینه او زنانه دواړو ته۔

بَعْضُکُمْ مِّنْ بَعْضٍ، دا جمله مستانفه ده دَ پاره دَ بیان دَ مشارکة دَ زنانو دَ نارینو سره په دغه استجابت کښ۔

مِنْ بَعْضٍ، یعنی دَ یو اصل نه دی یا دَ یو جنس نه دی یا دَ یو دین والا دی۔ یا بعضے ستا سو مشابه دی دَ بعضو سره په ثواب حاصلولو کښ په طاعت باندے او عقاب موندلو کښ په معصیت باندے۔

فَالَّذِیْنَ هَاجَرُوْا، دا تفصیل دَ بعضے هغه اعمالو دے چه هغه نه ضائع کیږی اول دَ هغے نه هجرت ذکر کړے شوے دا ډیر سخت عمل دے په طبیعت دَ انسان باندے ځکه هغه وطن (چه په هغے کښ دَ انسان نشو و نما او تربیت شوے وی) خالص دَ دین دَ وجے نه وتل ډیر ګران دی۔

وَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِیَارِهِمْ، دا عطف تفسیر دے په ذکر دَ سبب دَ هجرت سره یعنی هجرت ئے دَ مجبورئ په وجه سره کړے دے۔ یا مراد دَ هَاجَرُوْا نه پریښودل دَ شرک دی او قطع تعلق دَ مشرکانو سره او مراد اخراج نه هجرت عرفی دے۔

وَ اُوْذُوْا فِیْ سَبِیْلِیْ، ایذاء، عام ده دَ اخراج او نورو ظلمونو ته او فی سبیلی نه مراد عبادت او دین دَ الله تعالیٰ دے او دا دَ اسبابو دَ اخراج نه دے اګرچه اخراج ئے په ظاهر کښ نه وی

لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِيْنَ

(دهوکه دِ نکړي تا تلل راتلل دګـپاوده)

كَفَرُوْا فِي الْبِلَادِ ﴿١٩٦﴾

دَ کافرانو په ښارونو کښې۔

کړے لیکن تکلیفونه ورکول سبب دَاخراج اوګرځیدلو دا رنګ دا ایذاء روستو دَ اخراج نه هم په نورو طریقو سره ده چه هغه وَقٰتَلُوْا وَقُتِلُوْا، دے۔ په دے دواړو کښې ایذاء ده دَ طرف دَ دشمنانو نه او دَدے ثوابونه هم جدا جدا دی۔ او دا ټولے جملے صله ده دَپاره دَ فَالَّذِيْنَ لیکن دا مستلزم نه ده چه په هر شخص کښې دا ټولے صلے (صفات) جمع وی که بعضے صفات په بعضو کښې او بعضے په نورو کښې وی نو هم دا حکم ورباندے صادق دے چه لَاُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ، دلته مراد دَ سیأت نه صغیره ګناهونه دی چه په طاعاتو سره معاف کیږی که کبائر وی او که نه وی اودا مذهب دَاهل سنت دے یا مراد دَ سیأت ښه ناکاره صفات دی چه په حال دَ کفر یا دَ معصیت کښې وی۔

وَلَاُدْخِلَنَّهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ثَوَابًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ، ثَوَابًا، مفعول مطلق دے ځکه چه معنیٰ دَ ادخلنهم لَاُثِيْبَنَّهُمْ ده یا حال یا تمیز دے دَ جنات دَپاره۔ نکره والے دَ ثوابًا او صفت دَ هغے په من عند الله سره دَپاره دَ تعظیم دے۔

وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الثَّوَابِ، لفظ دَ عِنْدَهٗ دلالت کوی په ډیر اختصاص او قربت باندے او متعلق دَ عنده پټ دے چه استقر دے او حسن الثواب دَ هغے فاعل دے۔ ثواب اکثر دَ خیر په جزاء کښې استعمالیږی او لفظ دَ حسن دَ زیادة خیریت او ښورة والی دَپاره دے۔

مَتَاعٌ قَلِيْلٌ قف ثُمَّ مَاْوٰهُمْ

| دا فائده ده لږه ، بیا ځائے د دوی |
|---|

جَهَنَّمُ ط وَبِئْسَ الْمِهَادُ (۱۹۷)

| جهنم دے ، او بد دے ځائے تیار شوے دا جهنم - |
|---|

۱۹۶ ـ ۱۹۷ :- په دے آیت کښ دفع د یو وهم ده چه مخکښ بشارت نه پیدا کیږی هغه دا ده چه هرکله الله تعالیٰ وعده اوکړه چه په سبب د دغه صفتونو او دعا ګانو سره الله تعالیٰ دے مؤمنانو لره په دنیا او آخرت کښ پوره بدله ورکوی نو معلومه شوه چه کافران په محروم وی په دنیا او آخرت کښ نو سوال پیدا شو چه د کافرانو ډیر تجارتونه او مالونه، جائیدادونه دی چه د هغے د پاره دوی سفرونه هم کوی نو جواب اوشو لَا یَغُرَّنَّكَ ، غرور ، طمع ورکول دی په یو محبوب کار کښ چه واقع نه شی یا ښکاره کول د ضرر دی په صورت د فائده کښ - او نهی د غرور نه مستلزم ده نهی لره د اغترار (دهوکه کیدلو) نه او خطاب نبی ته دے لیکن مراد تربنه امت دے -

تَقَلُّبُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِي الْبِلَادِ ، تَقَلُّبُ ، معنیٰ ډیر ګرځیدل د تجارتونو او د مال ګټلو د پاره لیکن ور سره پریشانی وی ځکه چه باب تفعل په تکلیف باندے هم دلالت کوی - الْبِلَادِ ، مختلف ښارونه او زمکے او وطنونه -

مَتَاعٌ ، دا علت د لایغرنك د پاره دے - دا خبر دے د مبتدا پټ یعنی هذا التقلب متاع - د متاع په معنیٰ کښ قلت مراد دے او قَلِيْلٌ ، تاکید دے د پاره د قلت د متاع -

ثُمَّ مَاْوٰهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ، او دا مقابل دے دا دخلنهم جنات په جزاء د مؤمنانو کښ - الْمِهَادُ ، هغه څیز چه دوی د ځان د پاره تیار کړیدے یا الله تعالیٰ د دوی د پاره

لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ

لیکن هغه کسان چه یریږی دَ رب خپل نه

لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا

دوی لره جنتونه دی بهیږی لاندے دَ هغے نه

الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا نُزُلًا

ولے هیشه به دی په هغے کښ تیاره میلمستیا ده

مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ

دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه او هغه څه چه دَ الله تعالیٰ سره دی

خَيْرٌ لِّلْاَبْرَارِ ﴿۱۹۸﴾

غوره دی نیکانو لره۔

تیار کړیدے او مهاد ئے ورته په طریقه دَ استهزاء سره وئیلی دی ځکه مهاد خوځائے دَ آرام ته وئیلے شی۔

۱۹۸:۔ په دیکښ بشارت دے متقیانو ته او جواب دَ سوال دے۔ سوال دا دے چه په بلادو کښ دَ تجارتونو او معاملاتو دَ پاره خو متقیان هم گرځی۔ یا سوال دا دے چه دَ متقیانو دَ پاره خو دَ دنیا متاع هم نیشته بلکه دوی خو اکثر په فقیرئ او لوږه تن وکښ وخت تیروی حاصل دَ جواب دا دے ‹بناء په اول› چه دَ متقیانو دَ پاره سره دَ تقلب نه په بلادو کښ دَ تقوٰی دَ وجے نه دَ آخرت فائدے هم حاصل دی ‹او بناء په دویم› که دَ متقیانو دَ پاره په دنیا کښ متاع دَ کافرانو پشانته نه لیکن دوی له په آخرت کښ خوشحالئ دی او آخرت باقی دے او دنیا فانی ده باقی په هر صورت کښ غوره وی دَ فانی نه۔

لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ ، مراد دَ تقوٰی نه۔ ځان کیدل دی دَ شرک او کفر نه او دَ تقلب نه پشان دَ کافرانو۔

لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ، لَهُمْ

وَاِنَّ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَمَنْ

او یقینًا بعضے دَ کتاب والو نه خامخا هغه دی

يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ

چه ایمان لری په الله تعالیٰ او په هغه کتاب چه نازل شوی دے

اِلَيْكُمْ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ

تاسو ته او په هغه کتابونو چه نازل کړے شوی دی دوی ته

خٰشِعِيْنَ لِلّٰهِ ۙ لَا يَشْتَرُوْنَ

عاجزی کوونکی دی الله تعالیٰ نه اخلی

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۭ

په آیاتونو دَ الله تعالیٰ عوض لږ (دنیا)

کښ لام دَ پاره دَ اختصاص دے۔

نُزُلًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ، نُزُلَ، هغه خوراک څکاک ته وئیلے شی چه دَ میلمه دَ پاره په اول وخت دَ راتللو دَ هغه کښ تیار شی او دَ جهنم په باره کښ په طریقه دَ استهزاء استعمالیږی لکه په سوره واقعه ۹۳ کښ دی یا نزل جمع دَ نازلین ده او دا حال دے دَ جنات نه - اشاره ده چه نعمتونه دَ جنت په دَ جنتیانو دَ پاره هر وخت دَ میلمستیا پشان په ډیر اکرام او عزت سره تیار وی او هرچه په دنیا کښ دے نو په شرع او عرف دواړو کښ دَ میلمستیا رعایت صرف درے ورځے پورے وی - مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ، دا په ډیر اکرام او عزت باندے دلالت کوی -

وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ لِّلْاَبْرَارِ، خَيْرٌ، په نسبت سره دَ متاع دَ کافرانو دی - او لفظ مَآ، دَ ابهام دلالت کوی چه دَ نعمتونو دَ جنت پوره تفصیلات دنیا والو ته نشی معلومیدے - لِلْاَبْرَارِ، اشاره ده چه صفات دَ تقوی او دبریوشان دی او دلیل په دے

أُولَٰئِكَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ

دغه کسان دوی لره ثواب دَ دوی په نیز

رَبِّهِمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿١٩٩﴾

دَ رب دَ دوی، یقیناً الله تعالیٰ زر حساب کوونکے دے۔

باندے سورة بقره ۱۷۷ دے چه په هغے کښ په صفاتو دَ بر باندے حکم دَ تقویٰ کړیدے۔

۱۹۹:۔ مخکښ آیت کښ بشارت و و صرف غیر کتابیانو متقیانو ته نو اوس کتابیانو ته بشارت ذکر کوی په پنځه صفاتو سره۔

وَإِنَّ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ، صحیح قول دا دے چه دا آیت عام دے عبد الله بن سلام او دَ هغه ملګرو او نصاریٰ دَ نجران او نصاریٰ دَ حبش ټولو کتابیانو ته چه په هغوی کښ دا صفتونه موجود وی۔

اول صفت، لَمَن يُؤْمِنُ بِاللَّهِ، مراد تری نه ایمان دے پشان دَ ایمان دَ صحابه کرامو چه عقیده دَ شرک او تشبیه او تثلیث پکښ نه وی۔

دویم صفت، وَمَا أُنزِلَ إِلَيْكُمْ، چه قرآن کریم دے۔

دریم صفت، وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِمْ، تورات او انجیل وغیره دا ئے دَ دے وجے نه روستو راوړو چه ایمان په دغه کتابونو روستو دَ نزول دَ قرآن نه تابع دے دَ ایمان بالقرآن دَپاره۔ او ذکر ئے دَ دے وجے نه اوکړو چه صفت دَ کتابیت دَ دوی دَ وجے دَ ایمان نه دے په مخکنو کتابونو باندے۔

څلورم صفت، خَاشِعِينَ لِلَّهِ، په دیکښ اشاره ده چه تحریف او کتمان او تلبیس نه کوی دَ وجے دَ خشیت الٰهیه نه۔

پنځم صفت، لَا يَشْتَرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا، عوض دَ دُنیا او رشوتو نه او جاه او مرتبه دَ دنیا دَ وجے نه دین حق نه پریږدی او دا خصوصی صفت دے دَ اهل علمو دَپاره۔ دَپاره دَ بقاء او کمال دَ ایمان دَ هغوی۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا

اے ايمان والو صبر کوئ

وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ

او ډيرا دَ صبر کوئ او تيارے کوئ (دَ جهاد) او اوويرېږئ دَ الله تعالى نه

لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٢٠٠﴾ ع

دَ دے دَ پاره چه کامياب شئ۔

ع ۲۰ / ۱۱

أُولَٰئِكَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ، اشاره ده چه دَ دوی اجر دَ نورو کافرانو او کتابيانو پشان برباد نه دے۔ او لَهُمْ، کښ دَ دوی خاص اجر ته اشاره ده چه هغه دوه چنده اجر دے لکه په سوره حديد ۲۸ او سوره قصص ۵۴ کښ دی۔
إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ، دا علت دے دَ مخکښ جملے دَ پاره يعنى الله تعالى پوره علم لرى په مقدارونو دَ اجرونو او مستحقينو دَ هغے او مراتب دَ هغے۔ يا تکميل دَ جملے مخکنۍ دَ پاره يعنى سريع کنايه ده تيز دے ورکولو دَ اجر ته۔
۲۰۰:۔ په اختتام دَ سورت کښ څلور اوامر ذکر کوی چه هغه اسباب دَ فلاح دی او اسباب دَ نشر او اشاعت دَ دين حق دے۔ او خلاصه ده دَ ټولو مضامينو دَ دے سورت۔
يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا، دا درے واړه اقسام دَ صبر ته شامل دے۔ صبر په مصيبتونو، صبر په طاعاتو باندے، صبر دَ ګناهونو نه او په دے کښ داخل دی پوخوالے په توحيد او په ټولو فرائضو واجباتو او ځان بچ ساتل دَ ټول منهياتو نه چه شرک او کفر او نفاق او بدعات وفجور دی۔
وَصَابِرُوا، دا تخصيص دے روستو دَ تعميم نه يعنى په دشمنانو باندے، ځکه چه باب مفاعله دَ پاره دَ مبالغے ده۔ دارنګ يو بل ته وصيت کول په صبر باندے په قرينه دَ تواصوا بالصبر، په سوره بلد ۱۷ او سوره عصر ۳ کښ۔

وَرَابِطُوْا ، په سرحدا تو دَ اسلامي ملک کښ تيار اودريدل او دَ دشمن په مخالفت کښ آسوته دَجهاد دَپاره تړل او ساتل دا رنګ دَ اسلامي فوج څوکيداري کول او دَ دشمن دَمقابلے دَپاره اسلحه تيارولو ته عام دے - او دَ هر فرض مونځ نه روستو بيل مونځ ته انتظار کول په مقتضي دَحديث سره په مرابطه کښ داخل دي -

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ، دا په معنیٰ دَ امتثال دَ اوامرو او اجتناب دَ منهيا تو دے - او دَ ټولو سورت سره ئے تعلق دا سے دے - صبر په مقابله دَ شبهاتو دَ زائغينو او اهل بغي کتابيا نوکښ او دَ هغوی دَ دوستانے نه ځان ساتل او جوابونه دَ شبهاتو دَ هغوی نه - دا اوله حصه دَ سورت ده - او مصابره په مقابله دَ اهل کتابو کښ چه پاخه دي پخپل قباحتونو او خباثتونو باندے دا دويمه حصّه ده او مرابطه په اصولو دَ اتحاد سره دا دريمه حصه ده او تقوىٰ په حصول دَ هغه صفتونو سره چه دفع کوونکی دَ هزيمت دي او پيدا کيدل دَ صفاتو دَ منافقانو او دَ کتابيانو نه دا څلورمه حصّه دَ سورت ده او دا مجموعه سبب دَ فلاح دے -

## امتيازات دَ دے سورت دا دي

عـ۱ جوابات دَ خاص شبهاتو دَ نصارىٰ په توحيد باندے - عـ۲ جوابات دَ شبهاتو په رسالت باندے - عـ۳ ډير دليلونه په عبديت دَ عيسىٰ عليه السلام - عـ۴ ډير قبائح دَ اهل کتابو - عـ۵ اصول دَ تنظيم او دَ دعوت - عـ۶ تفصيل دَ علتونو دَ هزيمت دَ احد - عـ۷ ډير زجرونه په منافقانو متعلق دَ غزوه احد سره - عـ۸ لوے صفات دَ نبي صلى الله عليه وسلم - عـ۹ خاص بشارت دَپاره دَ شهداؤ - عـ۱۰ ذکر دَ دعوت دَ مباهلے دَ نصارىٰ سره - عـ۱۱ ښائسته صفات دَ اولوا الالباب او دَ هغوی دُعاګانے - عـ۱۲ ذکر دَ حالاتو دَ عمران بي بي دَ عمران - لور دَ هغه - ځوے دَ لور دَ هغه - پالنه کوونکے دَ لور دَ عمران چه زکريا عليه السلام دے -

سورة النساء مدنية | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | اٰياتها ۱۷۶ رکوعها ۲۰

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړو په شروع کولو کښې چه رحمان او رحیم دے

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوۡا رَبَّكُمُ

اے خلقو! او یریږئ د رب خپل نه

الَّذِىۡ خَلَقَكُمۡ مِّنۡ نَّفۡسٍ وَّاحِدَةٍ

هغه ذات چه پیدا کړی یئ تاسو د یو نفس نه

وَّخَلَقَ مِنۡهَا زَوۡجَهَا وَبَثَّ

او پیدا کړیده د هغه نه بی بی د هغه او خواره کړیدی

مِنۡهُمَا رِجَالًا كَثِيۡرًا وَّنِسَآءً ۚ

د دغې دواړو نه نارینه ډیر او زنانه (ډیرے)

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِىۡ تَسَآءَلُوۡنَ

او یره کوئ د الله تعالیٰ نه هغه ذات چه سوال کوئ

بِهٖ وَالۡاَرۡحَامَ ‌ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ

د هغه نه او (د ختمولو) د خپلولۍ نه (یره کوئ) یقینًا الله تعالیٰ

عَلَيۡكُمۡ رَقِيۡبًا ①

په تاسو باندے ساتونکے دے۔

بصائر ذوی التمیز کښې فرمائی چه دیته سورة النسآء الکبری هم وئیلے شی۔

ربط:۔ ربط د سورت مخکښې سورتونو سره په یو څو وجو سره دے۔

اوله وجه:۔ په سورة البقره کښې د یهودیانو په قبائحو باندے رد وو او په سوره آل عمران کښې د نصاراؤ په شبهاتو او خباثتونو باندے رد وو نو په دے سورت کښې

دَ جاهلیت والو په مظالمو باندے رد دے او دَ مؤمنانو دَ احوالو اصلاح ده۔
دویمه وجه:۔ مخکښں سورتونو کښں احکام دَ آخرت دَ اصلاح سره متعلق وو نو په دے سورت کښں دَ ژوند دَ دُنیا سره متعلقه امور ذکر کوی۔
دریمه وجه:۔ سورة آل عمران کښں دَ تهذیب النفوس متعلقه امور ذکر شول نو په دے سورت کښں دَ تدبیر منزل او سیاست مدنیه امور ذکر کوی۔
څلورمه وجه:۔ سورة آل عمران کښں په هغه چا رد وو چه صالحین بندگان لکه عیسیٰ او مریم علیهما السلام ئے دَ الله تعالیٰ سره شریک گنړل نو اوس دلته دَ عموم په طریقه دَ شرک رد کوی او دا رنګ دَ نصاراؤ په عقیده رد کوی چه هغوی عیسیٰ علیه السلام دَ الله تعالیٰ ځوئے گنړی۔
پنځمه وجه:۔ دَ مخکښں سورت په آخر کښں امر ذکر شو په تقوٰی باندے نو دَ دے سورت په اول کښں دَ تقوٰی دَ دوه قسمونو امر ذکر کوی یعنی تقوٰی په حقوق الله کښں او تقوٰی په حقوق العباد کښں۔ او دے ربط ته تشابه الاطراف وئیلے شی۔
دعوٰی دَ سورت:۔ ذکر کول دَ داسے امورو دی چه هغه ظلمونو لره دفع کوی لکه چه ظلم کول دی په کمزورو انسانانو (یتیمان، ناپوهه خلق او زنانه) او د دے دَ دفاع دَ پاره دوه قسمه امور ذکر کوی۔ اول قسم امور دَ تدبیر منزل دی او دویم قسم امور دَ ملک دَ سیاست دی چه هغه اجراء دَ کتاب و سنت (شرعی نظام) ده او عسکری نظام چلول دی۔ دا رنګ ظلم په حق دَ الله تعالیٰ کښں شرک کول دی نو دَ هغے دفاع کوی په ذکر دَ قباحت دَ شرک سره دوه کرته په آیت ۴۸ او ۱۱۶ کښں او رد دے په اقسامو دَ شرک۔ چه هغه شرک دے په عبادت، علم، تصرف،

دعا او تحلیل او تحریم کښې او عقیده لرل دَ اتخاذ الولد۔
دَ دے وجے نه مسئله دَ توحید ئے شپږ کرته ذکر کړیده
په آیت ۱ ۳۶ ۸۷ ۱۲۶ ۱۳۱ ۱۳۲ کښې۔ (او دَ دعوے ماخذ
اول آیت دے)۔ او دَ الله تعالیٰ اسماء حسنیٰ ئے شپږویشت ۲۶
ذکر کړیدی۔

خلاصه دَ سورت :- اجمالی خلاصه ئے دا دهٔ چه په سورت
کښې درے حصّے دی اوله حصه تر ۵۷ آیت پورے ده چه په
هغے کښې دَ تدبیر منزل اتلس امور ذکر دی دَ پاره دَ دفعے
دَ ظلم دَ یتیمانو، زنانو او ناپوهه خلقو ته، او آخری امر (حکم)
کښې ذکر دَ توحید او دَ حقوقو دَ بندګانو دے۔ بیا دَ منافقانو
دَ قبائحو او دَ یهودیانو دَ خباثت ذکر دے۔ دویمه حصّه
۱۳۵ آیت پورے. ده په هغے کښې دَ مدنیت سره متعلق دَ
سیاست نهٔه امور ذکر دی او په مینځ مینځ کښې دَ منافقانو
دَ قبائحو ذکر دے۔ او ورسره رد دے په مشاقه کوونکو
(مخالفت کوونکو) دَ رسول او دَ مؤمنانو سره۔ او رد دے
دَ شرک په اقسامو باندے۔ دریمه حصّه آخره پورے
ده چه په هغے کښې دَ منافقانو او یهودیانو خباثت ذکر کوی
سره دَ رد کولو نه په غلو کولو (زیاتے کول) دَ یهودیانو
او ترغیب دے دَ قرآن او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم
اطاعت ته۔

تفصیلی خلاصه :- په دے اوله حصه کښې درے بابونه
دی۔ اول باب تر ۳۶ آیت پورے دے۔ په دے باب کښې دَ
تدبیر منزل اتلس امور ذکر کوی۔ او یوا مر دے دَ حق
دَ الله تعالیٰ په توحید او په رد دَ شرک سره او حقوق دَ
بندګانو۔

فضیلت دَ سورت :- دَ ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت
دے چه په سورة النساء کښې پنځه داسے آیتونه دی چه دَ هغے
په بدل دا دنیا وما فیها ماته راکړیشی نو ما نه شی خوشحالولے

۳۱ ۴۰ ۴۸ ۵۸ ۶۴ دا دَ حاکم په روایت سره نقل دی، او دَ ابن جریر روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه چه دَ دے سورت اته آیتونه دَ دے امت دَ پاره دَ هر هغه څیز نه غوره دی چه په هغے نمر راخیژی او دوبیږی هغه پنځه مخکښ آیتونه دی او درے ورسره ۲۶ ۲۷ ۲۸ دی۔ او دَ عبد الرزاق په روایت سره دَ ابن مسعود رضی الله عنه نه نقل دی چه دَ دے سورت پنځه آیتونه ۳۱ ۴۰ ۴۸ ۶۴ ۱۱۰ ماته دَ ټولے دنیا نه زیات محبوب دی۔ په دے ټولو آیتونو کښ په دے امت باندے دَ الله تعالیٰ دَ خاص نعمتونو ذکر دے۔

تفسیر ۱ :۔ يَا أَيُّهَا النَّاسُ ، دا خطاب دے ټولو مکلفینو ته په دلیل دَ دے چه په دیکښ الف لام دَ استغراق دَ پاره دی۔ او دا رنگ ذکر دَ علت عامه دے چه خلق (ربیه الناس) دے دَ آدم او حوا علیهما السلام نه۔ دَ دے نور تفصیل په سورة البقره کښ ذکر شوے دے۔ او په دے آیت کښ ترغیب دے دَ دے سورت په احکامو باندے دَ عمل کولو او په دے کښ دَ سورت دعوی هم ذکر ده۔

فائده :۔ دا دَ ترتیب قرآن نه څلورم سورت دے، او دا رنگ دَ قرآن دَ نیمے نه روستو څلورم سورت سورة الحج هم په یا ایها الناس جملے سره مصدر دے۔ او په دواړو کښ ئے تقوی ذکر کړیده او په دے سورت کښ مبدأ دَ انسان ذکر کړیده او په سورة الحج کښ مَعاد (آخرت) ذکر کړیدے۔ اشاره ده چه انسان په امورو دَ دنیا او دَ آخرت کښ په تقوی سره مکلف دے۔

اتَّقُوا رَبَّكُمُ ، دلته په حقوق انسانیه کښ تقوی کولو ته اشاره ده چه په دے سورت کښ ذکر دی۔ او لفظ دَ رَبَّكُمُ په احسان دَ ربوبیت باندے دلالت کوی۔ او روستو ذکر شوی احکام په تربیت دَ انسان کښ مُمِد او مددګار دی۔

الَّذِیْ خَلَقَکُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَۃٍ ، ابن عطیه وئیلی دی
چه په دیکښ تنبیه ده په صانع (پیدا کوونکی) او په
ابتداء دَ وجود دَ انسان باندے - او په دیکښ تیزی ورکول
دی یو بل سره دَ تعلق او وصلت ساتلو دَ وجے دَ احترام
دَ نسب نه - او ابن کثیر وئیلی دی چه یو پلار او مورئے
دَ دے وجے نه ذکر کړل چه یو بل سره مهربانی اوکړئ
او کمزورو سره امداد اوکړئ یعنی په دیکښ دَ سورت
مقصد ته اشاره ده - او ابوحیان وئیلی دی چه په دیکښ
اشاره ده چه په یو بل باندے تکبر او فخرمهٔ کوئ -
دَ نَفْسٍ نه مراد آدم علیه السلام دے - لفظ دَ نفس مذکر
او مؤنث دواړه استعمالیږی دَ دے وجے نه ئے واحدۃ مؤنث
ذکر کړو -
وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا ، مِنْهَا ، ضمیر نفس ته راجع دے او دا
قول دَ اکثرو مفسرینو دے او صحیح حدیث هم په دے
باندے دلالت کوی چه دا زوجه (ښځه) دَ آدم علیه السلام
دَ کسے (ږچې) پختئ دَ هډوکی نه راویستلے شویده ، او ابو
مسلم یا بعضے دَ دے زمانے اشخاصو وئیلے دی چه دَ منها نه
مراد من جنسها دے او حوا دَ آدم علیه السلام دَ بدن نه نه ده
پیدا شوے - خو په دے قول باندے آلوسی په ډیر تفصیل سره
رد کړیدے - او ابن کثیر دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه
روایت ذکر کړیدے چه زنانه دَ نارینه (آدم) نه پیدا کړے
شویده ، دَ دے وجے نه دَ ښځے حرص او میلان نارینه ته
ډیر وی - او نارینه پیدا کړے شویدے دَ خاورے (زمکے)
نه نو دَ دوی حرص په زمکه کښ ډیر وی - (دا اشاره ده
چه هر یو خپل خپل اصل ته ورګرځی) -
وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَّنِسَاءً ، په دے جمله کښ دَ خلقکم
من نفس بیان دے دَ وهم دَ دفعه کولو دَ پاره یعنی چه څوک دا
وهم او شک اونکړی چه دَ نارینو مبدأ په جدا وی او دَ

زنانو پہ جدا وی۔ دا رنګ پہ دیکښ اشارہ دہ چہ زوجیت دَ سړی او ښځې لہ دخل دے پہ انساناتو پیدا کیدلوکښ او مراد دَ رجال او نساء نہ ټول مذکر او مؤنث دی بالغ وی او کہ غیر بالغ وی لیکن هرکلہ چہ دا مقام دَ خطاب وو پہ تقویٰ سره نو دا دبلوغ والو سره مناسب دے۔ دَ دے وجے نہ لفظ دَ رجال او نساء ئې ذکر کړو پہ ځائے دَ ذکور او اناث کښ۔ او رجالاً دَ هغوی دَ فضیلت دَ وجے نہ مخکښ ذکر کړو پہ نساؤ باندے، او صفت کثرت پہ طرق دَ نساء کښ هم مراد دے لیکن هغہ ئې حذف کړو نو اشارہ دہ چہ دَ زنانو سره پټوالے مناسب دے۔ او دَ خنثیٰ ذکر ئې نہ دے کړے ځکہ چہ هغہ پہ پہ حکم کښ نارینہ وی یا زنانہ۔

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ، دَ تقوی پہ دے امر کښ حق دَ اللّٰه تعالیٰ تہ اشارہ دہ یعنی دَ ظلم دَ شرک کولو نہ ځان بچ کول۔ تَسَآءَلُوْنَ، باب تفاعل دے یو تا، حذف دہ۔ او پہ دیکښ دوہ اقوال دی۔ اول دا چہ دا پہ معنیٰ دَ مشارکت سره دے یعنی دَ یو بل نہ سوال کوئ پہ نوم دَ هغہ۔ دویم قول دا چہ دا پہ معنیٰ دَ مجرد سره دے یعنی تاسو سوال کوئ دَ هغہ پہ نوم سره۔ یا باء زیاتی دہ یعنی تسئلونہ سوال کوئ دَ هغہ نہ۔ او دا علت دے دَ تقوٰی چہ هرکلہ دَ هغہ نوم بل چاتہ وسیلہ کوئ یا دَ هغہ نہ سوال کوئ نو لازم دہ چہ دَ هغہ تعظیم اوکړئ پہ توحید سره او پہ احکامو منلو دَ هغہ سره۔

وَالْاَرْحَامَ، پہ دے کښ درے اقوال دی۔ اول قول، دا عطف دے پہ لفظ اللّٰه باندے او مضاف پټ دے یعنی قَطْعَ الْاَرْحَامِ۔ او دا عطف دَ خاص دے پہ عام باندے یعنی تقوی اوکړئ (ځان بچ کړئ) دَ مخالفت دَ هغہ نہ پہ هر حکم کښ او خاصکر پہ پریکولو دَ خپلولۍ کښ۔ او دا قول دَ مجاهد، ضحاک او قتادہ وغیرہ دے۔ دویم قول دا

وَاٰتُوا الْيَتٰمٰى اَمْوَالَهُمْ

او ورکوئ یتیمانو ته مالونه دَ هغوی

وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيْثَ بِالطَّيِّبِ ص

او مه اخلئ پلیت په بدال دَ پاک کښې

منصوب دے په طریقه دَ تیزئ ورکولو (اغراء) سره یعنی الارحام احفظوها دَ خپلولئ حفاظت او رعایت اوکړئ۔ دا قول دَ واحدی دے۔ دریم قول، دا عطف دے په محل دَ ضمیر باندے په (به) کښې او محل دَ هغے نصب دے او دا دَ عربو په عادت باندے بنا دے چه هغوی به دَ یو بل نه دَ خپلولئ په واسطے سره سوال کوو۔ یعنی هرکله چه خپلولی یو بل ته وسیلے جوړوئ نو لازم دا ده چه په خپلوانو کمزورو باندے ظلمونه کول پریږدئ بلکه دَ خپلولئ احترام اوکړئ۔ او دَ عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قراءت (وبالارحام) دَ دے قول تائید دے۔

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْبًا، دا دَ تقوی دَ مخکښې امر دَ پاره علت دے۔ رَقِيْبًا دَ رقابت نه اخستلے شوے دے یعنی دَ څه کار دَ تحقیق دَ پاره نظر تیزول۔ او رقیب په معنٰی دَ مراقب (څوکئ کوونکی) سره هم دے۔ او رقیب دَ الله تعالٰی په صفاتو کښې په معنٰی دَ حفیظ دے۔ ابن کثیر وئیلی دی چه په دیکښې اشاره ده عمل کولو ته په هغه حدیث باندے چه (اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ فَاِنْ لَّمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَاِنَّهٗ يَرَاكَ) (بندګی دَ الله تعالٰی داسے کوه لکه چه ته ئے وینے او که ته ئے نه وینے نو تاخو وینی)۔ او کان په صفت دَ الله تعالٰی کښې دَ دوام دَ پاره دے۔ او رقیب په صفت دَ الله تعالٰی کښې په سوره مائده ۱۱۷ او په سوره احزاب ۵۲ کښې او په صفت دَ رسول کښې په سوره هود ۹۳ کښې او په صفت دَ ملک کښې یو کرت په سوره ق ۱۸ او لس کرته دَ مجردو او دَ مزیدانو

وَلَا تَأْكُلُوْٓا اَمْوَالَهُمْ اِلٰٓى اَمْوَالِكُمْ ؕ

| اومه خورئ دَ هغوی مالونه | دَ خپل مالونو سره |
|---|---|

اِنَّهٗ كَانَ حُوْبًا كَبِيْرًا ﴿۲﴾

| یقیناً | دا | گناه | دے | لوئے - |
|---|---|---|---|---|

په مختلفو صیغو سره په معنیٰ لغوی سره ذکر شویدی۔
ربط:- دا اول حکم دے دَ احکامو دَ دے سورت نه چه تعلق لری دَ ظلم دَ دفعه کولو سره په یتیمانو باندے په اعتبار دَ مال دَ هغوی په خلاف دَ طریقے دَ جاهلیت نه - اوپه دے آیت کښ دَ دے متعلق درے نور احکام دی یو امر دے او دوه نواهی دی۔ او دَ دے ربط دَ مخکښ واتقوا ربکم سره دے ځکه چه دا حکم دَ مقتضیاتو دَ تقوی نه دے۔ دا رنګ په خپلولئ کښ دَ شفقت او صله رحمیٰ ډیر حقدار یتیمان دی۔
په دیکښ اول حکم دَ وجوب دَ پاره په صیغه دَ امر سره دے۔ وَاٰتُوا الْيَتٰمٰٓى اَمْوَالَهُمْ، اٰتُوا او ایتاء ورکول دَ یو څیز دی بل ته په طریقه دَ تخصیص سره او دا په محسوساتو او غیر محسوساتو دواړو کښ استعمالیږی۔ الْيَتٰمٰى، جمع دَ یتیم او یتیمة دواړو راځی - کله چه جمع دَ یتیمة وی نو هغه یتائم راځی په وزن دَ فعائل سره بیا په هغے کښ قلب مکانی اوشو نو یتامی شو۔ بیا دَ تخفیف دَ پاره زیر دَ میم، په زور سره بدل شو او همزه په الف سره نو یتامی ترینه جوړ شو۔ اوچه جمع دَ یتیم وی نو په دیکښ دوه اقوال دی اول داچه دا جمع دَ فعیل په وزن دَ فعائل سره ده ځکه چه دا اسم ګرځیدلے دے (اګرچه په صفت دَ مذکر کښ داسے جمع نه راځی) - نو بیا پکښ قلب مکانی اوکړے شو۔ دویم قول دادے چه دا جمع الجمع ده یعنی اول جمع کړے شو په یتمی سره لکه چه دَ اسیر

جمع اسری دہ - نو بیا جمع شو په یتامیٰ سره لکه اساری۔
او په اصل لغت کښې یُتم یواځې والی ته وئیلے شی او په عرف کښې ئے په هغه چا باندے اطلاق کیږی چه پلار ئے وفات وی او دے نابالغه وی - ځکه چه دے یواځے پاتے شو په داسے حال کښې چه مدافعت او کفالت کووکے د ده پاتے نه شو. او دے مدافعت ته محتاج وی په وخت د عدم بلوغ کښې۔ او هرکله چه بالغ شی نو بیا ورباندے د یتیم اطلاق عرفاً او شرعاً دواړه نشی کیدے په دلیل د حدیث د علی رضی الله عنه چه د بلوغ نه روستو یتیم نیشته - (ابوداؤد)۔
اَمْوَالَهُمْ، دا دلیل دے چه یو ماشوم او وړوکے د بلوغ نه مخکښې مالک د مال کرځیدلے شی ځکه دلته اضافت په اعتبار د ملکیت سره دے - او په اتوا کښې متولی ته خطاب دے ځکه چه مال د یتیم د ده په ولایت کښې دے۔
سوال :- هرکله چه یو تن وړوکے وی نو د هغه مال خو هغه ته نشی ورکیدے په دلیل د روستو آیتونو ۵-۶ سره او چه بالغ شی نو بیا خو دے یتیم نه دے نو د اتوا الیتمٰی څه مقصد دے؟
جواب :- قرطبی وئیلی دی چه د یتیمانو د مال ورکول په دوه طریقو سره دی - اول طریقه، طعام او جامه وغیره جاری کول ترڅو پورے چه د ده په ولایت کښې وی یعنی هغه یتیم نابالغ وی - دویمه طریقه، پوره مال سپارل هغه ته روستو د بلوغ نه او د معلومولو د رشد (مکمل پوهے) نه لکه چه روستو په آیت ۶ کښې راځی - نو بناء په دے سره یتامیٰ ورته مجازاً په اعتبار د ماکان سره وئیلے شوی دے۔
دلته اوله طریقه مراد کول غوره دی ځکه چه پوره مال ورکول خو روستو ذکر کوی په شرط د هغے سره۔
وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيثَ بِالطَّيِّبِ، دا په طریقه د نهی سره دویم حکم دے تبدل په معنیٰ د استبدال دے د دے

مفعول هغه څیز وي چه حاصلیږي او مجرور په باء، سره هغه وي چه هغه پرېښودلې کیږي - دلته یوځو وجوه دي- اول قول دَ فراء بغوي او دَ زجاج دے یعنی مه اخلئ مال دَ یتیم (چه حرام دے ستاسو دَپاره) په بدل دَ خپل حلال مال کښ - دویم قول دَ سعید او زهري وغیره دے چه مه اخلئ کره او روغ مال دَ یتیم په بدل دَ ردي مال ستاسو سره - او په دے توجیه سره تبدل په معنیٰ دَ تبدیل سره دے - دریم قول دا دے چه مهٔ اخلئ مال دَ یتیم چه حرام دے ستاسو دَپاره او پریږدئ تاسو خپل مال چه حلال دے - دَخبیث او طیب معنیٰ دَ سورۃ بقره په تفسیر کښ تیر شویدي -

وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَالَهُمْ إِلَىٰٓ أَمْوَالِكُمْ، دا دریم حکم دے په طریقه دَ نهي سره - په دیکښ إِلَىٰ په معنیٰ دَ مع سره دے لکه چه په سورۃ مائده کښ دي یا پخپله معنیٰ سره دے لیکن متعلق ئې پټ دے یعني مَضْمُوْمَةً إِلَىٰ أَمْوَالِكُمْ - او دَ اکل (خوراک) نه مراد هر قسم فائده اخستل دي صرف خوراک نه دے مراد -

سوال :- مخکښ جمله کښ خو دَ یتیم دَ مال خوړلو نه مطلقًا منع او کړے شوه که دَ ګډون په طریقه سره وي او که بغیر دَ ګډون نه وي - نو دا جمله ئې دَ څه مقصد دَ پاره ذکر کړه ؟

جواب ۱ :- دا جمله دَ تاکید دَپاره ده ځکه چه دا دَ جاهلیت والو خاص عمل وو چه دَګډون په طریقه سره به ئې دَ یتیم مال خوړلو -

جواب ۲ :- مخکښ جمله کښ منع وه دَ ښکاره خوړلو نه او په دے جمله کښ منع ده په طریقه دَ حیلے دَ اختلاط سره یعني دَ حرام دَ حصول دَپاره حیله کول هم حرام دي -

سوال :- په سوره بقره کښ ئې خو اختلاط (ګډون) جائز

وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي

| او که | بیریږئ تاسو | چه | انصاف به او نکړئ | په باره |
|---|---|---|---|---|

الْيَتَامَىٰ فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُم

دَ یتیمانو جینکو کښی نو نکاح کوئ دَ هغې سره چه حلالې وی تاسو لره

کړے وُو نو دلته ولے منع شو؟
جواب :- هلته ئے کړون دَ اصلاح په طور سره جائز کړے وو په قرینه دَ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ سره۔
او دلته نهی ده دَ خوراک نه په طریقه دَ حیلې دَ کړون سره یعنی مقصد دَ یتیم دَ مال خوراک وی او کړون ورسره دَ حیلې په طور کوی دَ دے وجے نه ئے دلته وَلَا تُخَالِطُوا نه دے وئیلی بلکه وَلَا تَأْكُلُوا ئے وئیلی دی۔ نو حاصل دَ دے ټول جملو دا دے چه دَ یتیم مال دَ هغه دَ فائدو دَ پاره ورکوئ او دَ هغه مال مه خورئ او دَ هغه دَ مال سره دَ خپل مال کړون دَ هغه دَ مال دَ خوراک دَ پاره ذریعه مه گرځوئ۔
إِنَّهُ كَانَ حُوبًا كَبِيرًا ، ۂ ضمیر په تاویل دَ مذکور سره اکل (خوراک) او تبدل (بدلولو) دواړو ته راجع دے۔ كَانَ دَ دوام دَ پاره دے۔ حُوبَ په اصل کښی زجر (زورلے) ته وئیلے شی۔ او قرطبی وئیلی دی چه وحشت ته وئیلے شی۔ او قفال وئیلی دی چه تحوب کسب دَ هغه څیز دے چه درد پیدا کوی او دلته تربته مراد گناه یا ظلم دے۔ او كَبِيرًا پکښی تاکید دے دَ حوبًا دَ پاره۔
س۳:۔ په دے آیت کښی دویم حکم دے دَ احکامو دَ دے سورت نه چه هغه متعلق دَے دَ نفسونو دَ یتیمانو سره اصالتًا او دَ مالونو دَ هغوی سره تبعًا۔
وَإِنْ خِفْتُمْ، خوف، نه مراد علم دے لیکن دَ معلوم نه چه کله یره کیدیشی نو هلته لفظ دَ خوف دَ علم دَ پاره استعمالیږی او دا دَ مستقبل زمانے سره تعلق لری۔ او ابوعبیده وئیلی دی

مِنَ النِّسَآءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ ۚ

دَ نورو زنانو نه دوه او درے او څلور

فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تَعْدِلُوْا

نو که یریږئ تاسو چه چه انصاف به او نکړئ

فَوَاحِدَةً اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ؕ

نو یوه پوره ده یا (نکاح کوئ) دَ هغه وینځے سره چه مالک دی شوی لاسونه ستاسو

ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَلَّا تَعُوْلُوْا ؕ ﴿۳﴾

دا ډیره نیژدے ده چه تاسو به ظلم اونکړئ۔

چه دا په معنیٰ دَ یقین سره دے لیکن اول قول صحیح دے۔
اَلَّا تُقْسِطُوْا، دا دَ خفتم مفعول دے په تاویل دَ مصدر سره یعنی عَدَمَ الْقِسْطِ۔ اقساط، په معنیٰ دَعدل او انصاف سره دے او تحقیق دَ دے لفظ به ان شاء الله په سورهٔ جن کښ ذکر کیدے شی۔ امام راغب په مفردات کښ وئیلی دی چه قِسط په زیر دَ قاف، سره په معنیٰ دَ بل چا حصّه اخستلو دے نو دا ظلم دے۔ او اقسط بل چاله دَ هغه حصه ورکول دی نو دا عدل دے۔ او بعضو اهل علمو وئیلی دی چه په زیر دَ 'قاف' سره په معنیٰ دَ عدل دے او په زور سره په معنیٰ دَ ظلم دے۔
فِي الْيَتٰمٰى، دلته په یو توجیه سره دَ دینه مراد مؤنث نابالغے یتیمے دی او په بله توجیه سره عام دے مذکر او مؤنث دواړو ته (لکه روستو ذکر کیږی)۔
فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ، دا په یو توجیه سره دَ ان خفتم دَپاره جزاء ده۔ مَا طَابَ لَكُمْ په معنیٰ دَ موصول سره دے او دَ ذوی العقول دَپاره حقیقتاً استعمالیږی پشان دَ لفظ مَنْ او دا قول دَ سیبویه دے۔ او یا مَا مصدریه دے۔ طَابَ اَکثر

مفسرینو نه نقل دے چه دا په معنیٰ داَحَلَّ سره دے او دَ حلال شرعی نه په طیبه سره تعبیر کیدیشی دَ ترغیب دَپاره ځکه چه طاب کښ معنیٰ دَ میلان او دَ لذت شته دے.
مِنَ النِّسَآءِ، دیکښ مِنْ بیانیه یا تبعیضیه دے۔
سوال:۔ دَ دے شرط (چه خوف دَ عدم قسط دے) او دَ جزاء (چه امر دَ نکاح دے) په مینځ کښ څه مناسبت دے؟
جواب:۔ په دیکښ څلور اقوال نقل شویدی۔ اول قول بخاری او مسلم او نورو محدثینو لیکلے دے چه عروه رضی الله عنه دَ عائشه رضی الله عنها نه دَ دے تفسیر طلب کړے وو نو هغے ورته جواب ورکړو چه دا سے یتیمه جینئ چه دَ یو ولی په ولایت کښ ده او دَ هغے مال او جمال هم شته او دغه ولی غواړی چه نکاح ورسره اوکړی لیکن مهر او نفقه کښ ورسره عدل کول نه غواړی ځکه چه دے پخپله متولی وی نو دَ چا دَ طلب نه پروا نه کوی (یعنی دا جینئ دے دَ بل چانه نه غواړی)۔ نو دا آیت دَ دے په باره کښ نازل شویدے نو په دے بناء دَیتامیٰ نه مراد جینکئ دی چه دوی (ولیان) دَ هغوی دَ نکاح اراده لری سره دَ ظلم کولو نه۔ او آلنِّسَآء، نه مراد غیر دی دَ یتامیٰ نه نو معنیٰ دا ده که چرے تاسو یریږئ (علم لرئ) چه انصاف او عدل به اونکړے شئ دَ یتیمو جینکو په باره کښ دَ هغوی سره دَ نکاح په وخت کښ نو بیا نکاح دَ هغه جینکو سره اوکړئ چه تاسو دَپاره حلالے وی غیر دَ یتیمانو جینکو نه۔ نو مقصد دا دے چه په یتیمو جینکو باندے ظلم مه کوئ۔ په دے توجیه سره فانکحوا دَ ان خفتم دَپاره جزاء ده۔
دویم قول دَ سعید بن جبیر، قتاده او ضحاک نه ابن جریر او سیوطی نقل کړیدے هغه دا دے چه دَ مخکښ آیت دَ نزول نه روستو خلقو به دَیتیمانو دَ مالونو نه ځان ډیر بچ ساتلو دَ ظلم دَ یرے دَ وجے نه۔ لیکن منکوحات (نکاح شوے ښځے) به ئے دَ څلورو نه زیاتے ساتلے او دَ هغوی سره به ئے ظلم

کولو څه پروا ئې نه کوله نو په دے آیت سره ئې دوی دَ دے دویم ظلم نه هم منع کړل - او معنیٰ دا ده که چرته تاسو دَ یتیمانو (هلکانو، جینکو) دَ مالونو نه ځان - بچ ساتئ او یره کوئ دَ ظلم کولو نه نو دا رنګ ځان - بچ اوساتئ دَ ظلم کولو نه دَ منکوحاتو سره - او دَ هغې طریقه دا ده چه دَ څلورو نه زیاتے مه کوئ ځکه چه تاسو دَ څلورو نه زیاتو سره هیڅ عدل نشئ کولے - یعنی چه یو انسان دَ یو ګناه نه ځان - بچ کوی نو لازم دا ده چه دَ هغې پشان دَ بل ګناه نه دے هم ځان - بچ اوساتی - او په دے توجیه باندے یتامیٰ عام دے هلکانو او جینکو دواړو ته او فانکحوا نه مخکښ جزاء پټه ده یعنی فَلَا تَظْلِمُوْا فِي الْمَنْكُوْحَاتِ - او فانکحوا په هغې باندے عطف دے - دریم قول دَ عکرمه نه ابن جریر او سیوطی نقل کړے دے چه یو شخص دَ یتیمانو دَ مال ولایت کوو او په نکاح کښ به ئې دَ څلورو نه زیاتے ښځے وے - نو کله به ئې چه حاجت پیښ شو چه په بیبیانو باندے ډیره خرچه اوکړی نو دَ یتیمانو دَ دے مال نه به ئې خرچه کوله - نو دغے کسانو ته په دے آیت کښ اووئیلے شو چه هر کله چه تاسو دَ ظلم دَ یتیمانو نه په عام حالاتو کښ یره کوئ نو په حالت دَ ډیرو ښځو ساتلو کښ هم ځان دَ ظلم نه - بچ اوساتئ یعنی دَ څلورو نه زیاتے په نکاح باندے مه اخلئ نو حرام مال حاصلولو ته به موحاجت نه پریوځئ - څلورم قول دا دے چه دوی به دَ ظلم دَ یتامیٰ غیر منکوحاتو نه ځان نه شو - بچ کولے بلکه په هغوی باندے به ئې ظلم کولو - لیکن کله به ئې چه په نکاح سره واخستله نو بیا ئې ورسره ظلم نه کوو - نو دوی ته اووئیلے شو چه هر کله یره کوئ دَ عدم انصاف نه دَ یتامیٰ جینکو غیر منکوحو سره نو نکاح ورسره اوکړئ (چه حلاله وی تاسو لره) دَ دے دَ پاره چه دَ ظلم نه - بچ شئ - په دے ټولو اقوالو سره دَ شرط او

جزاء په مینځ کښې مناسبت ښکاره دے - او اول قول په دیکښې ډیر غوره دے -
مَثنیٰ وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ ، دا دَ طاب دَ ضمیر نه احوال دی او دیته اسماء معدوله وئیلے شي - دَ دے په معنیٰ کښې تکرار دے یعنی اثنان اثنان او ثلاثة ثلاثة او اربع اربع.
دَ بصریانو په نیز په دیکښې قیاس نه جاری کیږی - په دیکښې اته الفاظ نقل دی لکه احاد ، موحد ، ثناء ، مثنی ، رباع ، مربع او دَ دے نه په بره الفاظ دَ فصیح عربو نه نه دی اوریدلے شوی - او دَ کوفیانو په نیز قیاس صحیح دے - دَ هغوی دَ پاره بعضے اشعار دلیل شته دے لیکن قرطبی وئیلی دی چه هغه شاذ دی - او آلوسی وئیلی دی چه دا شعر دَ متنبی کتاب (احاد ام سداس فی احاد) پیدے بانددے عیب وئیلے شویدے - قرطبی او ابوعبید وغیرهما وئیلی دی چه اصح داده چه دَ رباع نه (څلورو) نه بره ثابت نه دے او امام بخاری رحمه الله هم دا غوره کړیده چه په یو وخت او زمانه کښې دَ څلورو نه زیاتے نه دی ثابت.
دا رنګ سورة سباء سلا او فاطر کښې هم راغلی دی -
سوال :- دَ دے په مینځ کښې ئې عطف په واو سره کړیدے په او سره ئې نه دے کړے څه وجه کیدیشی ؟
جواب :- او دلالت کوی په تقسیم باندے چه دَ یو قسم سړو دَ پاره مثنی او دَ بل قسم دَ پاره ثلاث او بل قسم دَ پاره رباع جائز دی او حال دادے چه دا دَ مقصد نه خلاف دے مقصد خو دادے چه هر ناریته لره په شرط دَ عدل کولو سره دوه دوه ، درے درے یا څلور څلور جائز دی -
سوال :- اثنان وثلاث واربع ئې ولے اونه فرمائیل ؟
جواب :- په اسماء عدد او اسماء معدوله کښې فرق دے هغه دا چه اسماء عدد کښې صرف عدد مقصود وی

او په اسماء معدوله کښې دَ عدد نه سیوا او زیاته معنیٰ هم مراد وی - هغه داسے چه اووئیلے شی جآء القوم مثنیٰ معنیٰ دا شوه چه دوه یوځائے راغلل او چه اووئیلے شی جاء القوم اثنان نو معنیٰ دا شوه چه دوه راغلل - برابره خبره ده چه جدا جدا راغلل او که یوځائے راغلل - نو دلته مقصد دا دے چه دوه بیبیانے په یوځائے جمع کول جائز دی دَ دے وجے نه ئے اسماء معدوله ذکر کړو -

فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً ، دا جمله دلیل دے چه په مخکښ جواز دَ تعدد کښ عدل شرط دے نو په وخت دَ انتفاء دَ شرط کښ (چه ان خفتم ان لا تعدلوا کښ هغے ته اشاره ده) انتفاء دَ مشروط لازمه وی او تعدد به منع وی بلکه فواحدة نه مخکښ اکتفوا یعنی یوه بانده اکتفاء اوکړئ - الزموا فعل پټ دے دَ روستو لفظ په قرینے سره - دلته حرة لفظ پټ مراد دے یعنی اکتفاء اوکړئ په یو آزاده ښځه بانده په نکاح کولو سره -

أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ، دا په فواحدة بانده عطف دے نو معنیٰ دا شوه چه په وینځو ساتلو کښ تعدد شرط نه دے که هر څومره ساتئ ځکه چه په هغوی کښ عدل کول شرط نه دے، لیکن خائسته معامله او احسان کول ورسره ضروری دی - یا دا عطف دے په ما طاب لکم بانده او فعل پټ دے نو معنیٰ دا ده چه واقتصروا علی ما ملکت ایمانکم -

لیکن دلته خطاب دے مولاګانو (مالکانو) دَ وینځو ته نو دَ هغوی دَ پاره دَ خپلو وینځو سره نکاح کول ضروری نه دی - او په دے سورت ۲۵ کښ خطاب دے غیر مالکانو ته نو هلته ئے فرمائیلی دی فَمِمَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ نو په هغے کښ انکحوا پټ دے -

ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَلَّا تَعُولُوا ، په ذَٰلِكَ کښ دوه اقوال دی - اول قول دا اشاره ده واحدة او ما ملکت ته - دویم قول دا

چه دا اشاره ده بهول ماقبل ته یعنی نکاح دَ ډیرو سره (تر څلورو پورے) په شرط دَ عدل کولو سره دَ هغوی په مینځ کښ، او اکتفاء په یوه باندے یا وینځے ساتل په وخت دَ یرے دَ ظلم کښ - آدنیٰ په معنیٰ دَ ډیر نیزدے دے۔ دلته محسوس نیزدے والے نه دے مراد بلکه معنوی نیزدے والے مراد دے - آلوسی او بعضے نورو مفسرینو وئیلی دی چه دَ عال ډیرے معنے دی په معنیٰ دَ میلان، ظلم کولو، فقیری، عیال ډیرول، مشقت راتلل، خرچ کول، عاجز او کمزورے کیدل، اکثر مفسرینو دَ ابن عباس رضی الله عنهما او جمهورو سلفو نه نقل کړیدی چه دَ دینه مراد ظلم ته مائل کیدل دی چه هغه دَ عدل مقابل دے - او ابن ابی حاتم دَ سفیان بن عیینه نه روایت کړے دے چه دا په معنیٰ دَ فقر سره دے - او دَ امام شافعی رحمه الله نه نقل دے چه په معنیٰ دَ کثرت دَ عیال (زیاتوالے دا اهل وعیال) دے - ثعلبی او ابن عربی په دے قول باندے سخت رد کړے دے لیکن قرطبی وئیلی دی چه دا قول دَ زید بن اسلم او جابر بن زید نه هم نقل دے - او هغوی هم دَ امام شافعی نه مخکښ لوے لوے امامان تیر شویدی - او وئیلی ئې دی چه دا معنیٰ کسائی، ابوعمر الدوری (امامانو دَ لغت) نه هم نقل ده - لیکن په دے معنیٰ باندے اعتراض دا دے چه هر کله الله تعالیٰ کثرت دَ وینځو جائز کړیدے نو دَ هغوی نه هم ډیر اولاد پیدا کیږی نو دَ ان لا تعولوا (چه اولاد ډیر نشی) سره مناسبت نه لری - او دا عذر چه بعضے مفسرینو ذکر کړیدے چه دَ وینځو اولاد نه وی دا دَ حقیقت نه لرے خبره ده - په دے وخت کښ بعضے کج رؤ خلقو دَ منصوبه بندئ (ضبط تولید) دَ استدلال دَ پاره دَ امام شافعی رحمه الله دا قول ذکر کړیدے چه دَ دے نه

معلومیږی چه اولاد ډیرول (زیات اولاد پیدا کول) نه دی پکار۔
لیکن اول خو دا دقران اوحدیث دَ هغه نصوصو او ښکاره دلیلونو نه خلاف کول دی چه په هغې کښې دَ نکاح او ښځې سره دَ جماع مقصد اولاد گرځولے شوید ے لکه (وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ، فَأْتُوْا حَرْثَكُمْ أَنّٰى شِئْتُمْ وَقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ) او (تَزَوَّجُوْا الْوَدُوْدَ الْوَلُوْدَ) (نکاح دَ هغه ښځې سره کوئ چه مینه ناکے وی او بچی (ډیر) راوړی)۔
دویمه دا چه په دے آیت کښې ئے صراحتاً دَ څلورو ښځو اجازت ورکړید ے نو ظاهره خبره ده چه دَ څلورو ښځو نه خو اولاد ډیر پیدا کیږی نو بیا دے کموالی دَ اولاد ته ترغیب ورکوی۔
هاں دَ امام شافعی رحمه الله دَ قول توجیه داسے کید یشی چه کثرت عیال نه مراد کثرت ازواج دی او ذٰلك اشاره ده عدد دَ څلورو ته۔ یعنی دَ دے امر فائده دا ده چه ښځې دَ څلورو نه ډیرے نشی دَ دے دَ پاره چه بوج زیات نشی۔
فائده عله۔ دَ اهل سنت والجماعت اجماع ده چه څلورو دَ ښځو نه زیاتے ښځې په نکاح کښې جمع کول حرام دی دَ دے آیت په دلیل سره او په دلیل دَ احادیثو او اجماع سره۔ او قرطبی روافضو او بعضے اهل ظاهر ته نسبت کړید ے چه هغوی وئیلی دی چه نهه بیبیانے په یو وخت جمع کول جائز دی۔ او بعضو خو دَ عدد دَ حصر نه هم انکار کړے دے یعنی هر څو مره چه په نکاح اخلی۔
او آلوسی وئیلی دی چه امامیه دَ دے نه دی قائل لیکن قاسمی په خپل تفسیر کښې دَ شوکانی دَ کتاب وَبْلُ الْغَمَام او دنیل الاوطار نه نقل کړید ی چه په هغې کښې دَ دے نسبت ظاهریو او ابن صباغ، عمرانی، قاسم بن ابراهیم او بوے ډلے دَ شیعه گانو ته کړید ے۔ او کوم احادیث دَ منع چه دَ څلورو نه په زیاتو راغلی دی په هغې ئے کلام

کړیدے او وائی چه قرآن کریم په حصر دَ عدد باندے دلالت نه کوی - لیکن السیل الجرار کښ وئیلی چه دغه احادیثو کښ اګرچه هر یو کښ ځان ځان له کلام شته دے لیکن په مجموعی طور سره حسن دی اعتماد ورباندے کیدیشی او په اجماع سره هم دَ دغه احادیثو تائید کیدیشی - لیکن زه وایم چه اول خو حصر عدد دَ څلور دَ قرآن کریم دَ دے آیت نه کیدیشی او دَ اثبات طریقے دا دی -

ع۱:- چه که قرآن مقصد نه بیبیانے وے یا حصر کول دَ عدد نه وے نو ولے یې مثنیٰ وثلاث ورباع ذکر کولو بلکه مطلق به یې پریښودلے وے نو بیا به دَ هرچا خوښه وه چه څومره ښځے یې کولے -

ع۲ مخکښ ثابت شوه چه عرب دَ څلورو نه زیاتے نه کوی نو الله تعالیٰ اربع نه دی فرمائیلی بلکه رباع یې دَ دے دَپاره ذکر کړیدی چه دَ دے عدد نه زیا توالے نشی کیدے -

هاں په سوره فاطر کښ دَ وزرو دَ زیا توالی دَپاره روستو جمله شته دے چه یَزِیۡدُ فِی الۡخَلۡقِ مَا یَشَآءُ، او دلته خو دا سے نیشته -

ع۳ الله تعالیٰ دَ زنا نو په مینځ کښ دَ عدل او انصاف دَقائمولو دَپاره دَ عدد ذکر کړیدے - اشاره ده چه دَ دینه په زیات باندے دَ انسان قدرت محال دے چه عدل قائم کړی ماسیوا دَ انبیاء علیهم السلام نه چه هغه دَ هغوی اعجاز دے.

ع۴ الا تعولوا که په هره معنیٰ باندے مراد شی نو دلالت کوی چه دَ څلورو نه زیات ولے راشی نو انسان کښ خامخا عول ریو طرف ته کیدل) راځی - او دارنګ اجماع دَ سلفو صالحینو ثابت ده په منع دَ زیادت دَ څلورو نه - او آلوسی وئیلی دی چه په دے مسئله کښ اقوی دلیل اجماع ده ځکه چه په زمانه دَ اجماع کښ هیڅ مخالف نه دے موجود

شوے - او په اجماع کښې دا شرط نه دے چه دَ بعثت دَ
رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ وخت نه تر قیامته پورے
د ټول امت اتفاق راشی لکه چه دَ امام غزالی دَ قول نه
معلومیږی گنی نو په هیڅ مسئله کښې اجماع نشی ممکن
کیدے - امام رازی وئیلی دی چه د دے اجماع مخالف:
خلق بدعتیان دی دَ هغوی مخالفت کولو ته هیڅ اعتبار
نشته - او ابن عربی دغه مخالفت کوونکو ته جهال (ډیر
ناپوهه) وئیلی دی - او ابن کثیر په دے باب (دَ حصر)
کښې احادیث راجمع کړیدی هغه هلته اوګورئ - او دا رنګ
په قرآن او په اجماع سره ثابت دی چه دَ څلورو بیبیانو نه
زیاتوالے خصوصیت دے دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم
په هغے کښې مونږ له دَ هغه اتباع جائز نه ده۔

فائده ۲ :۔ دَ حدیث منکرینو دَ دے آیت تحریف کړیدے.
او آلوسیؒ دغه قول جبائیٔ معتزلی ته نسب کړیدے - هغوی
وائی چه دا آیت صرف دَ یتیما نو جینکو په باره کښې دے چه
په پالنه دَ یو شخص کښې وی او هغه دَ ظلم نه یره کوی
نو هغه دَ پاره دَ دغه یتامیٰ نه صرف څلورو سره نکاح کول
جائز دی - او دَ غیر یتامیٰ په باره کښې دا حکم نشته - لیکن دَ
بحث نه معلومه شوه چه دا قول دَ قرآن کریم، اجماع.
او احادیثو نه خلاف دے - دا رنګ که دا په یتامیٰ پورے
خاص وے نو عبارت داسے پکار وو چه وَإِنْ خِفْتُمْ
أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنْهُنَّ.
لیکن دلته ئے لفظ النساء راوړیدے او هغه دَ تعمیم
دَ پاره دے - او دَ قرآن آیتونو هر هغه تفسیر چه
دَ سلفو صالحینو او دَ هغوی دَ اجماع دَ تفسیر نه خلاف
وی نو هغه تحریف دے۔

فائده ۳ :۔ قرطبی دَ عمر رضی الله عنه او دَ کعب
اسدی یو واقعه ذکر کړیده چه هغے کښې اسدی

وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ نِحْلَةً ؕ

او ورکوئ زنانو ته مهر وته دَ هغوی په خوشحالئ سره،

فَاِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَیْءٍ

او که دوی معاف اوکړی تاسو ته دَ څه څیز

مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوْهُ هَنِیْٓــًٔا

دَ هغې نه په خپله خوښه نو خورئ هغه په مزے سره

مَّرِیْٓــًٔا ﴿۴﴾

بے نقصانه۔

دَ ځلورو ښځو دَ جواز نه دا استدلال کړیدے چه دَ ښځے حق په خاوند باندے دادے چه په ځلورمه ورځ به هغې له خامخا حق اداکوی او نورے درے شپے ورځے که په عبادت کښ تیروی نو جائز دی۔

سک:۔ په دے آیت کښ دریم حکم دے دَ پاره دَ تاکید دَ عقد دَ نکاح او دَ نیه ژوند کولو دَ خپلے بی بی سره۔ او دا دریم حکم مشتمل دے په دوه مسئلو باندے۔ اوله مسئله ښځے ته مهر ورکول۔ دویمه دَ هغې دَ طرف نه خاوند ته دَ مهر بخنه کول۔

وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ، تیر شوی آیت کښ خاوندانو ته خطاب وو۔ او په دے آیت کښ هم هغوی ته خطاب دے۔ (دا قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما او قتاده، ابن زید او جریج دے) او النِّسَآءَ نه مراد زوجات (بیبیانے) دی۔ او دا لفظ دَ آزادو ښځو او وینځو (چه په نکاح سره ئے ساتلے دی) دواړو ته شامل دے۔ او دَ ابوصالح قول دا دے چه دا اولیاؤ دَ ښځو ته خطاب دے ځکه چه په جاهلیت کښ به یو ولی (اختیارمند دَ نکاح) خپله لور خور په نکاح سره

ورکړه نو دَ هغې مهر به ئې ځان له اخستلو که هغه به لږ وو او که ډیر به وو۔ او دا سے په نورو طریقو سره به ئې په مهر قبضه کوله نو دَ جاهلیت دَ دے رسم و رواج دَ تردید دَ پاره او فرمائیلے شو چه وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ، او دَ حضرمی نه نقل دی چه دا رد دے په شغار (بدل) کوونکو باندے چه یوه زنانه دَ بلے زنانه په بدله کښې ورکړی۔ او مهر ورله مقرر نه کړی۔ نو هغوی ته اووئیلے شو چه مهر ورکول ښځو ته لازم دی۔

صَدُقَاتِ، جمع دَ صدقه ده۔ دا لفظ او صداق په معنیٰ دَ مهر پورے خاص دے ځکه چه په مهر ورکولو کښې صدق نیت او اخلاص دَ رغبت دَ نکاح معلوم شی۔ نِحۡلَةً، نحل په اصل کښې عطیه ته وئیلے شی په طریقه دَ تبرع (احسان کولو) سره او دا دهبه نه خاص ده۔ دَ ابن عباس رضی الله عنهما او قتاده نه نقل دی چه نحله معنیٰ ده فریضةً نو دا حال دے دَ صدقات نه۔ او زجاج وئیلی دی چه دا په معنیٰ دِیَانَةً شِرۡعَةً دے نو دا مفعول له دے۔ او کلبی وئیلی دی چه دا په معنیٰ دَ عطیة وهبةً ده نو حال دے یا مفعول مطلق دے د اٰتُوهُنَّ دَ پاره په اعتبار دَ معنیٰ سره۔

سوال :۔ نحله چه په اصل کښې عطیے ته وئیلے شی او مهر خو په بدل دَ (عورت) دَ ښځے کښې دے نو مهر ته څرنګه نحله اووئیلے شو؟

جواب :۔ دَ خاوند دَ خپلے ښځے نه په نفع او مزه اخستلو کښې په حقیقت کښې دواړو ته فائده او لذت محسوسیږی نو معلومه شوه چه مهر خو زیاتی څیز دے دَ دے وجے نه ئې هغې لره دَ نحله صفت ذکر کړو۔

فَإِنۡ طِبۡنَ لَكُمۡ عَنۡ شَيۡءٍ مِّنۡهُ نَفۡسًا، دا دویمه مسئله ده یعنی ښځے له جائز دی چه خپل ټول یا بعضے مهر خاوند یا ولی ته او بخی۔ قرطبی او ابن جریر وئیلی دی

چه سبب دَ دے دا دے چه بعضے خاوندان اتو دا بده ګڼړله چه دَ ښځے نه مهر واپس واخلی نو دَ هغے جواز ئے دلته ذکر کړو۔ طبن په معنیٰ دَ وربخلو دے په خوشحالۍ سره۔ عَنْ شَیْءٍ، په صله دَ طبن کښ باء، راځی او دلته عَنْ ذکر دے ځکه چه دا متضمن دے معنیٰ دَ جفو او تباعد لره۔ مِنْهُ، دَ دے ضمیر راجع دے صدقات ته په تاویل دَ مذکور مال یا صداق سره۔ او مِنْ دَ تبعیض دپاره دے په تیز دَ لیث یا دَ بیان جنس دپاره دے په تیز دَ ابن عطیه۔ نَفْسًا، دا تمیز دے دَ نسبت دَ طبن نه په معنیٰ دَ طِبْنَ لَكُمْ اَنْفُسُهُنَّ سره او تمیز دَ تاکید ئے دَ خوشحالۍ دپاره ذکر کړیدے یعنی دَ مهر دَ بخلو خوشحالی صرف ظاهری نه وی بلکه په زړه سره حقیقتًا وی۔ نو حاصل دَ معنیٰ دا شو چه که چرے دغه ښځه او یا څه حصه دَ مهر نه تاسو ته په خوشحالۍ سره۔ آلوسی دَ ابن هبیره نه نقل کړیدی چه دَ ائمو اربعو اتفاق دے چه ښځه خاوند یو بل ته څه څیز بخشش ورکړی نو بیا واپس اخستل ئے جائز نه دی۔ او صاحب اللباب دَ بعضے علماؤ نه نقل کړیدی چه ښځه خپل خاوند ته دَ مهر څه حصه بخشش ورکړی او بیا رجوع کوی نو معلومه شوه چه دا بخشش ئے دَ زړه خوشحالۍ سره نه وو کړے او دَ دے دَ تائید دپاره شعبی دَ شریح دغسے واقعه ذکر کړیده۔ او دَ عمر رضی الله عنه نه ئے هم دا سے روایت نقل کړیدے۔

فَكُلُوهُ هَنِيْٓـًٔا مَّرِيْٓـًٔا، دَ اکل نه مراد هر څه مباحه نفقه اخستل دی خو چونکه خوراک دَ انسان اهم مقصد دے نو دَ دے وجے نه ئے اکل ذکر کړو۔ هَنِيْٓـًٔا مَّرِيْٓـًٔا حال دے دَ ضمیر دَ کلوه نه یا صفت دَ پټ موصوف دے یعنی اَكْلًا هَنِيْٓـًٔا۔ هَنِيْٓـًٔا اسم فاعل دے دَ هَنِیْءٌ نه او

**وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَاءَ أَمْوَالَكُمُ**

| او مه ورکوئ | کم عقلو ته | مالونه د هغوی |
|---|---|---|

**الَّتِي جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ قِيٰمًا**

(چه تاسو سره وی) هغه چه گرځولی دی الله تعالی ستاسو د پاره سبب د ژوندئ

مرئ د مرء نه دے - او د دے دواړو په مینځ کښ فرق
دے په څیرو وجوهو سره -
اول دا چه هنئ هغه څیز دے چه د مشقت نه بغیر
حاصل شی او مرئ هغه څیز دے چه زر هضم کیږی -
دویم دا چه هنئ هغه دے چه گناه پکښ نیشته او مرئ
هغه دے چه هیڅ مرض پکښ نه وی -
دریم دا چه هنئ په آسانتیا سره تیریدونکی او مرئ
ښهٔ انجام والا بے ضرره -
څلورمه وجه دا چه هنئ مزیدار او مرئ په مرئ کښ
آسان تیریدونکے - قرطبی وئیلی دی چه د ابن عباس
رضی الله عنهما روایت دے چه مراد دا دے چه په دُنیا
کښ د دے خوراک مطالبه نیشته، او په آخرت کښ ئے
هم تاوان نیشته -
فائده :- ابن کثیر، آلوسی او قرطبی د علی رضی الله عنه
نه روایت ذکر کړیدے چه یو سړی ته د څهٔ بیمارئ
او ناجوړتیا شکایت وی یا ئے په گیډه کښ درد وی نو
د خپلے بی بی نه دِ مثلاً درے روپئ او غواړی (او په یو
روایت کښ دی چه د مهر د رقم) او په هغے بانده
دِ گبین (شهد) واخلی او د باران اوبه دِ ورسره گډے
وډے کړی او هغه دِ اوڅښکی نو هغه شکایت به رفع
شی - او علی رضی الله عنه د دے د پاره درے آیتونه
د قرآن کریم او لوستل - ۱ وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ
مَاءً مُّبَارَكًا - ۲ يَخْرُجُ مِن بُطُونِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ

وَّارْزُقُوْهُمْ فِيْهَا وَاكْسُوْهُمْ

خوراک ورکوئ دوی ته په هغې کښې، او جامې ورکوئ دوی له،

وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ⑤

او اوائ دوی ته وینا نیکه -

اَلْوَانُهٗ فِيْهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ - ع۳ فَكُلُوْهُ هَنِيْٓـًٔا مَّرِيْٓـًٔا -

ﻫ۵ :- په دے آیت کښې څلورم حکم دے او دا متعلق دے دَ سفهاء (ناپوهه) سره دَ هغوی نه دَ ظلم دَ دفع کولو دَ پاره -

ربط یې دا دے چه هر کله مخکښې اووئیلے شو چه یتامیٰ ته دَ هغوی مالونه ورکوئ او بیبیانو ته دَ هغوی مهرونه - نو اوس په هغې کښې یو قید لګوی - هغه دا دے چه په حالت دَ ناپوهۍ کښې یې مه ورکوئ دے دَ پاره چه مال ضائع نه کړی -

وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ، دا دَ هغوی ولی، کفیل یا وصی ته خطاب دے - نو دا ضمنًا دلالت کوی په جواز دَ ولی کفیل او وصی مقررولو باندے (قرطبی) - سُفَهَآءَ، دَ دے تفسیر په سورة بقره کښې تیر شویدے - دلته دَ سفهاء په مصداق کښې ډیر اقوال دی - سعید بن جبیر وئیلی دی چه دا یتیمان دی - ابو مالک وئیلی دی چه دا نابالغ دی که یتیم وی او که نه - مجاهد وئیلی دی چه دا زنانه دی - دَ ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه نه نقل دی چه دا هر هغه څوک دی چه دَ پابندۍ مستحق وی - نو په دیکښې دغه ټول اقوال داخل دی. دا رنګ تبذیر او اسراف کوونکی، لیونی او پاګل پکښې هم داخل دی -

اَمْوَالَكُمْ، دَ دینه مراد دَ هغوی هغه مالونه دی چه دَ ولی، کفیل یا وصی په قبضه کښې وی - او دَ دے په اضافت کښې تاکید دے چه تاسو دَ هغوی دَ مال داسے حفاظت اوکړی لکه چه دَ خپل مالونو کوئ -

سوال:- په دویم آیت کښ د مالونو اضافت ئې یتیمانو ته کړے وو او دلته ئې هغوی ته اونکړو؟

جواب:- هلته مقصد د ناجائز تصرف نه منع کول وو نو اضافت کښ ئې علت ته اشاره اوکړه چه دغه مالونه ستاسو نه دی بلکه د یتیمانو دی - او دلته د فساد د مال نه منع کول مقصد دے نو په دے اضافت کښ اشاره ده چه لکه څرنګه خپل مالونه د فاسد او ناکاره تصرفاتو نه بچ ساتئ نو دا رنګ د هغوی مالونه هم بچ اوساتئ.

اَلَّتِیْ جَعَلَ اللّٰهُ لَکُمْ قِیٰمًا ، دا صفت د دغه حکم د پاره علت دے - یعنی دا مالونه سبب د معیشت دے نو که هغوی له ئې ورکړئ نو معیشت ته به نقصان اورسی - لَکُمْ ، اولیاؤ او سفهاؤ ټولو ته خطاب دے بلکه جنس بنی آدم ته مخاطبه ده - قِیٰمًا ، مصدر دے د قام نه په اصل کښ قِوَامًا دے لیکن واو په یاء سره بدل شوے دے - معنیٰ د دے سبب د قیام د بدنونو او سبب د بقاء دے - زمخشری وئیلی دی چه تاسو ژوند تیروئ په دے سره - او قرطبی وئیلی دی چه سبب د معاش او صلاحیت د دین دے - یعنی تجارتونه او صنعتونه په مال پانده بنا دی او دا سبب د معیشت د ټول نوع انسان دے - او هرچه کعبه شریفه او د هغې تعظیم او احترام ساتل دی نو هغه سبب د بقاء د ټول عالم دے - د دے وجے نه په سورۃ مائده ۹۷ کښ قیامًا للناس فرمائیلے دے - آلوسی وئیلی دی چه په دے کښ اشاره ده مدح د مالونو ته - او د سلفو صالحینو نه نقل دے چه مال د مؤمن د پاره سلاح ده - او هغوی وئیل چه تجارت او کسب کوئ ځکه چه تاسو په داسے زمانه کښ یئ که په تاسو کښ یو تن محتاج شی نو اول به خپل دین اوخوری -

وَارْزُقُوْهُمْ ، د رزق نه مراد نفقه ورکول دی په

وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى حَتّٰىٓ اِذَا بَلَغُوا

او ازمیښت کوئ په یتیمانو ترهغې چه کله اورسي وخت

النِّكَاحَ فَاِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ

دَ نکاح ته، نو که معلومه کړه تاسو دَ هغوئ نه

خوراک څښاک او دارو درملو وغیره سره۔
وَاكْسُوْهُمْ، کښې اشاره ده لکه څرنګه چه انسان روزئ ته حاجت لري نو دارنګ جامے ته هم محتاج دے۔
فِيْهَا، یئے فرمائیلي دے او منها، ئې نه دے وئیلي اشاره ده چه دَ هغوی دغه مالونه محل دَ روزي اوجامے اوګرځوی یعنې تجارت اوکته پکښې کوئ او دَ هغې ګټے نه دوی ته رزق اوجامه اوخرچه وغیره ورکوئ۔ داد دے دَپاره چه دَ دوی مال فنا او برباد نشي اوکه منها، ئې وئیلي وے نومعنی به دا وه چه دَ اصل مال نه پرے خرچه کوئ۔
وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا، مَعْرُوْف هرهغه قول اوعمل ته وئیلي شي چه دَ نفس سکون پرے حاصلیږي دَ دے وجے نه هغه ښائسته وي عقلًا یا شرعًا۔ نو دَ دینه مراد داسے خبره کول دی چه په هغې سره دَ هغه سفیه (کم عقل) نفس خوشحاله شي لکه چه ورته اووائې چه ستا مال ما سره امانت دے هرکله چه ته بالغ شے او پوهه دے راشي نو تاته به یئے درکوم۔ قرطبي وئیلی دی چه دعا دِ ورته کوي چه بَارَكَ اللّٰهُ فِيْكُمْ، آلوسی وئیلی دی چه په دیکښې دَ هغه دیني اصلاح هم مراد ده په علم خودلو سره۔ یعنې دَ دین ضروری علم به ورته ښائې۔

رُشۡدًا فَادۡفَعُوۡۤا اِلَيۡهِمۡ

هوښيار تيا نو ورکوئ هغوی ته

اَمۡوَالَهُمۡ ۚ وَلَا تَاۡكُلُوۡهَاۤ اِسۡرَافًا

مالونه دَ هغوی ، او مه خورئ هغه په بې ځايه خرچ کولو

وَّبِدَارًا اَنۡ يَّكۡبَرُوۡا ؕ وَمَنۡ

او په تادئ (جلتئ) سره دَ دې بېرې نه چه دوی به لوئې شي ، او څوک

كَانَ غَنِيًّا فَلۡيَسۡتَعۡفِفۡ ۚ وَمَنۡ

چه مالدار وی نو ځان دې ځج کړی (دَ مال دَ يتيم نه) او څوک چه

كَانَ فَقِيۡرًا فَلۡيَاۡكُلۡ بِالۡمَعۡرُوۡفِ ؕ

محتاج وی نو خوراک دې کوی (دَ هغې نه) په ښه طريقه

فَاِذَا دَفَعۡتُمۡ اِلَيۡهِمۡ اَمۡوَالَهُمۡ

نو کله چه ورکوئ هغوی ته دَ هغوی مالونه

فَاَشۡهِدُوۡا عَلَيۡهِمۡ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ

نو ګواهان اونيسئ په هغې باندې ، او پوره دې الله تعالىٰ

حَسِيۡبًا ﴿۶﴾

حساب کوونکے۔

ف۶ :۔ په دې آيت کښې پنځم حکم دے دَ ظلم نه دَ بچيدلو دَ پاره۔ هر کله چه سفاهت (کم عقلتوب) پټ صفت دے او عارض دے نو دَ هغې دَ ازالے دَ پاره طريقه ذکر کوی دے دَ پاره چه هغه ته دَ هغه مال اوسپارلے شي۔ نو دَ دې دَ پاره دوه شرطونه ذکر کوی۔ يو بلوغ دويم رشد (پوهې) ته رسيدل۔

وَابۡتَلُوا الۡيَتٰمٰى ، ابتلاء (ازميښت) نه مراد معلومول

دَعقل دَحفاظت کولو دَ مالونو دَ هغه او دَ دے مختلفې طریقې دي. یو دا چه دهٔ له لږ مال دَ تجارت دَ پاره ورکړی یا په ځان او اهل وعیال باندے دَ خرچ کولو دَ پاره. یا دَ ده په حضور کښې دا ولې ئے تجارت او اخستل او خرڅول کوی او دهٔ ته دَ هغې طریقې ښائۍ. او دغسے نورے طریقې دے دَ پاره چه هغه پرے پوره پوهه شی.

حَتّٰٓى إِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ، دا اول شرط دے. دَ دینه مراد احتلام دے لکه چه په سورة نور سـ۵۹ کښې دی. او احتلام دَ بلوغ دَ پاره په مذکر او مؤنث کښې مشترک علامت دے او دَ دینه علاوه نور علامات هم شته.

فَإِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا، انس، په معنی دَ اَحَسَّ، وَجَدَ او اَبْصَرَ دے لکه په دے قول کښې (اٰنَسَ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ نَارًا) (قصص ۲۹). رُشْدًا، خیر رسیدلو ته وئیلے شی دَ دے مقابل غَیّ راځی لکه (قَدْ تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ) دَ دینه مراد صلاحیت دَ عقل او دَ حفاظت دَ مال دے (ابن عباس رضی الله عنهما) یا صلاحیت دَ عقل او دَ دین دے (حسن). اکثر علماؤ وئیلی دی چه رشد نه وی مگر روستو دَ بلوغ نه. او که دَ بلوغ نه روستو پکښې هم رشد معلوم نه شو نو بیا به په هغه باندے حجر (پابندی) لګولی. دا په نیز دَ اکثرو صحابه کرامو، تابعینو او امام احمد، ابویوسف، امام محمد او امام مالک رحمهم الله سره. او په دے باندے دَ احنافو هم فتوی ده.

فَادْفَعُوْٓا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ، ابن عطیه وئیلی دی چه په دے زمانه کښې به دا معامله قاضی او بادشاه ته پیش کیدیشی او دَ هغه په واسطه به ورته مال ورکیدیشی ځکه چه دے زمانه کښې فساد ډیر دے.

وَلَا تَأْكُلُوْهَآ إِسْرَافًا وَّبِدَارًا، دا دواړه حالونه دی

په معنیٰ دَ اسم فاعل سره یا مفعول دے۔ اسراف په لغت کښې دَ حد نه تیریدلو ته وئیلے شي او په خرچ کولو کښې خطایئ او غفلت ته هم وئیلے شي (قرطبی) بِدَارًا مصدر دے دَ باب مفاعله نه دَ دواړو جانبو نه صدور غواړی یعنی ولی دَ یتیم نه دَ هغه دَ مال په اخستلو کښې ویرانده والے کوی او یتیم لوئے والی ته روان وی۔ یا مفاعله په معنیٰ دَ نفس فعل دہ دَ یو جانب نه صدور کافی دے۔

اَنْ یَّکْبَرُوْا، دا دَ بِدَارًا دَ پاره په پټ مضاف سره مفعول له دے یعنی مَخَافَةَ کِبْرِهِمْ بدار کوئ دَ وجے دَ یرے دَ بالغ کیدلو دَ هغه نه۔ یعنی زر زر ئے بے ضرورته خرچ کوئ دَ دے یرے دَ وجے نه چه دے به لوئے شي نو بیا به زما نه مال غواړی او حساب به راسره کوی۔ او دا دَ لَا تَاْکُلُوْا دَ نهی دَ لاندے داخل دے۔

وَمَنْ کَانَ غَنِیًّا فَلْیَسْتَعْفِفْ، عفت ځان بچ ساتل دی دَ حرام نه او فَلْیَسْتَعْفِفْ کښې مبالغه دہ یعنی دَ حرام او مشتبهاتو نه ځان بچ ساتل۔ او دا سے په سوره نور ۳۳ کښې هم دی۔

وَمَنْ کَانَ فَقِیْرًا فَلْیَاْکُلْ بِالْمَعْرُوْفِ، فقیر نه مراد دا دے چه کسب دَ نفقے نه محتاج دے نو که چرے دے دَ ځان دَ پاره مستقل کسب کوی نو دَ یتیم دَ مال حفاظت نشی کولے نو دے به دَ هغه دَ مال حفاظت کوی او تربیت به ئے کوی او دَ دے په بدل کښې به دَ هغه دَ مال نه دَ عرف مطابق اجرت اخلی۔ او حدیث دَ ابوداؤد او نسائیٔ په دے باندے دلیل دے چه یو شخص نبی صلی الله علیه وسلم ته وئیلی وو چه زه فقیر یم زما هیڅ مال او آمدن نیشته او زما سره دَ یتیم مال دے نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته او فرمائیل چه دَ یتیم دَ مال نه خوره خو اسراف او تیز تیز به نه کوئے او جمع ترینه

لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ

دَ نارینو دَپارہ برخہ دہ دَھغہ مال نہ چہ پرېښی وی

الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ وَلِلنِّسَآءِ

مور او پلار او خپلوانو او دَ زنانو دَپارہ

نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ

برخہ دہ دَھغہ مال نہ چہ پرېښی وی مور او پلار

وَالْاَقْرَبُوْنَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ

او خپلوانو کہ لږ وی دَ ھغې نہ

ھم نہ کوئے - او دَ ابن عباس رضی اللہ عنھما او ابوالعالیہ اوشعبی نہ روایت دے چہ دَ ھغہ دَ تجارو دَ پیو نہ فائدہ اخستلے شی او دغہ شان دَ سورلئ نہ او دَ ھغې دَ مریانو نہ فائدہ اخستلے شی۔

فَاِذَا دَفَعْتُمْ اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ فَاَشْهِدُوْا عَلَيْهِمْ، دا دَفع عام دہ کہ مال نقد ورکول وی یا خرچ کول وی پہ ھغہ باندے پہ دے دوارو وختونو اشہاد (گواہ پیش کول) ضروری دی - دَ بعضو پہ نیز مستحب دے او دَ بعضو پہ نیز فرض دے - او فرضیت ظاھر دَ قرآن دے۔ وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا، پہ دے جملہ کښې تخویف دے ھر منکر دَ حق لرہ - کَفٰی، فعل ماضی دہ او بِاللہ دَ دے فاعل دے او باء، دَ تاکید دَپارہ دہ - ابوالبقاء او ابن عطیہ وغیرہ وئیلی دی چہ دا باء ځکہ دَ دے دَپارہ راوړیدہ چہ دلالت اوکړی پہ معنیٰ دَ امر باندے یعنی اکتفوا باللہ - حَسِيْبٌ، پہ معنیٰ دَ محاسب (حساب کوونکے) یا پہ معنیٰ دَ کافی دے (اللباب)۔

# اَوْ كَثُرَ ۚ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ﴿۷﴾

اوكه ډير وي، برخه ده مقرر كړے شوے۔

ف :۔ په دے آيت كښ شپږم حكم دے دَ ميراث په باره كښ دَ ظلم دَ دفعه كولو دَپاره او رد دے په رسم دَ جاهليت والو باندے۔ دَ هغوى رسم دا وو چه چا به جنګونه نه شو كولے نو هغوى له به يې په ميراث كښ برخه نه وركوله يعنى، زنانه، يوه ماشومان، واړه۔ يحي او معذوره خلق۔ نو په دے آيت كښ دَ هغوى برخے په اجمالى طريقے سره ذكر كوى او تفصيل به يې روستو راځي۔

لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْاَقْرَبُوْنَ، رِجَالِ عام دى كه بالغ وى كه نابالغه وى اوكه معذوره وى اوكه روغ وى۔ او علت دَ ميراث ولادت يا قرابت دے او قرابت زوجيت ته هم وئيلے شى دَ دے وجے نه يې الوالدان او الاقربون دواړه ذكر كړل۔

وَلِلنِّسَآءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْاَقْرَبُوْنَ، په دېكښ هم دغه تعميم دے خو سره دَ علت نه۔ او ترک په دواړو كښ هغه مال ته اشاره ده چه پرېخودلے شوے وى روستو دَ مرګ نه۔

مِمَّا قَلَّ مِنْهُ اَوْ كَثُرَ، دا جار مجرور په اصل كښ صفت دے دَ نصيب دَپاره يا په مما ترک كښ بدل دے. دَ "ما" نه۔

نَصِيبًا مَّفْرُوضًا، زجاج او مكى وئيلى دى چه دا حال دے دَ نصيب نه يا دَ فاعل دَ قَلَّ نه۔ مَفْرُوْض، فرض په اصل كښ پرېكولو او يقينى خېز ته وئيلے شى ځكه چه په هغے كښ دَ شيها تو قطع (پرېكول) او شى۔ يعنى هغوى ته دا حصے وركول الله تعالى فرض كړى دى چه دَ هغے تفصيل روستو ذكر كيږى او اشاره ده چه هر يوه برخه دَ بل دَ برخے نه قطع او جدا كولے شى۔ يا فرض په معنىٰ دَ تقدير او

وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبَىٰ

او کله چه حاضر شي تقسیمولو (د مال) ته خپلوان خلق

وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينُ فَارْزُقُوهُم

یتیمان او مسکینان نو خرچه ورکړئ هغوی ته

مِّنْهُ وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا

د هغې د مال نه او وایئ هغوی ته وینا

مَّعْرُوفًا ⑧

ترجمه۔

مقرر کولو دے نو اشاره ده چه دغه برخ په قرآن کریم یا احادیثو یا اجماع سره مقرر کړے شوی دی۔

ش:۔ په دے آیت کښ اووم حکم دے چه په هغې کښ دفعه د ظلم کوي د کمزورو وارثانو نه۔

وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ، دا اسم دے په معنیٰ د اقتسام یعنې تقسیمول او مراد ترینه تقسیمول د میراث دی۔

أُولُوا الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينُ فَارْزُقُوهُم مِّنْهُ، د مِنْهُ ضمیر القسمه ته راجع دے په معنیٰ د مال مقسوم سره او الف لام پکښ عهدی دی چه په لفظ د نصیب کښ (مخکښ آیت کښ) تقسیم ته اشاره ده۔ او د دے آیت په باره کښ څلور اقوال دی۔ اول قول د ابن عباس رضی الله عنهما او د ډیرو تابعینو دے چه د دینه مراد هغه کسان دی چه په میراث کښ د هغوی خپل څه حق نه وی خو د تقسیم په وخت کښ هلته حاضر شی نو هغوی لره (د لهولو ورثاؤ په رضا سره) څه برخه ورکول پکار دی او دا امر د استحباب د پاره دے واجب نه دے نو دا منسوخ نه دے۔ او د قتاده نه روایت دے چه دا

حکم ثابت دے په طریقه دَ استحباب سره لیکن اکثر خلقو په دے باندے عمل پرېخودلے دے ریا ئے ورته توجه نه ده کړے) او امام بخاری رحمه الله هم دا قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدے۔

دویم قول کښ یو روایت دَ ابن عباس او ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنهما او بعضے تابعینو دے چه دا حکم واجب وو لیکن په نزول دَ میراث دَ آیت سره رچه روستو راځی) دا منسوخ شویدے۔ دریم قول، روایت دے دَ سعید بن المسیب او ابن زید نه چه دَ آیت نه مراد دا دے چه یو انسان ته مرګ راشی او دے وصیت کوی نو خپلوانو او یتیمانو او مسکینانو دَپاره دِ مناسب وصیت اوکړی او مراد تری هغه کسان دی چه په میراث کښ ئے برخه نه رسیږی رلکه اولاد دَ هغه ځوے چه هغه دَ خپل پلار نه مخکښ وفات شوے وی وغیره) او دا هم په طریقه دَ استحباب سره دے۔ او که دَ وجوب په طور سره وی نو منسوخ دے (قرطبی)۔ څلورم قول، روایت دَ سعید بن جبیر دے حاصل ئے دا دے چه دَدینه مراد هغه کسان دی چه په میراث کښ دَ هغوی برخه شته نو الیتامیٰ والمساکین عطف تفسیر دَ اولوا القربیٰ دے یعنی دوی دَ میراث دَ تقسیم مطالبه کوی فی الحال دَخپل حاجت دَ وجے نه او فی الحال تقسیم مشکل وی نو دوی له دے دَ ضرورت مطابق لږه برخه مخکښ ورکړیشی رچه هغه به روستو دَ دوی په حصه کښ حساب شی) نو دا حکم دَ دوی دَ ضرورت په بناء واجب دے ۔ دے قول ته ابن عاشور اشاره کړیده او زمونږ مشائخو کرامو هم دا قول غوره کړیدے۔

وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ، دَ مخکښ اقوالو په بناء دَ دینه مراد دا دے چه دوی ته دِ اووئیلے شی چه ستاسو په دے مال کښ شرعًا حصّه نیشته لیکن صرف دَ صدقے

وَلْيَخْشَ الَّذِيْنَ لَوْ تَرَكُوْا
او ودې ويرېږي هغه كسان چه پرېږدي هغوى
مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعٰفًا
د ځان نه روستو اولاد كمزوري
خَافُوْا عَلَيْهِمْ فَلْيَتَّقُوا اللّٰهَ
يره كوي په هغوى پانديے (د ظلم د خلقو نه)
وَلْيَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ﴿۹﴾
او خامخا وايي دِ وينا حقه (برابر).

په طور سره دا تاسوله دركوو- او بناء په آخرى قول دا مراد دے چه اوس د ضرورت د وجے نه دالږه برخه واخلئ او څه وخت روستو به پوره تقسيم اوكړو نو بيا به تاسو ته ستاسو برخه پوره دركړو- نو مقصد دا شو چه د يتيمانو او مسكينانو خفه كول جائز نه دى بلكه د هغوى ضرورت پوره كول پكار دى.
ف :- په دے آيت كښ وعظ او ترغيب دے عمل كولو ته په تير شوے احكامو په باره د يتيمانو او سفهاؤ كښ او تائيد دے د هغه حكم چه په فارزقوهم او قولوكښ ذكر شويدے.
وَلْيَخْشَ ، دا صيغه د امر غائب ده په نيز د سيبويه د دينه لام د امر بغير د ضرورت شعري نه نشي حذف كيدے.
اَلَّذِيْنَ لَوْ تَرَكُوْا مِنْ خَلْفِهِمْ ، اَلَّذِيْنَ سره د موصول نه د وليخش فاعل دے او مفعول د هغے پټ دے يعنى الظلم على اولاد غيره (د ظلم كولو نه په اولاد د بل چا پانديے)
ذُرِّيَّةً ضِعٰفًا ، دا مفعول دے د تركو د پاره او مِنْ خَلْفِهِمْ كښ د ده مرګ ته اشاره ده- او ذُرِّيَّةً معنى مخكښ تيره شويده- او وړو بچو او ښځو ته شامل دے- ضِعٰفًا قيد د پاره د تاكيد دے- يا هر كله چه لفظ ذريةً نقس نسل

ته عام دے نو داڅے قید احترازی ذکر کړو۔
خَافُوْا عَلَيْهِمْ، دا جمله صفت يا حال دے دَ ذريةً دَپاره اودَ دے خافوا مفعول پټ دے يعنی ظُلْمَ النَّاسِ عَلَيْهِمْ (دَظلم كولو دَخلقو ته په دوی باندے)۔ او دَ حرف لو جزاء پټه ده يعنی خفه كيږئ۔ يا خافوا جزاء ده دَ لَو په تقدير دَ لام سره يعنی خَافُوْا عَلَيْهِمْ، په تفسير دَآيت كښ څلور اقوال دی۔ اول دا چه دا وعظ دے وصيا نو او كفالت كوونكو دَ يتيما نو ته يعنی تاسو دَ دغه يتيما نو سره داسے معامله كوئ لكه چه تاسو غواړئ چه ستاسو دَ مرګ نه روستو دے ستاسو دَ اولاد سره اوكړيشی۔ يعنی په هغوئ باندے ظلم مه كوئ۔ او روستو آيت هم په دے باندے دلالت كوی۔ دويم قول، دا قول انسانيت ته وعظ دے چه دَيتيما نو او دَ خلقو دَ اولاد په باره كښ ځان دَ ظلم كولو نه بچ اوساتئ لكه چه تاسو غواړئ چه ستاسو اولاد سره دے ظلم اونكړيشی۔ يعنی هر كله چه يو انسان دَخپل اولاد دَپاره امن غواړی نو دَ بل چا په بچو باندے هم ظلم او نه كړی ځكه اكثر دَ ظلم سزا په دنيا كښ ملاويږی۔ دريم قول، په دے سره مراد هغه شخص دے چه مرګ ورته حاضر شی نو بعض (كم عقل) حاضرين ورته وائی چه وصيت اوكړه، خيرات اوكړه، مريان آزاد كړه، دَ ځان غم اوكړه دَ اولاد فكر مه كوه هغوی له به الله تعالٰی روزی وركوی نو هغه شخص دَ دوی په وسوسے سره دهوكه شی نو ټول يا اكثر مال خيرات كړی او وارثان محروم كړی۔ نو داسے كسانو ته خطاب اوشو چه تاسو په خپل اولاد باندے يره كوئ اوخفه كيږئ نو دَ بل چا اولاد باندے هم خفه كيږئ كنه. دا قول قرطبی دَ ابن عباس رضی الله عنهما، قتاده، سدی، سعيد بن جبير، ضحاك او مجاهد نه نقل كړيدی۔ څلورم قول دَ دے مخكښ قول برعكس دے چه دَ وصيت كولو نه ئے منع كوئ كله چه خپلوانو (غير وارثانو) ته وصيت كوی۔ نو حكم دَ

إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ
يقيناً هغه كسان چه خوري مالونه

الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ
دَ يتيمانو په ناحقه سره يقيناً دوي اچوي

فِي بُطُونِهِمْ نَارًا ۖ وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا ⑩
په گيډو خپلو كښ اور او زر دے چه داخل به شي اور ته۔

آيت دے ټولو ته شامل دے۔

فَلْيَتَّقُوا اللَّهَ ، هر كله چه په خشيت سره امر كول په دليل سره ثابت شو نو اوس په هغې باندے تفريع كوي په تقوىٰ سره۔ يعني خشيت قلبي مستلزم دے پوره تقوىٰ لره په اعتبار دَ اعمالو سره۔

وَلْيَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ، دا امر عام دے كفيل او وصي ته خطاب دے يعني يتيم ته دَ خپل اولاد پشان دَ خائسته آدابو تعليم وركړي۔ دا رنګ حاضر ينو دَ مريض ته خطاب دے يعني خپل مريض مرض الموت ته دِ اووائي چه حقوق واجبه ادا كړه او مناسب شرعي وصيت اوكړه دا رنګ هغه ته دے دَ لا اله الا الله تلقين اوكړي ليكن امر دِ ورته نه كوي۔ دا رنګ وصيت كوونكے دِ وصيت كولو په وخت كښ دَ مال دَ دريمے حصے نه تجاوز نه كوي او وارثان دِ فقيران نه پريږدي چه بيا دَ خلقو نه سوالونه كوي (دا سے په حديث كښ راغلے دي) دا رنګ عام مسلمانان دِ يتيم ته سخته وينا او قهر نه كوي۔ سَدِيدًا ، هغه قول او فعل چه حق او په انصاف باندے بنا وي او دَ شرع سره موافق وي۔

ف ۱: په دے آيت كښ تخويف اخروي دے هغه چا دَ پاره چه يتيمانو باندے دَ هغوي په مال كښ ظلم كوي۔

إِنَّ الَّذِينَ ، دا ئے بغير دَ حرف عطف نه په إِنَّ سره

ځکه ذکر کړو چه دا علت دے دَ ایجاب دَ رزق هغوی دَپاره اودَپاره دَ قول سدید هغوی ته - او دَ دینه مراد عام دے هغه وصیان او کفیلان چه دَ یتیمانو مالونه ضائع کوی یا هغه خلق چه یتیمانو ته دَ میراث برخه نه ورکوی - یا هغه ظالمان چه دَ یتیمانو مالونه په غیر شرعی طریقے سره خوری لکه په دے زمانه کښ په مړو پسے ما ښامونه، خلوېښتئ او نور خیراتونه او اسقاط چه په هغے کښ دَ یتیم برخه وی -

یَاْکُلُوْنَ، دَ دینه مراد صرف خوراک دے یا دَ هغے اخستل او بربادول دی که په هره طریقه سره وی -

اَمْوَالَ الْیَتٰمٰی ظُلْمًا، لفظ دَ ظُلْمًا تمیز دے یا حال یا مفعول مطلق دے په پټ صفت سره یعنی اکلاً ظلمًا - او دا قید ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو چه کله کله دَ یتیم مال په حق شرعی سره هم اخستلے کیږی لکه اجرت او نفقه دَ ولی دَپاره وغیره -

اِنَّمَا یَاْکُلُوْنَ فِیْ بُطُوْنِهِمْ نَارًا، فِیْ بُطُوْنِهِمْ لفظ کښ ډیر خوراک ته اشاره ده یعنی خیټه ډکوی - دا رنګ دا لفظ دلالت کوی په ډیر قباحت دَ دوی باندے - نَارًا نه مراد دَجهنم اور دے چه ذکر دَ مسبب او مراد تری نه سبب دے یعنی حرام - یا دَ دینه مراد دردونه او مختلف مصائب دَ دنیا دی چه حرام مال په دنیا کښ دَ هغے دَپاره سبب اوګرځی - یا مراد دَ دینه عین اور دے چه دوی به په جهنم کښ اور خوری لکه چه حدیث دَ ابوسعید خدری رضی الله عنه دے او ابن جریر را نقل کړیدے هغه په دے باندے دلیل دے -

وَسَیَصْلَوْنَ سَعِیْرًا، هر کله چه مخکښ دَ جهنم اور مراد وی نو دا جمله بیا په طریقه دَ تفسیر سره ده - او که دَ نار نه دنیوی مصائب مراد وی نو بیا په دے جمله کښ دَ عذاب اخروی ذکر دے روستو دَ عذاب دنیوی نه - صلی دلالت کوی په

يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ ق

کلک حکم درکوی تاسو ته اللّٰه تعالیٰ په باره دَ میراث دَ اولاد ستاسو کښِ

لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ ج

دَ نارینه دَ پاره پشان دَ برخې دَ دوو زنانو ده

فَاِنْ كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ

توکه وی زنانه (دوه یا) زیاتې دَ دوو نه

فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ج وَاِنْ

نو دوی لره دوه حصې دی دَ هغه مال نه چه پریخودلے وی ده، او که

كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ ط

یوه وی نو هغې لره نیمه برخه ده۔

وَلِاَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا

او دَ ده دَ مور او پلار دَ پاره هر یو لره دَ دے دواړو نه

السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ اِنْ كَانَ

شپږمه برخه ده دَ هغې نه چه پریخودلے وی دهٔ که چرے وی

لَهٗ وَلَدٌ ج فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهٗ

هغه لره اولاد ، او که نه وی هغه لره

وَلَدٌ وَّوَرِثَهٗٓ اَبَوٰهُ فَلِاُمِّهِ

اولاد او وارثان دَ ده مور او پلار دَ ده وی نو مور دَ ده لره

الثُّلُثُ ج فَاِنْ كَانَ لَهٗٓ اِخْوَةٌ

دریمه برخه ده۔ او که وی ده لره رونړه نو

دخول بالله اور ته دَ سوزیدلو دَ پاره۔ سعیر هغه اور دے چه په لمبو باندے مشتمل وی نو سعیر په معنیٰ دَ سعور دے۔

فَلِأُمِّهِ السُّدُسُ مِنۢ بَعۡدِ
مور لره يې شپږمه برخه ده روستو دَ پوره كولو

وَصِيَّةٍ يُّوۡصِيۡ بِهَآ اَوۡ دَيۡنٍ ؕ
دَ وصيت نه چه وصيت يې كړے وي په هغې سره اودَ ادا كولو دَ قرض نه،

اٰبَآؤُكُمۡ وَاَبۡنَآؤُكُمۡ لَا تَدۡرُوۡنَ
پلاران ستاسو او ځامن ستاسو نه پوهيږئ

اَيُّهُمۡ اَقۡرَبُ لَكُمۡ نَفۡعًا ؕ
تاسو چه كوم يو دَ دوى زيات نيزدے دے تاسو ته په نفع كښ،

فَرِيۡضَةً مِّنَ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ
حصے مقرر كړے شويدى دَ طرف دَ الله تعالىٰ نه، يقيناً الله تعالىٰ

عَلِيۡمًا حَكِيۡمًا ﴿۱۱﴾
پوهه دے حكمتونو والا دے۔

سلا:- په دے آيت كښ اتم حكم دے۔ او دا تفصيل دَ هر هغه برخو او حصو دے چه په للرجال نصيب كښ اجمالاً ذكر شوے وے۔ او په دے كښ تصريح ده دَ رد په جاهليت باندے چه هغوى په زنانو، نابالغو او معذورو كسانو ته په ميراث كښ برخه نه وركوله۔

يُوۡصِيۡكُمُ اللّٰهُ، قفال وئيلى دى چه ايصاء، په اصل كښ رسولو ته وئيلے شى او زجاج وئيلى دى چه ايصاء دلته په معنىٰ دَ فرض كولو ده۔ ابن عاشور وئيلى دى چه ايصاء امر كول دى په هغه څيز چه په هغے كښ نفع دَ مامور وى او دَ امر كوونكى دَ طرف نه اهتمام وى۔ او ابن كثير فرمائى چه معنىٰ دا ده چه امر كوى تاسو ته په عدل سره۔ دا رنګ وصيت هغه حكم ته وئيلے شى چه دَ هغے دَ پاره ناسخ نه وى نو دَ دينه مراد تاكيدى حكم

کول دی نو دا تعبیر دلیل دے په ډیر اهتمام باندے په مسئله دَ میراث کښ۔
فائده ۱:۔ ابن کثیر وئیلی دی چه دا آیت او وروستے آیت او دَ سورت آخری آیت ټول په علم فرائض کښ دی او دَ میراث شرعی احکام دَ دے آیاتونه اخستلے شوی دی او احادیث دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ دے تفسیر دے۔ او دَ علم فرائض په زده کولو کښ احادیث راغلی دی۔ او قرطبی وئیلی دی چه دا آیت رکن دے دَ ارکانو دَ دین نه او ستن ده دَ سنتو دَ احکامو نه او ام ده دَ امهاتو دَ آیتونو نه۔ او وئیلے شوی دی چه علم فرائض دریمه حصه دَ علم ده بلکه نیم علم دے لیکن دا اول داسے علم دے چه دَ خلقو نه به واخستلے او هیر کړے شی۔
فائده ۲:۔ دَ میراث دَ پاره شرعًا درے اسباب دی اول نسبت دَ تولد یعنی اولاد او والدین۔ دویم سبب نسبت دَ زوجیت یعنی خاوند او ښځه۔ دریم سبب نسبت دَ اخوت۔ اول دواړه په دے دوه آیتونو کښ ذکر دی او دریم دَ دے دویم په روستو حصه کښ او په آخری آیت کښ ذکر دے۔ نو په اول آیت کښ دَ توالد سره شپږ مسائل ذکر دی او په دویم آیت کښ په نسبت دَ زوجیت سره څلور او په نسبت دَ اخیافی رورولۍ او خورولۍ سره پنځه ذکر دی۔
ورثه درے قسمه دی اول ذوی الفروض دویم عصبه دریم ذوی الارحام۔ دَ روستنو په میراث کښ اختلاف شته دے۔ ذوی الفروض هغه کسان دی چه دَ هغوی خاص برخے په قرآن کریم، او احادیثو یا په اجماع سره ثابت او ذکر دی او هغه شپږ برخے دی یعنی نیمه، څلورمه حصه، اتمه حصّه، دوه دریمے حصے، دریمه حصه او شپږمه حصه۔ او ذوی الفروض دوه قسمه دی یعنی نارینه او زنانه۔ بیا نارینه لس قسمه دی، څوے، نمسے

(اګرچه نور هم خکته شته لکه کړوسے وغیره)، پلار، نیکه (اګرچه نور هم په سیره وی له اودنیکه وغیره)، ورور، زوزه؛ تره او د تره ځوی، خاوند او مولی د آزادولو. او زنانه اووه قسمه دی لکه لور، نوسئ (اګرچه خکته وی)، مور، نیا (اګرچه بیره هم وی)، خور، ښځه او مولاته د آزادولو۔ او عصبه هغه کسان دی چه د هغوی برخے په خاص طریقے سره نه وی ذکر لیکن کوم میراث چه د ذوی الفروض د برخونه باقی پاتے شی نو هغه د دوی حق وی۔ نوروستو د اداکولو د قرض او وصیت نه (چه په دریمه حصه کښ وی) تقسیم د میراث به کیږی نو که چرے ذوی الفروض موجود وی نو د هغوی برخے به اول ورکړیشی او د هغوی نه روستو چه کوم مال پاتے شی نو هغه به په عصبوٴ کښ تقسیمیږی۔ او حق د عصبوٴ د قرآن کریم نه په سکوت سره او د احادیثو نه په صراحت سره معلوم دے۔ نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه اورسوئ فرائض اهل د هغوی ته او باقی هغه شخص ته ورکړئ چه مړی ته نیزدے وی۔

فائده ۳:۔ یوصیکم خطاب اګرچه عام دے لیکن په سبب د احادیث صحیحه سره یے تخصیص کړے شوے دے۔ اول دا چه وارث به کافر نه وی لکه چه په حدیث کښ دی لایرث الکافر المسلم۔ دویم دا چه مریئے (غلام) به نه وی یعنی مریئے د آزاد شخص وارث نشی کیدے۔ دریم دا چه قاتل به نه وی یعنی قاتل به د مقتول د میراث نه محروم وی۔ څلورم دا چه د انبیاء علیه السلام نه میراث نشی اوړلے کیدے په دلیل د صحیح حدیث سره چه (نَحْنُ مَعْشَرُ الْاَنْبِيَاءِ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَاهُ صَدَقَةٌ) (زموږ د جماعت د انبیاوٴ نه میراث نه اوړلے کیږی موږ چه څه پریخودلے وی نو هغه به صدقه وی) او دا حدیث متواتر دے د

او ټولس صحابه کرامو نه نقل دے - او دا مسئله د شیعه ګانو
په کتابونو کښ هم شته - شرح نهج البلاغه د ابن ابی
الحدید کښ لیکلی دی چه ابوبکر رضی الله عنه دا حدیث
ذکر کړو نو فاطمه رضی الله عنها راضی شوه -
سوال :- په حدیث کښ ثابت دی چه فاطمه رضی الله عنها
غصه او خفه شوه او د ابوبکر رضی الله عنه سره یې تر مرګه
پورے خبرے نه وے کړے ؟
جواب :- بیهقی او عینی په عمدة القاری او ابن حجر په
فتح الباری کښ ذکر کړیدی چه ابوبکر رضی الله عنه
د فاطمے رضی الله عنها دروازے ته راغلے وو تر دے پورے
چه هغه رضا شوه - او ابن کثیر په البدایه والنهایه جلد
پنځم صفحه ۲۸۹ کښ هم لیکلی دی - او د خبرو نه کولو
مطلب دا دے چه په میراث طلب کولو کښ د هغه سره تر
مرګه پورے خبره او نکړه ځکه چه په حدیث اوریدلو سره
د هغے تسلی حاصله شوه -
فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ ، اول یې د اولاد په میراث باندے شروع اوکړه ځکه
چه د انسان تعلق د اولاد سره د هر چا نه مخکښ او ډیر وی - او
دلته مضاف پټ دے یعنی فی ارث اولادکم - او ارث عام دے که
اولاد د مور پلار نه میراث اوړی او که والدین د اولاد نه
میراث اوړی - نو د اولاد دوه حالات دی - حالت د انفراد
(یوازے والی) او حالت د اجتماع د والدینو سره - او حالت د
انفراد یې درے قسمه دے - مذکر او مؤنث په دواړه وی دا
یې په للذکر مثل حظ الانثیین سره ذکر کړیدے - یا به
صرف مؤنث وی او دا یې وړیسے جملو کښ ذکر کړیدی - او
چه یوازے مذکر وی نو د هغه حال یې صراحتًا نه دے کړے
نو د هغه د پاره ټول مال دے په طریقه د عصوبت سره
لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ ، دا اوله مسئله ده او د دے دوه
صورتونه دی - اول صورت دا دے چه څوک (سړے یا ښځه) مړ

شي او يو ځوے او يوه لورېځ پاتې شي نو مال به درے برخې شي دوه برخې به ځوے له ورکړيشي او يوه برخه به لور ته ورکړيشي - دوېيم صورت دا دے چه يو ځوے او دوه لوڼره پاتې شي نو مال به په مينځ نيم کړيشي، نيمه برخه به ځوے ته ورکړيشي او باقي نيمه په دواړو خوينډو يعني لونړو باندے برابر تقسيم کړيشي -

سوال :- دا سے ئے ولے او نه فرمائيل چه (للانثيين مثل حظ الذکر يا للانثى مثل نصف حظ الذکر) ؟

جواب :- په دے عبارت کښ تصريح ده په فضيلت دَ مذکر په مؤنث باندے دا رنګ مذکر (په سبب دَ جاهليت سره) طمع کوي چه ټول مال به زما وي نو او وئيلے شو چه ټول مال صرف ستا حق نه دے بلکه مؤنث هم درسره شريکے دي -

سوال :- زنانه کمزورے او بے طاقته ده نو دَ هغې برخه ئے ولے دَ مذکر دَ برخې نيمه کړځولے ده؟

جواب :- په مذکر باندے دَ ښځې او دَ خور او لور وغيره نفقه واجب ده نو مذکر ډير مال ته محتاج دے په نسبت دَ مؤنث سره -

فَإِنْ كُنَّ نِسَاءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ ، دَ كُنَّ ضمير مؤنث کسانو ته راجع دے هغه چه په ضمن دَ اولادکم کښ داخل دي - يا راجع دے متروکاتو (پريخودلے شوو) ته - او په دېکښ دويمه مسئله ده يعني چه ورثه صرف زنانه اولاد وي مذکر ورسره نه وي -

فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ، يعني ټول مال به درے برخې کړے شي نو دوه برخې به دغې زنانو وارثانو کښ پوره تقسيم کړيشي او يو ثلث (برخه) به دعصبؤ دَ پاره وي که هغه هر څوک وي -

وَإِنْ كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ ، دا دريمه مسئله ده چه صرف يوه لور پاتې وي او مذکر (ورور) ورسره نه وي - نو ټول مال به دوه حصے کړيشي يو حصه به هغه لور ته

ورکړیشي او باقي به عصبؤ کښې تقسیم کړیشي۔
سوال:۔ په دیکښې ئې دَ دوه لونړه دَ حصې وضاحت نه دے کړے شوے نوهغه په څرنګه میلاویږي؟
جواب:۔ دَ هغې دَ علم دوه طریقې دي اوله داچه هر کله یوے لور له دَ یو ورور سره دریمه حصه ملاویږي په دلیل دَ للذکر مثل حظ الانثیین سره نو یوے لور له دَ بلې لور په ملګرتیا کښې هم خامخا ثلث ملاویږي نو د دوو دَ پاره دوه ثلثه شول۔ دویمه طریقه قیاس دے په دوه خویندو باندے چه دَ دے سورت په آخري آیت کښې ذکر دي چه خویندے خو په نسبت دَ لونړو لرے دي لیکن چه خویندو دَ مړي نه دوه حصې ملاویږي نو دوه لونړو له به ضرور دوه حصې ملاویږي۔
سوال:۔ نو په لفظ دَ فوق ذکرکولو کښې څه فائده ده؟
جواب:۔ په دیکښې یو وهم دفعه کوي۔ هغه دا دے چه هر کله دوه لونړو له دوه ثلثونه دي نو آیا دریو لونړو دَ پاره به ټول مال وي (یعنې دریواړه ثلثونه) نو په دے سره ئې دغه وهم دفعه کړو چه دوه نه به زیاتو له هم دغه دوه ثلثه (حصې) دي هغه په هغوی برابر تقسیمیږي۔
سوال:۔ دَ سورت په آخري آیت کښې ولے دا سے نه دي فرمائیلي؟
جواب:۔ هر کله چه دَ لور استحقاق په نسبت دَ خور سره ډیر دے نو دلته وهم پیدا کیدلو چه آیا دَ دوو نه زیاتو له به حصه زیاتیږي۔ او دَ خویندو باره کښې دا وهم نه پیدا کیږي۔

وَلِاَبَوَيۡهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنۡهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ اِنۡ كَانَ لَهٗ وَلَدٌ ، مخکښې ذکر شو میراث دَ اولاد دَ مور او پلار نه اوس ذکر کوي دَ مور او پلار دَ خپل اولاد (څوے لور) نه ، نو دا څلورمه مسئله ده چه یو شخص مړ شي

او مور او پلار ئې پاتې وي او اولاد يې هم وي نو دَ هر
يو (مور او پلار) دَ پاره په شپږمه برخه وي.
او که اولاد يې مذکر وي نو باقي ټول مال به دَ هغه وي
او که مذکر او مؤنث دواړه وي نو په طريقه دَ للذکر
مثل حظ الانثيين به باقي مال تقسيم کړے شي او که
صرف مؤنث (لونړه) پاتې وي نو که يوه وي نو دَ هغې دَ پاره
نيمه دَ کل مال ده او که دوه وي يا زيات وي نو دَ هغوي
دَ پاره به دوه ثلثه وي لکه چه مخکښ تير شول او باقي
به پلار ته ورکيدے شي په وجه دَ عصوبت بانډے . لِاَبَوَيْهِ
خبر مقدم مبدل منه دے او لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا دَ هغې نه
بدل دے او السُّدُسُ مبتدا ده . او ضمير دَ اَبَوَيْهِ راجع
دے هغه ميت ته چه لفظ دَ ترک په هغه بانډے دلالت
کوي . او په لفظ دَ ابويه کښې تغليب کړے شوے دے او په
اصل کښې لاب و لام وو . لِكُلِّ وَاحِدٍ بدل راوړلو کښې
فائده دا وه چه معلومه شي چه يو سدس (شپږمه برخه)
دَ دوي شريک نه دے بلکه دَ هر يو دَ پاره جدا جدا
سدس دے .

سوال :- په دے حالت کښې ئې مور او پلار ولے برابر
کړيدي ؟

جواب :- دَ اولاد دَ پاره لکه څرنګه چه پلار مشقت او
تکليف دَ نفقې وغيره برداشت کوي نو دا رنګ مور هم په
وخت دَ حمل او وضع دَ حمل او دَ رضاع سره ډير مشقت
برداشت کړيدے نو ځکه دَ دوي برخې ئې يو شان او کړځولے
وَلَدٌ ، دَ دينه مراد خپل ځوے او لور ده او چه هغوي نه
وي نو ځوے دَ ځوے (نمسے) پکښې داخل دے په طريقه
دَ عموم دَ مشترک يا عموم مجاز سره بناء په اختلاف دَ
علماؤ .

فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهٗ وَلَدٌ ، په دے نفي کښې ځوے او لور

او اولاد دَ خوَئے داخل دے۔
وَوَرِثَهُ اَبَوَاهُ ، دا قید یئے دَ دے وجے نه راوړو چه بعضے وخت مور او پلار موجود وی لیکن کافران وی یا مملوکان (غلامان) وی یا قاتلان وی نو هغوی ته په میراث دَ اولاد کښ څه حصه نشی ورکیدے۔
فَلِاُمِّهِ الثُّلُثُ ، دا پنځمه مسئله ده۔ دلته دَ پلار دَ حصے ذکر اونشو نو مقصد یئے دا دے چه باقی دوه ثلثه دی نو هغه ټول مال دَ پلار دَ پاره دی دَ دے وجے نه چه هغه په دا سے حال کښ عصبه دے
فَاِنْ كَانَ لَهُ اِخْوَةٌ فَلِاُمِّهِ السُّدُسُ ، دا شپږمه مسئله ده او دَ (فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهُ وَلَدٌ) دَ لاندے داخل ده یعنی اولاد یئے نه وی او مور او پلار او ورسره رونړه پاتے وی دوه رونړه یا زیات (ځکه چه په باب دَ میراث کښ دوه عدد هم په جمع کښ داخل دے) او دا رونړه اعیانی وی که علاتی یا اخیافی وی (قرطبی) نو دَ دے رونړو په وجود سره دَ هغوی مور محرومه شوه او دَ هغے حصه دریمے نه شپږمے ته راکوزه شوه۔ دیته دَ علم میراث په اصطلاح کښ حجب نقصان وئیلے شی۔ او دَ دے رونړو دَ حصے په باره کښ اختلاف دے۔ دَ جمهورو مسلك دا دے چه دوی دَ وجے دَ پلار نه محروم دی ځکه چه پلار یئے شته دے لیکن دَ مور حجب کوی۔ او په نیز دَ ابن عباس رضی الله عنهما دَ دوی دَ پاره هم سدس دے چه هغه کم کړے شوے دے دَ مور دَ حصے نه۔ دا رنګه په صرف خویندو (اخوات) کښ هم اختلاف دے۔ جمهور علماء وائی چه دوی دَ مور حجب نقصان کولے شی او دَ ابن عباس رضی الله عنهما قول دا دے چه دوی حجب نشی کولے۔ او هر کله چه مور شپږمه حصه واخلی نو په نیز دَ جمهورو باندے باقی ټول مال (پنځه حصے) دَ پلار دی۔
مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصِيْ بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ، زمخشری وئیلی دی چه دا متعلق دے دَ ماقبل تقسیم سره یعنی دَ دے حصو

تقسیم روستو دَ وصیت پوره کولو نه دے - او ابوحیان وئیلی دی چه دوی مستحق دی دَ دغه حصو روستو دَ وصیت نه او دلته مضاف پټ دے یعنی تَنْفِيْذُ وَصِيَّةٍ (جاری کول دَ وصیت) - يُوْصِيْ ضمیر راجع دے میت ته او دَیْنٍ کښ هم مضاف پټ دے یعنی اداءِ دین - صاحب اللباب دَ ابوالبقاء نه نقل کړیدی چه او دَپاره دَ یو دَ دوه څیزونو دے ترتیب ته فائده کوی یعنی په دے دواړو کښ که یو وی یا دواړه وی لیکن دَ میراث نه مخکښ به وی (یعنی وصیت به پوره کیږی (په دریمه حصه کښ) او قرض به اداء کیږی روستو به میراث تقسیمیږی -

سوال :- په شرعی دلیلونو سره ثابت ده چه دَ قرض ادائیګی مخکښ ده په وصیت باندے نو دلته ئے وصیت ولے مخکښ کړیدے په قرض (دین) باندے ؟

جواب :- وصیت پشان دَ میراث بے عوضه څیز دے نو په ورثو باندے دَ دے اجراء ګران وی او صاحب دَ وصیت هم په زور مطالبه نشی کولے - او هرچه دین (قرض) دے نو هغے طلب ګاروی او هغه په وارثانو باندے ګران نه وی نو دَ اهتمام دَپاره ئے وصیت مخکښ ذکر کړیدے په دین باندے -

اٰبَآؤُكُمْ وَاَبْنَآؤُكُمْ لَا تَدْرُوْنَ اَيُّهُمْ اَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا ، دا علت دے دَ ذکر شوے تقسیم دَپاره یعنی الله تعالیٰ دَ میراث تقسیم ستاسو عقلونو ته نه دے حواله کړے ځکه چه ستاسو عقلونه دَ ټولو مصلحتونو احاطه نشی کولے کله نفعے ته ضرر وائی او کله ضرر ته نفع وائی - او الله تعالیٰ خو په ټولو مغیباتو باندے علم لری نو دَ دے برخو تقسیم او تقدیر الله تعالیٰ پخپل علم سره اوکړو - یا دا جمله متعلق ده دَ وصیت سره چه کله وصیت دَ مور او پلار دَپاره نفعے والا وی او کله وصیت دَ اولاد دَپاره فائده مند وی لیکن اول قول غوره دے - او دَ ابن عباس رضی الله عنهما

وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ

او تاسو لره نيمه دَ هغه مال نه ده چه پريخودلے وى ښځو ستاسو

إِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهُنَّ وَلَدٌ ج

كه چرے نه وى دَ هغوى دَ پاره هيڅ اولاد ،

فَإِنْ كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ

او كه وى هغوى دَ پاره اولاد نو تاسو لره

الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ مِنْ بَعْدِ

څلورمه حصه ده دَ هغه مال نه چه پريخودلے وى روستو دَ پوره كولو

وَصِيَّةٍ يُّوصِينَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ط

دَ وصيت نه چه وصيت كړے دے دوى په هغے سره او دَ ادا كولو دَ قرض نه

وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ

او ښځو لره څلورمه حصه ده دَ هغه مال چه پريخودلے وى تاسو

إِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّكُمْ وَلَدٌ ج

كه چرے نه وى تاسو لره څه اولاد

نه نقل دى چه دا دَ آخرت سره تعلق لرى او دَ نفعے نه مراد شفاعت دَ والدينو دے دَ اولاد دَ پاره او بر عكس هم. او دَ مجاهد او ابن سيرين رحمه الله نه نقل دى چه دا په دنيا كښ دے چه والدين دَ اولاد سره ډير شفقت او محبت كوى او چه اولاد دَ والدينو ډير اطاعت او فرمانبردارى كوى. غوره دا ده چه دنيا او آخرت دواړو ته شامل دے. قرطبى وئيلى دى چه والدين كله دَ اولاد په دعا سره اوچته درجه حاصله كړى نو دارنګ اولاد دَ والدينو په دعا سره اوچت مقام حاصلولے شى. ابوحيان وئيلى دى چه په

فَإِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ

نو که وي تاسو د پاره اولاد نو ښځو له

الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُمْ مِّنْ بَعْدِ

اتمه حصه ده د هغه مال نه چه پرېخودلے وي تاسو روستو د پوره کولو د

وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ط

وصيت نه چه وصيت کوئ تاسو په هغے سره او د ادا کولو د قرض نه

وَإِنْ كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَالَةً

او که چرے وي يو سړے چه ميراث ترينه اوړلے کيږي يعني مونږ کي (ميراث)

أَوِ امْرَأَةٌ وَلَهُ أَخٌ أَوْ أُخْتٌ

يا زنانه داسے وي او د هغه د پاره ورور يا خور وي (د موريه صرف)

فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ

نو هر يو لره د دے دواړو نه شپږمه حصه ده

فَإِنْ كَانُوا أَكْثَرَ مِنْ ذَٰلِكَ

نو که دي دوي زيات د دينه

فَهُمْ شُرَكَاءُ فِي الثُّلُثِ مِنْ بَعْدِ

نو دوي برابر برخو والا دي په دريمه حصه کښ روستو د پوره کولو

ديکښ اشاره ده چه د مورث د مرګ تمنا مه کوئ۔
فَرِيضَةً مِّنَ اللّٰهِ، دا د مفعول مطلق په ځائے دے د يوصيكم د پاره چه هغه په معنیٰ د فرض کوي په تاسو بانلے دے۔ يا فعل پټ مراد دے يعني فَرَضَ اللّٰهُ فَرِيضَةً۔ او په ديکښ اشاره ده چه دا ذکر شوي مقادير فرض دي د الله تعالیٰ د طرف نه نو د دے انقياد ضروري دے۔

وَصِيَّةٍ يُّوْصٰى بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ۙ

دَ وصیت نه چه وصیت کیدیشی په هغې سره او دَ ادا دَ قرض نه

غَيْرَ مُضَآرٍّ ۚ وَصِيَّةً مِّنَ اللّٰهِ ۗ

نه په ئې ضرر ورکوونکی (په وصیت سره) دا کلک حکم دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَے

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَلِيْمٌ ﴿۱۲﴾

او الله تعالیٰ پوهه دے صبرناک دے۔

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ، په دیکښې هم اشاره ده چه دا ذکر شوے تقسیم دَ الله تعالیٰ دَ علم او حکمت سره موافق دے نو دَ دے مخالفت مه کوئ۔

سـ۱۲ :- په دے آیت کښې دَ هغه میراث ذکر کوی چه هغه په سببیت دَ نکاح سره وی روستو دَ نسب ذکر کولو نه۔ او هر کله چه وراثت په نسب سره مخکښې دے په وراثت دَ نکاح باندے دَ دے وجے نه هغه ئې مخکښې ذکر کړو او دائې وروستو راوړو۔ او هر کله چه په وراثت نسبیه کښې مذکر له په مقابل دَ مؤنث کښې دوه برخې وے نو دا په وراثت سببیه کښې هم فرق دے په مینځ دَ خاوند او دَ ښځه کښې په برخو دَ میراث کښې۔ او په وراثت سببیه سره څلور مسائل ذکر کوی۔

اوله مسئله :- وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ اَزْوَاجُكُمْ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهُنَّ وَلَدٌ ، دا نارینو ته خطاب دے او دَ اَزْوَاج نه مراد بیبیانے دی یعنی چه دَ یو سړی ښځه وفات شی او دَ هغې ښځې اولاد نه وی دَ دے خاوند نه یا دَ بل خاوند نه نو دَ خاوند دَپاره دَ هغې په مال کښې نیمه حصه ده۔ او وَلَدٌ دلته خپل اولاد او دَ ځوے اولاد (نوسو) ته شامل دے مذکر وی او که مؤنث وی۔

او دویمه مسئله :- فَاِنْ كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ

مِمَّا تَرَكْنَ، ده - یعنې چه یو ښځه وفات شي او خاوند ئې پاتې شي خو اولاد ئې هم وي که د دے خاوند نه وي یا د بل نه نو د خاوند د پاره څلورمه برخه ده او د اولاد د برخو ذکر په مخکښ آیت کښ تیر شوې دے۔
مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصِيْنَ بِهَآ اَوْ دَيْنٍ، د دے تفسیر مخکښ ذکر شو او دا تصریح ده چه د ښځې په خپل مال کښ د وصیت اختیار شته دے د خاوند اذن ته پکښ حاجت نشته۔
وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّكُمْ وَلَدٌ، دا دریمه مسئله ده - یعنې چه خاوند وفات شي او د دے ښځې یا د نورو ښځو نه ئې اولاد نه وي نو که یوه ښځه وي نو د هغې د پاره څلورمه حصه ده او که دوه، درے یا څلور ښځې ئې وي نو دا څلورمه حصه به په هغوی کښ برابر تقسیمیږي.
مخکښ جمله کښ ئې نارینه ته خطاب کړے وو او دلته ئې زنانه ته خطاب نه دے کړے اشاره ده تعلیم د ادب ته چه د ښځو د پاره غائب والے (پټوالے او په پرده کښ اوسیدل) شرعی حکم دے - تَرَكْتُمْ کښ خاوندانو ته خطاب دے په طریقه د مجاز سره یعنې روستو د مرګ نه۔
فَاِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُمْ، دا څلورمه مسئله ده۔ یعنې چه خاوند وفات شي او یوه ښځه یا ډیرے ښځې ئې پاتې شي او اولاد ئې هم وي۔نو د ښځې یا ښځو د پاره اتمه حصه ده په هغوی کښ برابر تقسیمیږي او د اولاد حصے مخکښ آیت نه معلوم شویږي۔
مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ بِهَآ اَوْ دَيْنٍ، د تاکید د اهتمام په وصیت او دین د پاره دا جمله د هر تقسیم سره ذکر کوي۔
وَاِنْ كَانَ رَجُلٌ يُّوْرَثُ كَلٰلَةً، په دے جملو کښ د اخیافي ورور، خور میراث ذکر کوي لیکن د استحقاق د

میراث دَ پاره چه سبب دَ اخوت سره وي شرط دا دے چه مورث به کلاله وي - وروڼړه خویندے درے قسمه دي - اول اعیاني چه مور او پلار دواړو کښ شریک وي - دویم قسم علاتي چه پلار کښ شریک وي او میندے ئے جدا جدا وي رَدَ دے دواړو دَ میراث حصّے ئے دَ سورت په آخر آیت کښ ذکر کړیدي ) - دریم قسم اخیافي چه په مور کښ شریک وي او پلاران ئے جدا جدا وي دَ دوي ذکر ئے په دے جملو کښ کړیدے. او دَ دے متعلق ئے پنځه مسائل ذکر کړیدي -

سوال :- دَ دوي دَ میراث ذکر دَ زوجیت دَ میراث سره څه تعلق لري چه دَ هغے سره ئے ذکر کړل ؟

جواب :- هر کله چه یو زنانه دَ یو خاوند نه اولاد راوړے وي لیکن دَ هغه نه کونړه شي یا ورله طلاق ورکړي او دَ عدت تیریدلو نه روسته دَ بل خاوند سره نکاح او کړي او دَ هغه نه ئے اولاد پیدا شي نو دا روستني اولاد دَ مخکښ اولاد رَدَ دے بچي ) دَ پاره اخیافي رونړه خویندے دي - دا په سبب دَ دویم نکاح کولو دَ دوي دَ مور دا رشته جوړه شوه نو دَ دے وجے نه دَ میراث سببي دَ زوجیت سره یو ځاے ذکر کړل -

کلاله ، دَ دے په اصل ماده کښ اختلاف دے زمخشري وئیلي دي چه دا دَ کلال نه اخستے شویدے په معنیٰ دَ بے قوته کیدلو دَ سترے والي دَ وجے نه - او چا وئیلي دي چه دا دَ تکلل الشئ نه اخستلے شویدے په معنیٰ دَ احاطه کولو - او چا وئیلي دي چه دَ کل عنهٗ نه دے په معنیٰ دَ تباعد لرے شو) - او دا لفظ مذکر او مؤنث ، مفرد ، تثنیه او جمع ټولو دَ پاره یو شان استعمالیږي - او په شرعي معنیٰ کښ ئے ډیر اقوال دي - اول قول دَ علي او ابن مسعود رضي الله عنهما او دَ جمهورو اهل لغتو دے چه

مراد ترینه هغه میت (مړے) دے چه ځغه ولد او والد (ځوئے او پلار) نه وی - او قرطبی وئیلی دی چه په دے قول باندے اجماع ده - دویم د ابوبکر صدیق او عمر رضی الله عنهما نه نقل دے چه هغه میت چه والد ئے نه وی - قرطبی وئیلی دی چه دوی د دے قول نه رجوع کړیده - او دریم قول دا دے چه ولد ئے نه وی - د دے قول دلیل د دے سورت آخری آیت دے چه په هغے کښ فرما ئیلی دی - (اِنِ امْرُؤٌ هَلَكَ لَيْسَ لَهٗ وَلَدٌ) (۱۷۶) او نور اهل علم وائی چه په دغه آیت کښ لا والد له د قرینے نه معلومیږی - هغه په تفسیر د هغه آیت کښ ان شاء الله ذکر به کړیشی - په دے ټولو اقوالو باندے کلاله صفت د مړی دے - قطرب وئیلی دی چه کلاله ورثه ته وئیلے شی ما سیوا د مور او پلار ته او دا مناسب ده د معنیٰ د احاطے سره چه مخکښ ذکر شویده او په دے باندے حدیث د جابر رضی الله عنه دلالت کوی چه لا یَرِثُنِیْ اِلَّا کَلَالَةٌ - او نضر بن شمیل وئیلی دی چه کلاله مال موروث ته وئیلی شی - او چا وئیلی دی چه کلاله مطلق قرابت او وراثت ته وئیلی شی - لیکن د قرآن سره مناسب اول قول دے -

کَانَ ، فعل ناقص دے رجل اسم د هغے دے او یورث صفت دے د رجل او کلاله خبر دے یا یورث خبر دے او کلاله حال دے د ضمیر د یورث نه - صاحب اللباب او ابوحیان په دیکښ د اعراب نور توجیهات هم لیکلی دی -

اَوِ امْرَاَةٌ ، دا عطف دے په رجل باندے او کلاله ئے پټ خبر مراد دے -

وَلَهٗ اَخٌ اَوْ اُخْتٌ ، په دیکښ څلور مسائل دی - اول دا چه سړے کلاله (مونږوړے) وی او یو ورور ئے وارث وی - دویم دا چه ښځه کلاله وی او یو ورور ئے وارث وی - دریم

دا چه سړے کلاله وي او يو خور ئ وارثه وي - شلورم دا چه يو ښځه کلاله وي او يوه خور ئ وارثه وي - لَهٗ ، ضمير دَ مذکر رجل او امراءة ته په تاويل دَکل واحد سره يا په تاويل دَ ميت سره راجع دے - او مراد په أَخٌ او په أُخْتٌ سره اخيافي ورور خور دي. قرطبي وئيلي دي چه په دے باندے دَ اهل علمو اجماع ده - او دَ سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه په قراءت کښ مِنْ أُمٍّ لفظ دَ دے دليل دے - او ابن کثير او صاحب اللباب په دېکښ دَ ابوبکر رضي الله عنه اثر ذکر کړيدے -

فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ، يعني دَ ميت مال به شپږ حصے کړے شي نو شپږمه حصه به دے ورور يا خور له ورکړے شي او باقي به په عصباتو کښ تقسيم شي -

فَإِنْ كَانُوٓا أَكْثَرَ مِنْ ذَٰلِكَ فَهُمْ شُرَكَآءُ فِي الثُّلُثِ ، په دېکښ پنځمه مسئله ده - ذَٰلِكَ اشاره ده أَخٌ يا أُخْتٌ ته او دَ اکثر نه مراد دوه يا دَ هغې نه په زياته دي يعني دوه ورونړه يا دوه خويندے يا ورور او خور يا دَ دينه زيات وي - شُرَكَآءُ يعني دريمه حصه به دَ دوي په مينځ کښ پوره پوره تقسيميږي په دېکښ مذکر او مؤنث په حصو کښ يو شان دي ځکه چه دَ دوي دَ ميراث استحقاق په سبب دَ مور سره دے نو دَ مذکر فضيلت په مؤنث باندے نشته - او دَ ميراث په مسائلو کښ دا يو مقام دے چه نارينه او زنانه په حصه کښ برابر دي - دَ دے متعلق مزيد تفصيل قرطبي ذکر کړے دے هغې ته مراجعه اوکړئ -

مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصٰى بِهَآ أَوْ دَيْنٍ ، دَ دے تفسير مخکښ تير شويدے او دلته يُوْصٰى په صيغه دَ مجهول سره ذکر کړے شو ځکه چه وصيت کوونکے کله سړے وي او کله ښځه وي نو فاعل متعين نه دے دَ دے وجے نه ئے مجهول ذکر کړو -

غَيْرَ مُضَآرٍّ، دا په اصل کښې حال دے دَ فاعل نه لیکن دَ فاعل په ځائے مفعول قائم کړے شویدے نو دا فعل مجهول مستلزم دے فعل لره یعنې یوصی غیر مضار۔ او دَ دے ضَرَارٍ تعلق دَ وصیت او دَین (قرض) دواړو سره دے۔ او ضرار په وصیت کښې په مختلف طریقو سره وی لکه دَ ثلث نه زیات وصیت کول، دَ وارث دَ پاره وصیت کول، په دے نیت وصیت کول چه دَ وارثانو حصه کمه شي۔ او په دَین کښې هم ضرار په مختلف طریقو سره دے۔ لکه اقرار کول په قرض سره دَ چا دَ پاره چه دَ هغے ګواهان او لیکل نه وی یا اقرار کول چه فلانی باندے چه زما قرض وو هغه ما ته وصول شوے دے او دا قول ئے په دروغه سره وی یا یو څیز په کم قیمت سره خرڅول یا په ګران قیمت سره اخستل او دا په دے غرض کوی چه دَ وارثانو حصه کمه شي۔

وَصِيَّةً مِّنَ اللّٰهِ، دا دَ یوصیکم دَ پاره مفعول مطلق دے یا حال دے۔ او په دیکښې مقصد ډیر تاکید دے په ورکولو دَ دغه حصو دَ میراث کښې اهل دَ هغے ته۔

سوال:۔ مخکښې آیت کښې ئے فریضة ذکر کړیدے او دلته وصیة دے؟

جواب:۔ په لفظ دَ فریضة کښې زیات تاکید دے په نسبت دَ وصیة سره نو مخکښې آیت کښې دَ اولاد دَ میراث ذکر وو نو دَ هغے رعایت کول ډیر ضروره دی په نسبت دَ میراث دَ ازواج او دَ کلاله سره چه په دے آیت کښې ذکر دی۔

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَلِيْمٌ، عَلِيْمٌ دے په هغه چا باندے چه انصاف کوی په ورکولو دَ میراث او وصیت یا ظلم کوی په دیکښې۔ حَلِيْمٌ او صبرناک دے چه عذاب روستو کوی په طریقه دَ مهلت سره دَ ظلم کوونکو نه۔ په مخکښې آیت کښې حکیما ذکر وو چه په هغے کښې فرق دَ

تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَمَنْ

دا (حکمونه) پولے دَ الله تعالیٰ دی، او چاچه

يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ

تابعداري اوکړه دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دَهغه داخل به کړي الله تعالیٰ هغه

جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا

جنتونو ته چه بهیږي لاندے دَ هغې نه

الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ

ولے همیشه به وي په هغې کښ

وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۳﴾

او دا کامیابي لویه ده۔

دَ ناریته او زنانه اولاد وو او فرق دَیو او دَ ډیرو وو او فرق وو په حصو دَ مور او پلار کښ او نقصان مورته په سبب دَ درونړو او خوینړو وو۔
دا ټول احکام بناء دی په حکمت دَ الله تعالیٰ باندے او په هغې کښ دَ اعتراض کولو هیڅ ګنجائش نشته دے۔ او دلته ئے حلیم ذکر کړو اشاره ده چه دَ ښځو سره او دَ اخیافی وړنړو خوینړو سره اکثر خلق ظلم کوی نو دَ هغوی دَ پاره ئے تخویف ذکر کړو۔
۱۳:- په دے آیت کښ بشارت دے هغه چالره چه په تیر شوی احکامو باندے او خصوصًا په حکم دَ میراث باندے دَ امر دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم تابعداري کوی۔
تِلْكَ، دا اشاره ده ټولو ذکر شوو احکامو ته یا خاص احکامو دَ میراث ته۔
حُدُوْدُ اللّٰهِ، دَ دینه مراد احکام او شرائع دَ الله تعالیٰ دی۔

وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

اود چاچه نافرمانی اوکړه د الله تعالیٰ او د رسول د هغه

وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ يُدْخِلْهُ

او تیرشو د پولو د هغه نه داخل به کړی هغه لره

نَارًا خَالِدًا فِيْهَا وَلَهٗ

اور ته همیشه به وی په هغې کښې او دهٔ لره

عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۱۴﴾

عذاب دے شرموونکے۔

ع ۲/۴ ۱۳

حدود ورته د دے وجے نه وئیلی شی چه د دینه تجاوز کول یا په دیکښې کمے او زیاتے کول حرام دی۔

وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ، وَرَسُوْلَهٗ کښې اشاره دهٔ چه د میراث په احکاموکښې د قرآن کریم نه علاوه احادیث د نبی صلی الله علیه وسلم ته هم رجوع کیدیشی۔

ابن کثیر وئیلی دی چه اطاعت دلته دا دے چه د وارثانو په حصوکښې په حیلو او دهوکو سره زیاتے او کمے نه کوی۔

ملا:۔ په دے آیت کښې تخویف اخروی دے۔

وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ، ابن جریج او ابن جبیر وئیلی دی چه د دینه مراد ایمان نه راوړل دی یعنی انکار کول۔

وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ ، ابن کثیر وئیلی دی چه د دینه مراد دا دے چه د الله تعالیٰ د حکم سره ضد کوی او په تقسیم د الله تعالیٰ باندے رضا نه وی او دا کفر دے۔

يُدْخِلْهُ نَارًا خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ، د جنت والو په باره کښې خٰلِدِيْنَ جمع ذکر کړے دهٔ ځکه چه هغوی اهلِ

وَالّٰتِيْ يَاْتِيْنَ الْفَاحِشَةَ

او هغه زنا ته چه بد کاري اوکړي

مِنْ نِّسَآئِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا

دَ زنانو ستاسو نه، نو ګواهان اوغواړئ

عَلَيْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ ج فَاِنْ

په هغوی باندې څلور دَ تاریئو ستاسو نه، نو که

شَهِدُوْا فَاَمْسِكُوْهُنَّ فِي

ګواهي اوکړه دوی نو حصارې کړئ هغوی لره په

الْبُيُوْتِ حَتّٰى يَتَوَفّٰهُنَّ الْمَوْتُ

کورونو کښې ترد ې چه واخلي هغوی لره مرګ

اَوْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيْلًا ﴿۱۵﴾

یا به مقرر کړي الله تعالیٰ هغوی لره څه لار -

شفاعت دی په اذن دَ الله تعالیٰ سره نو دَ هغوی په
شفاعت سره به بیا نور هم ډیر کسان دَ هغوی سره
جنت ته داخلیږي - او جهنم والا به هر یو مستقل صفت
دَ خلود لري که بل څوک ورسره وي او که نه وي - دا
رنګ په صیغه دَ جمع کښې الفت او عظمت ته اشاره ده
او دَ مفرد په صیغه کښې وحشت او ذلت ته اشاره ده -
وَلَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ، هر کله چه په تعدی دَ حدود الله
سره دَ احکامو دَ الله تعالیٰ اهانت کیږي نو دَ هغه
اهانت کوونکی سزا هم په اهانت سره ده -
۱۵:- په دې آیت کښې تهم حکم ذکر کوي چه هغه
ازاله دَ فحش کارئ ده په بېت ولو دَ زنانو په کورونو
کښې او په ابتداء ودکولو سره او دا په اصل کښې احسان دے

دَ زناتو سره۔
ربط:- ربط دَ آیت دا دے چه هرکله مخکښ آیتونو کښ دَ زنانو سره احسان ذکر شو نو اوس په هغوی باندے دَ فحش کارئ په وخت کښ تغلیظ ذکر کوی او دا هم دَ هغوی سره یو قسم احسان دے۔ دا رنګ اشاره ده چه زنانو سره دَ الله تعالیٰ احسان کولو سبب نشی جوړیدلے چه په هغوی باندے قیام دَ حدود پریخودلے شی۔
وَالّٰتِیۡ یَاۡتِیۡنَ الۡفَاحِشَةَ، اَلّٰتِیۡ جمع ده دَ الّتی په معنیٰ کښ خو په لفظ کښ جمع نه ده۔ ځکه چه صیغے ئے دَ جمع دَ پاره وضع کړیدی لیکن حقیقتًا جمع نه ده۔
اَلۡفَاحِشَةَ قبیح او بد فعل او کار ته وئیلے شی او په عرف کښ ئے په زنا باندے اطلاق کیږی۔ او دلته هم په اجماع سره مراد زنا دے۔ او دیته فاحشه ځکه وئیلے شی چه هر عقل والا دا بد ګڼړی۔
مِنۡ نِّسَآئِکُمۡ، دا اشاره ده چه دَ دینه مؤمنانے ښځے مراد دی یعنی اضافت په اعتبار دَ دین سره مراد دے که نکاح ئے کړے وی او که نه وی کړے۔
فَاسۡتَشۡهِدُوۡا عَلَیۡهِنَّ اَرۡبَعَةً مِّنۡکُمۡ، مِنۡکُمۡ کښ دَ هغو اسلام مراد دے ځکه چه دَ غیر مسلم ګواهی کول په مسلمان باندے نه قبلیږی۔ او استشهاد، راغوختل دَ ګواهانو ته وئیلے شی او دا په هغه وخت کښ چه کله دا زنا کوونکی پخپله اقرار نه کوی۔ قرطبی وئیلی دی چه الله تعالیٰ دَ زنا په اثبات کښ دَ څلورو کسانو ګواهی کول شرط کړیده دَ پاره دَ سختئ کولو په مدعی باندے ردا دے دَ پاره چه په دروغه باندے دعویٰ او نکړی۔ او په مالونو کښ دَ دوه کسانو ګواهی شرط ده ځکه چه دَ نفس دَ عزت شان دَ مال نه ډیر اوچت او عزیز دے)۔ او دَ پاره دَ پردے اچولو په بندګانو باندے۔ قرطبی وئیلی دی چه دَ څلورو

کسانو گواهي په قرآن، تورات او انجيل دريواړو کتابونو کښې ذکر ده - په قرآن کښې په سورة نور آيت ۴ کښې او په ابوداؤد کښې واقعه دَ يهوديانو ذکر ده چه په هغې کښې وئيلي دي چه يهوديانو اقرار کړے وو چه زمونږ په تورات کښې هم دَ څلورو سړو گواهي ذکر ده - أَرْبَعَةً، دا دليل دے چه ديکښې دَ نارينو گواهي شرط ده. په باب دَ زنا کښې دَ ښځو گواهي قبوله نه ده - او وجه دَ دلالت دا ده چه دَ عربيت په قانون کښې ذکر دي چه په اسماء عدد کښې په تاء سره اسم عدد دَ مذکر دَ پاره ذکر وي او په غير دَ تاء نه دَ مؤنث دَ پاره وي - او په صحيح احاديثو سره ثابت ده چه دا څلور سړي (گواهان) به آزاد وي غلامان مريان به نه وي او عادلان به وي فاسقان يا مستور الحال به نه وي او دَ دوی شهادت به په طريقے دَ مشاهدے سره وي يعنې په گواهۍ کښې به وائي چه ما داسے حال ليدلے دے چه دَ سړي عورت (ذکر) دَ زنانه په عورت کښې داسے داخل وو لکه چه سلائي دَ رنجو په رنجو دانه کښې داخل وي -

فَإِن شَهِدُوا فَأَمْسِكُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ، جمهورو مفسرينو وئيلي دي چه هر کله څلور گواهان گواهي ورکړي نو دغه زانيه زنانه به په کور کښې بنده کړيشي تر دے چه مړه شي يا ورله الله تعالیٰ بله لار او گرځوي - قرطبي وئيلي دي چه په کورونو کښې بندول په ابتداء دَ اسلام کښې وو بيا روستو جيل (بندي خانه) جوړ شو نو معلومه شوه چه اوس به ئے په جيل کښې بند وي - ليکن پديکښې دَ علماؤ اختلاف دے چه دا په حد دَ زنا کښې داخل دے يا زورنه او بيره ورکول دي په حد قائمولو سره په روستو وخت کښې -

حَتَّىٰ يَتَوَفَّاهُنَّ الْمَوْتُ، سوال دا دے چه توفی موت ته

وتړلي شي نو دَ دے لفظ معنیٰ چه مړ کړی دوی لره مرګ
ځنګه صحیح کیږی ؟
نو جواب دا دے مخکښې تیر شوی دی توفی عام دے که په
مرګ سره وی او که په خوب سره وی او که پوره اخستل وی
نو دلته یې تخصیص اوکړو په فاعل سره یعنی چه واخلی دوی
لره مرګ ـ یا دلته مضاف پټ دے یعنی ملائکة الموت.
اَوْ یَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِیْلًا ، اَوْ دَ عطف دَپاره دے په یتوفاهن
باندے ـ یا اَوْ په معنیٰ دَ الا سره دے نو دَ دے نه روستو
په فعل منصوب وی په تقدیر دَ اَنْ سره ـ په حدیث
دَ ابوداؤد، مسلم او ترمذی کښې راغلی دی چه په نبی صلی
الله علیه وسلم باندے وحی نازل شوه نو هغه اوفرمائیل
چه الله تعالیٰ سبیل مقرر کړیدے چه ثیب (دَ واده خاوند)
دَپاره سل دورے او رجم (ویشتل) دے په کانړو سره
او دَ بکر (نا واده کړی) دَپاره سل دورے او دَ یو کال دَپاره
دَ ملک نه شړل دی ـ او دا حد دے دَپاره دَ زنا او سبیل
(لار) ده دَپاره دَ راوتلو دَ جیل او کور نه ـ
فائده :- په دے آیت کښې دوه اقوال دی ـ اول قول دَ
متقدمینو دے چه دا آیت منسوخ دے په آیت دَ سورة نور
سره او په دغه مذکور حدیث سره ځکه چه دَ متقدمینو
په نیز دَ نسخ معنیٰ عامه ده ـ شامل ده هغه حکم ته چه
واجب شی روستو دَ بل حکم نه که غایه وی او که نه وی ـ
دویم قول دَ متاخرینو دے چه دا منسوخ نه دے ځکه چه
نسخ په مطلق حکم کښې راځی او دلته مخکښې حکم کښې قید
لګولے شویدے دغائے په اَوْ یجعل الله لهن سبیلا یعنی
اول حکم دا وو چه روستو دَ ګواهۍ نه په دوی باندے
دوی بند کړئ لیکن انتظار اوکړی دَ بل حکم چه هغه
حد دے ـ او دا په دے مقام کښې صرف دَ اصطلاح فرق دے ـ
او هر چه حکم دَ حد دے په سورة نور او په دغه مذکور

وَالَّذٰنِ يَاْتِيٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَاۚ

اوهغه دوه کسان چه اوکړی بدکاری ستاسو نه نو زوروئ ورکړئ هغوی لره

فَاِنْ تَابَا وَاَصْلَحَا فَاَعْرِضُوْا

نو که دوی توبه اوکړه اونیک ئې کړو عمل نو ځئ واړوئ

عَنْهُمَاؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ تَوَّابًا

د هغوی (د دوړنی) نه یقیناً الله تعالی توبه قبلوونکے دے

رَّحِيْمًا ﴿۱۶﴾

رحم والا دے۔

حدیث کښ نو په هغې باندے اجماع ده۔ او روستو د راتللو د حد نه د دے آیت مقصد دا هم کیدیشی چه هر کله په زانیه باندے څلور ګواهان تیر شول لیکن قاضی په څه عذر سره حکم مؤخر کړیدے لکه تزکیه (صفائی) طلب کول د ګواهانو نه نو په زمانه د تاخیر د حکم کښ به دغه زانیه په قید کښ اوساتلے شی د دے د پاره چه چرته او نه تختی او هر کله چه قاضی د حد حکم اوکړی نو د اقامت د حد د پاره به د قید (جیل یا کور) نه راویستلے شی۔ نو آیت اوس هم معمول بها دے۔ اګرچه په اعتبار د نزول د حکم د حد سره په دې باندے د نسخ حکم په اتفاق سره شته۔

سلا:۔ دا آیت هم د مخکښ حکم تتمه ده۔

وَالَّذٰنِ يَاْتِيٰنِهَا مِنْكُمْ، په دیکښ اقوال دی۔ د ابن عباس رضی الله عنهما نه د مجاهد په روایت سره د دینه مراد دوه قسمونه د زناکارو سړو دی یو واده شوے او بل بے واده (محصن او غیر محصن) او هَا ضمیر فاحشه ته راجع دے مراد ترینه زنا ده۔ دویم قول

دَ سدی او قتادہ نہ روایت دے چہ دَ دینہ مراد زنا کار سړی او زنا کارہ ښځہ دہ پہ طریقہ دَ تغلیب دَ مذکر سرہ پہ مؤنث باندے او فاحشہ پہ معنیٰ دَ زنا دہ - او بناء پہ دواړو اقوالو سرہ دَ دواړو آیاتونو پہ میںځ کښں فرق پہ ډیرو وجوھو سرہ دے -

اولہ وجہ، دَ مجاھد نہ نقل دی چہ دا یتں ول خاص دی پہ زنا نہ پورے ځکہ چہ ھغہ پہ زنا کښں دَ دے وجے نہ واقع شویدہ چہ دَ کور نہ بھر وتلے وہ نو پہ بندولو سرہ مادہ دَ گناہ قطع شوہ - او ایذاء خاص دہ پہ سړی پورے ځکہ دے دَ خپل ضروریاتو دَ پارہ بھر وتلو تہ محتاج دے نو دَ دہ سزا ایذا ورکول دی -

دویمہ وجہ، چہ حبس (یتں ساتل) خاص دی پہ زنانو پورے او ایذاء عام دہ مذکر او مؤنث دواړو تہ شامل دہ

دریمہ وجہ، دَ سدی نہ نقل دی چہ پہ اول آیت کښں وادہ شوے ښځے (محصنات) مراد دی پہ قرینہ دَ نساءکم سرہ ځکہ چہ دا لفظ زیات مناسب دے دَ وادہ شوو سرہ - او پہ اضافت دَ کُمْ کښں اشارہ دہ خاوندانو تہ - او پہ دے آیت کښں بے وادہ مراد دی -

فَآذُوْهُمَا ، ایذاء ھغہ درد دے چہ سخت او شدید نہ وی کہ پہ فعل سرہ وی لکہ وھل ټکول بغیر دَ زخمی کولو نہ او کہ پہ قول سرہ وی لکہ زورتہ ورکول او ملامتہ کول وغیرہ لیکن دا ایذاء قید کولو او دورو وھلو تہ نہ دے شامل ځکہ چہ ھغہ مخکښں تیر شول - او آیت پہ باب دَ ایذاء کښں مجمل دے نو دا دَ حاکم رائے تہ سپارلے شوید ے لیکن پہ اتفاق دَ علماؤ سرہ دا ایذاء منسوخ دہ پہ سورہ نور او تیر شوی حدیث سرہ لیکن دا پہ ھغہ وخت کښں چہ ایذاء دَ حد پہ ځائے باندے قائم شی او پہ بلہ توجیہ ورسرہ چہ زوستو

ذکر کیږی نو ایذاء نه ده منسوخ - او په آیت کښ دریم قول د ابو مسلم نه نقل دے او هغه ئے مجاهد نه نسبت کړیدے چه د الّذان نه دوه مذکر دی چه هغوی یو بل سره بد فعلی اوکړی - او هاء ضمیر فاحشه (بدکاری) ته راجع دے لیکن د اول فاحشه نه مراد زنا دے او په ضمیر سره مراد بد فعلی د دوه مذکر ده د یو بل سره او ایذاء نه مراد سزا ده اگرچه په دغه سزا کښ د اهل علمو اختلاف دے - او آلوسی اولادَ دے قول د پاره دلیلونه ذکر کړیدی او بیا ئے د هغے جوابونه ذکر کړیدی او آخر کښ ئے وئیلی دی چه د ده قول صراحتًا فاسد نه دے لیکن د جمهورو مفسرینو نه خلاف دے.

فَاِنۡ تَابَا وَاَصۡلَحَا ، په دیکښ توبه کولو ته ترغیب دے یعنی که توبه اوکړی د هغه عمل د فاحشې نه په سبب د ایذاء سره.

فَاَعۡرِضُوۡا عَنۡهُمَا ، اعراض دا دے چه نوره ایذاء ورله مه ورکوئ ځکه چه د ایذاء مقصد توبه کول وو او هغه مقصد حاصل شو. دا دلیل دے چه ایذا د حد نه علاوه حکم دے ځکه چه حد په توبے سره نه ساقطیږی. نو د دواړو آیاتونو حاصل دا دے چه د ګواهئ نه روستوئے څه مناسب وخت پورے په قید کښ اوساتئ او بیا د حد قائمولو د پاره ئے بهر راوباسئ نو زورته او ملامتیا ورله ورکړئ بیا وربانذے حد قائم کړئ - لیکن هر کله چه توبه اوباسی نو ایذاء ورکول پریږدئ او حد وربانذے قائم کړئ - او داسے ایذاء مخکښ د حد (رجم) نه صحابه کرامو د ماعز سره کړیوه لیکن بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ده داسے توبه ویستلے ده چه که ټولے مدینے والو ته شامل شی نو ټولو ته رسیږی نو بیا صحابه کرامو ایذاء ورکول

إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللَّهِ
بیقینا قبلول دَ توبے دَ الله تعالیٰ پہ ینز

لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوٓءَ
هغه چا لره دی چه عمل کوی بد

بِجَهَالَةٍ ثُمَّ يَتُوبُونَ مِن
په ناپوهئ سره بیا توبه اوباسی دَ

قَرِيبٍ فَأُولَٰٓئِكَ يَتُوبُ اللَّهُ
نیزدے نه نو دغه کسان توبه قبلوی الله تعالیٰ

عَلَيْهِمْ ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا
دَ دوی ، او الله تعالیٰ پوهه دے

حَكِيمًا ﴿١٧﴾
حکمتونو والا دے۔

پریخودله اوحد ئے وربانډے قائم کړو۔ اوکه دَ ایذاء نه مراد حبس دَ بد فعلئ دَ دوه مذکر شی دَ یوبل سره بناء په قول دَ ابومسلم نو هغه خو په توبه سره نه ساقطیږی نو په هغه قول کښ یو وجه دَ فساد دا هم ده۔ اوکه دَ اعراض نه مراد صرف اعراض کول وی دَ زورلے او ملامته کولونه نو بیا توجیه صحیح کیږی۔
إِنَّ اللَّهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ، دا علت دے دَ اعراض دَ پاره دے :- روستو دَ ذکر کولو دَ توبے دَ بدکارئ نه اوس ترغیب ذکر کوی توبے کولو ته دَ ټولو گناهونو نه سره دَ ذکر دَ شرط دَ قبولیت دَ هغے نه۔
إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللَّهِ ، ابوحیان وئیلی دی چه دا مبتداء او خبر دی او په دواړو کښ تقدیر دے یعنی إِنَّمَا قَبُولُ

وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِيْنَ

او نشته قبلول دَ توبې هغه کسانو لره

يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ ۚ حَتّٰىٓ اِذَا

چه عملونه کوی دَ بدئ ترهغې چه کله

حَضَرَ اَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ

تيز دے شي يو دَ دوی ته مرګ وائي

اِنِّيْ تُبْتُ الْئٰنَ وَلَا الَّذِيْنَ

يقينًا ما توبه اوکړه اوس او نه ده (توبه) دَهغه کسانو

يَمُوْتُوْنَ وَهُمْ كُفَّارٌ ؕ

چه مړه کيږی په داسے حال کښ چه دوی کافر وی،

التَّوْبَةُ مُرَتَّبٌ عَلٰى فَضْلِ اللّٰهِ -

سوال :- على دلالت کوی په وجوب باندے او په الله تعالىٰ باندے هيڅ څيز واجب نشی کيدے ؟

جواب :- ديته وجوب تفضلی وئيلے شی يعنی الله تعالىٰ دَ قبلولو وعده کړيده او الله تعالىٰ خپله وعده ضرور پوره کوی نو داسے شوه لکه چه په الله تعالىٰ باندے واجب وی - يا على په معنیٰ دَ عند دے په تيز دَ حسن بصری رحمه الله سره - لِلَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ ، دا متعلق دے په مُرتب پټ پورے مخکښ دَ على الله نه - يا التوبه مبتداء ده او على الله صفت دَ هغې دے او للذين يعملون خبر دے - السوء عام دے که ګناه صغيره وی او که کبيره وی اګر چه کفر او شرک وی - دَ جهالت نه مراد سفاهت دے په کولو دَ ګناه چه مناسب نه دے دَ عاقل دَ شان سره - دا په معنیٰ دَ عدم علم سره نه دے يعنی هر مرتکب دَ ګناه جاهل دے په انجام دَ دغه ګناه باندے - او دا معنیٰ دَ جهالت په سورة

أُولَٰئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا

| عذاب | تیار کړیدي موږ دوی لره | دغه کسان |
|---|---|---|

أَلِيمًا ⑱

| دردناک - |
|---|

یوسف ۳۳، ۸۹ کښ او سورة هود ۴۶ او سوره بقره ۶۷ کښ ده - او دا معنی عمدًا او خطأً سره (دواړو ته) شامل ده - او بیهقی دَ مجاهد نه روایت نقل کړیدے چه هر ګنهګار جاهل دے -

ثُمَّ يَتُوبُونَ مِنْ قَرِيبٍ ، مِنْ ، دغائیے دَ ابتداء دَ پاره دَ یا دَ تبعیض دَ پاره دے او دَ قریب دَ پاره موصوف پټ دے یعنی زَمَانٍ قَرِيبٍ - او په قریب کښ ډیر اقوال دی - سدی او قتاده وئیلی دی چه څو پورے په روغ صحت کښ وی او توبه اوباسی - دَ ابن عباس رضی الله عنهما روایت دے چه څه وخت نظر اوکړی ملك الموت ته - ضحاک وئیلی دی چه دَ مرګ نه مخکښ ته قریب وئیلے شی - حسن بصری وئیلی دی چه څو پورے چه غرغرے ته نه وی رسیدلے - عکرمه وئیلی دی چه ټوله دنیا قریب ده - او دا ټول تعبیرات یو بل ته نیزدے دی - او ابن کثیر په دیکښ ډیر احادیث (متصله مرفوعه او مرسله) ذکر کړی دی - لفظ دَ ثم هم دلالت کوی په وسعت دَ رحمت دَ الله تعالی باندے ځکه چه دا دلالت کوی په تراخی باندے -

فَأُولَٰئِكَ يَتُوبُ اللَّهُ عَلَيْهِمْ ، دلته مراد قبلول دَ توبے دی أُولَٰئِكَ دلالت کوی په ما قبل صفت باندے (چه توبه قریبه ده) -

وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ، عالم دے په ګناه دَ بنده او په اخلاص دَ توبے دَ هغه او حکیم دے چه تون دَ معصیت

(گناه کولو) ئې ورکړیدے او بیا ئې توفیق ورکړیدے په دیکښ ځان له حکمتونه دی۔
ف۱۸۔ په دے آیت کښ دَ هغه توبے ذکر کوی چه په هغے کښ تیر شوے شرط نه وی موجود نو هغه به قبوله نه وی۔ او هغه دوه قسمه ده۔
اول قسم دا دے چه وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّىٰ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الْآنَ، او مراد نفیٔ قبولیت دَ هغے دے یعنی اوس دا توبه قبوله نه ده۔ السَّيِّئَاتِ، جمع په اعتبار دَ تکرار او دَ کثرت دَ گناهونو سره ده۔ ټول اقسام دَ گناهونو نه دی مراد۔ حضرت الموت، نه مراد وخت دَ یقین دَ مرگ دے یعنی چه دَ ژوند نه نا امیده شی نو دغه وخت توبه قبوله نه ده ځکه چه دا دَ اضطرار حال دے۔ قَالَ، تاب ئې نه دے وئیلی اشارهٔ ده چه دا توبه په اصل کښ دَ زړه دَ اخلاص او یقین نه نه ده صادره شوے صرف قولی توبه ده۔ الْآنَ، نه حاضر وخت مراد دے یعنی دَ دے نه وړاندے ئې توبے کولو ته هیڅ توجه نه ده کړے۔ او دا آیت کافرانو منافقانو او فاسقانو مؤمنانو ته شامل دے او دَ دے پشان په سورهٔ یونس ف۹، س۹ (توبه دَ فرعون) او سورهٔ مؤمنون س۹۹ او سورهٔ مؤمن س۸۵ او سورهٔ انعام س۱۵۸ او سورهٔ منافقون ف۱، س۱۱ هم دی۔
او دویم قسم وَلَا الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ، سوال دا راځی چه دَ دوی دَ پاره خو بالکل توبه نشته نو دَ دوی ذکر ئې ولے اوکړو؟
نو جواب دا دے چه دا مبالغه ده دَ اول قسم توبے په نه قبلیدلو کښ ځکه چه دَ هغه توبه پشان دَ نه توبے ده لکه مرگ په حالت دَ کفر کښ۔
دویم جواب دا دے چه روستو دَ مرگ نه یا په حال دَ

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَحِلُّ

اے ایمان والو نه دی حلال

لَكُمْ اَنْ تَرِثُوا النِّسَآءَ كَرْهًا ط

تاسو لره چه وارثان شئ دَ زنانو په زور،

وَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ لِتَذْهَبُوْا بِبَعْضِ

او مه تنګوئ دوی لره دَ پاره دَ دے چه واخلئ بعضے

مَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيْنَ

هغه مال (مهر) چه درکړی دے تاسو دوی له مګر که راتلل اوکړی

بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ج وَعَاشِرُوْهُنَّ

په بدکارئ ښکاره ، او ژوند کوئ دَ دوی سره

بِالْمَعْرُوْفِ ج فَاِنْ كَرِهْتُمُوْهُنَّ

په ښه طریقه او که بد ګڼړئ تاسو دوی

فَعَسٰٓى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْئًا

نو کیدیشی چه بد ګڼړئ تاسو یو شے

مرګ کښ چه دوی دنیا ته واپسی غواړی او دَ نیک عمل تمنا او ارمان کوی نو دغه پشان دَ توبے دروستو دَ مرګ نه چه هغه قبوله نه ده لکه په سورة انعام ۲۷، فاطر ۳۷ او سورة السجده ۱۲ کښ دی۔ اُولٰٓئِكَ اشاره ده دواړو فریقو ته۔

اُولٰٓئِكَ اَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا، سوال دا دے چه دا خو دلیل دے چه په فاسق مؤمن باندے عذاب واجب دے او دا مسلك دَ معتزلو دے؟

نو جواب دا دے چه تیاری دَ عذاب مستلزم نه ده وقوع

# وَيَجْعَلَ اللّٰهُ فِيْهِ خَيْرًا كَثِيْرًا ⑲

او گرځولے وی الله تعالیٰ په هغے کښې فائدے ډیرے۔

او وجوب دَ هغے لره۔

بل جواب دا چه اولئِك اشاره صرف کافرانو ته۔

سوال:۔ دا رسم حکم دے په رد دَ ظلم کښې په هغه زنانه چه کنډه شی او وارثان ئے بیا په زور په نکاح سره اخلی یا دَ هغے مال غصب کوی۔

ربط:۔ دَ مخکښې آیت سره دا دے چه مخکښې منع وه دَ ظلمونو دَ جاهلیت ته په باره دَ یتیمانو او دَ میراث دَ ښځو کښې نو اوس منع کوی دَ ظلم او رسم دَ جاهلیت ته په باره دَ نکاح دَ کنډو زنانو کښې۔ او په دیکښې دوه اقوال دی اول قول دا دے چه دا خطاب دے اولیاؤ (وارثانو) دَ مړی ته او په دیکښې رد دے په طریقه دَ جاهلیت باندے په روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما سره (چه امام بخاری ذکر کړیدے) وائی چه هر کله یو سړے به مړ شو او دَ هغه ښځه به پاتے شوه نو دَ هغه مړی ورثه به دَ هغه ښځے حقدار گنړلے کیدل که دَ چا به خوښه وه نو په نکاح سره به ئے بخپله واخستله او کنی بل چاله به ئے په نکاح سره ورکړه (بغیر دَ رضا دَ هغے کنډے نه) او کله به ئے دَ نکاح نه بالکل منع کوله۔ او په بل روایت کښې دی چه دَ یو سړی دَ مرګ نه روستو به دَ هغه یو وارث راغے او خپله جامه (څادر وغیره) به ئے په هغه کنډه باندے واچوله او وئیل به ئے چه څرنګ زه دَ ده دَ مال وارث یم نو دا شان دَ ده دَ ښځے هم زه وارث یم۔ او دویم قول دا دے چه دا خطاب خاوندانو ته چه ښځه (منکوحه) به ئے خوښه نه وه خو هغه ښځه به ئے مالداره وه نو ده به هغے له طلاق نه ورکوو او نه به ئے دَ هغے حق ادا کولو تر دے چه هغه

په مړه شوه نو دَ هغې مال په ټې په میراث سره واخستلو۔
يَآ أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَرِثُوا النِّسَاءَ، بناء په اول قول بانده دا مفعول اول دے او نساء موروثات دی۔او بناء په دویم قول دا مفعول ثانی دے او مفعول اول پټ دے یعنی تَرِثُوا الْمَالَ مِنَ النِّسَاءِ۔
كَرْهًا، دا حال دے دَ النساء نه په معنیٰ د کارهات یا مکرهات سره۔ كَرْهَ او كُرْهَ په یو معنیٰ سره دی لکه ضَعْفٌ او ضُعْفٌ۔ یا اول په معنیٰ دَ کراهیت دے او دویم په معنیٰ د اکراه دے او دا قید احترازی نه دے بلکه دَ زیاتے مبالغې دَ پاره دے ځکه چه ښځه په مال دَ میراث کښ راوستل تاروا دی که هغه رضا وی او که نه وی رضا۔
وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ، عضل په اصل کښ تنګولو او بندولو ته دَ یو کار نه ویلے شی۔ نو بناء په اول قول سره دَ دینه مراد منع کول دی دَ نکاح نه۔ او بناء په دویم قول سره دَ دینه مراد صرف تنګول دَ ښځے دی په ژوند تیرولو کښ دَ دے دَ پاره چه خلع اوکړی او مال ورکړی خاوند ته۔
لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ، بناء په اول قول دَ دینه مراد مال دَ ښځے دے چه هغې ته میلاؤ شوید ے په میراث سره۔ او بناء په دویم قول هغه مهر دے چه خاوند ورکړے دے۔ او په لفظ د اذهاب کښ ډیر تقبیح ده په نسبت دَ لفظ اخذ سره۔
إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ، فاحشه عامه ده زنا او بد زبانی او بد اخلاقی کول۔ نو بناء په اول قول سره چه اولیاؤ ته خطاب شی نو دا استثناء منقطع ده او مبتدا ده خبر یې پټ دے یعنی لیکن په وخت دَ کولو دَ فاحشه کښ لازم دے په تاسو بانده تادیب ورکول په خپله یا قاضی ته پیش کول چه موجب دَ حد موجود شی او بناء په دویم قول چه خطاب وی خاوند انو ته نو دا استثناء

متصله ده دَ تَذۡهَبُوۡا بِبَعۡضِ مَآ اٰتَيۡتُمُوۡهُنَّ نه -يعنى هر كله چه دَ دوى نه فاحشه بشكاره شى نو خاوند له جائز دى چه دَ هغې نه مهر واپس واخلى او خلع ورسره اوكړى لكه چه په سورة بقره ۲۲۹ كښې ذكر شويدى-

وَعَاشِرُوۡهُنَّ بِالۡمَعۡرُوۡفِ، بنا په اول قول دا خطاب دے اولياؤ ته او دَ مَعۡرُوۡفِ نه مراد دَكره او ظلم نه ځان بچ كول دى-
او بناء په دويم قول خطاب دے خاوندانو ته او معروف نه مراد دَ هغې شرعى حقوق ادا كول دى په نفقه او لباس او شپه تيرولو كښې - او قرطبى ليكلى دى چه خادم ته محتاجه وى نو هغې له خادم وركول هم پكار او لازم دى -
او معروف دا دے چه هغې ته كنځلې نه كوى، ډيروهل تكول نه كوى او بې زبانى دے ورسره نه كوى (آلوسى)-

فَاِنۡ كَرِهۡتُمُوۡهُنَّ ، دَ دے جزاء پټه ده يعنى صبر اوكړئ په هغوى باندے سره دَ كراهيت نه او دلته دَ دينه مراد كراهيت طبيعه او بوج كيدل دَ هغوى دى اگرچه دَ هغوى دَ طرف نه نقصان نه وى موجود يا لږ موجود وى (بغير دَ فاحشے نه) او دا خطاب اولياؤ او خاوندانو دواړو ته صحيح دے -ليكن غوره دا ده چه دَ عَاشِرُوهُنَّ نه دا خطابات په خاوندانو پورے خاص شى-

فَعَسٰۤى اَنۡ تَكۡرَهُوۡا شَيۡـًٔـا وَّيَجۡعَلَ اللّٰهُ فِيۡهِ خَيۡرًا كَثِيۡرًا، دا دَ جزاء مقدر دَپاره علت دے دلته مراد دا دے چه په دغه ښځه كښې كه يو عيب وى ليكن كيديشى چه نورے ډيرے فائدے پكښې وى نو دغه نورو فائدو دَ وجے نه په يو عيب باندے صبر كوئ - او دا جمله يئے په طريقه دَ يو قاعدے سره ذكر كړيده چه دا سے ډير څيزونه او كارونه شته دے چه په هغې په ظاهر كښې څه تكليف بدنى يا مالى وى ليكن شرعى منافع پكښې ډير وى نو هغه پريښودل نه دى پكار- او دا دَ سورت بقره آيت ۲۱۶ پشان دے۔

وَإِنْ أَرَدْتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ
اوکه غواړئ تاسو بدلول د یو ښځې
مَّكَانَ زَوْجٍ ۙ وَّآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ
په ځائے د بلے ښځې، او ورکړے وی تاسو یوې دویته
قِنطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا ۚ
لویه خزانه (مهر) نو مه اخلئ د هغوی نه هیڅ څیز
أَتَأْخُذُونَهُ بُهْتَانًا وَّإِثْمًا
آیا اخلئ تاسو دغے لره په نامه لګوونکی او ګناه کوونکی
مُّبِينًا ۝
ښکاره۔

۱۹:۔ دا خاوند انو ته خطاب دے او مقابل دے کإِلَّا أَنْ يَأْتِينَ۔ یعنی د فاحشې د وجے نه د دوی نه تاسو مهر واپس اخستلئ شئ او که فاحشه نه وی. هسے د دے ښځے بدلول غواړئ نو بیا تر ینه مهر واپس نشی اخستلے۔ یا دا مقابل دے د عاشروهن سره۔ یعنی اول خو ضروری دا ده چه د ښځے سره په ښه طریقه سره ژوند تیر کړېشی او که داسے نه وی. بلکه د هغے بدلول غواړی نو مهر تر ینه واپس نشی اخستلے۔

وَإِنْ أَرَدْتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ، هر کله أَرَدْتُّمْ جمع ده نو د هغے په قرینے سره زَوْجٍ هم په معنیٰ د ازواج دے او د جمع سره د جمع مقابله تقسیم د احادو غواړی یعنی هر یو شخص چه یوه ښځه پریږدی او بله ښځه په نکاح سره اخستل غواړی۔ او د دے شرط مفهوم مخالف معتبر نه دے یعنی بغیر د ارادے د استبدال نه هم د مخکښ ښځے نه مهر واپس اخستل نه دی

جائز - لیکن دا شرط ئے دَ دوه وجو نه ذکر کړو - اوله وجه داچه انسان دَ بیل نکاح په وخت کښ مال ته محتاج وی نو دے وائی چه مخکښ نشئ نه په مال واخلم نو دویم واده به پرے اوکړم - دویمه وجه داچه دا دَ جاهلیت رسم وو نو دا دَ هغے تردید مقصد دے -

وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنطَارًا، دَ قنطار تفسیر په سورة آلعمران ۱۴ کښ تیر شوے دے - او دا آیت دلیل دے چه ډیر مهر ورکول جائز دی -

سوال :- حدیث دَ عمر رضی الله عنه چه ابن کثیر او ابن جریر په مختلف سندونو سره ذکر کړیدے مضمون ئے دا دے چه هغه منع اوکړه چه مغالات مه کوئ په مهرونو کښ که چرے دا عزت وے په دنیا کښ او تقوی وے نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم حقدار وو په دے باندے لیکن هغه خپلو بیبیانو او لونړو له دَ دولس اوقیو رسپینو زرو نه زیات مهر نه دے مقرر کړے او بل روایت کښ دَ څلور سوو درهمو ذکر دے - نو یوے زنانه په عمر رضی الله عنه رد اوکړو او دا آیت ئے ورته اولوستلو نو هغه اوفرمائیل اللّٰهُمَّ غُفْرًا كُلُّ النَّاسِ أَفْقَهُ مِنْ عُمَرَ - نو دا حدیث خو دَ دے آیت خلاف راځی - او شیعه گان نو دَ عمر رضی الله عنه په نقصان دَ علم او په عدم اهلیت دَ خلافت باندے دا دلیل پیش کړے دے ؟

جواب :- جواب په ډیرو وجوهو سره دے - اوله وجه، داچه مغالات دَ مهر دَ عزت سبب گنړل او په هغے کښ په یو بل فخر اولوئ کول منع دی او هسے زیاتوالے دَ مهر منع نه دے - دویمه وجه، زیاتوالے دَ مهر صرف جمله خبریه ذکر ده په طریقه دَ شرط سره نو دا دَ مغالات دَ جواز دَ پاره مستلزم نه ده - دریمه وجه، زیاتوالے دَ مهر صرف جائز او رخصت دے او کم والے دَ مهر

وَكَيْفَ تَأْخُذُوْنَهٗ وَقَدْ اَفْضٰى

| او څنګه | اخلئ تاسو دا | او رسیدلی کړی |
|---|---|---|

بَعْضُكُمْ اِلٰى بَعْضٍ وَّاَخَذْنَ

| بعضو ستاسو | بعضو ته | او اخستے دی (د دے ښځو) دوی |
|---|---|---|

مِنْكُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ﴿۲۱﴾

| ستاسو نه | لوظ | پوخ |
|---|---|---|

اولی او عزیمت دے - او هرچه د عمر رضی الله عنه هغه زنانه ته جواب نه ورکول وو تو هغه د تواضع او کسر نفسئ د وجے نه وو د کتاب الله په مخکښ او ترغیب ورکول وو نور امت ته په فهم د کتاب الله کښ. د دے نور تفصیل آلوسی په روح المعانی کښ کړیں دے.

فَلَا تَاْخُذُوْا مِنْهُ شَيْئًا، مِنْهُ ضمیر قنطار ته راجع دے. شَيْئًا عام دے لږ او ډیر دواړو ته شامل دے.

اَتَاْخُذُوْنَهٗ بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا، اول نهی ذکر شوه نو اوس زجر ذکر کوی په دغه عمل یا ندے. بُهْتَانًا حال دے د فاعل نه یعنی بهتان تړونکی او ښکاره ګناه کوونکی او تمیز دے د علت د پاره - حاصل دا دے چه د جاهلیت والو عادت دا وو چه یوے ښځے ته به ئے د طلاق قولو نیت وو نو په هغے باندے به ئے د بد کارئ دروغ جوړ کړل دے د پاره چه د هغے نه مهر واپس واخلی نو د دے وجے نه دیته ئے بهتان او وئیلو - دا رنګ د ښځے نه مهر واپس اخستل دلالت کوی چه د دغه شخص په تیز مهر قرض نه دے نو د قرض نه انکار کول ښکاره ګناه او ظلم دے.

ﷺ: - وَكَيْفَ تَاْخُذُوْنَهٗ وَقَدْ اَفْضٰى بَعْضُكُمْ اِلٰى بَعْضٍ، په دے آیت کښ هم رد دے په نورو دوه طریقو سره.

اوله طریقه دا ده چه موجب (سبب) د مهر موجود شوے دے

وَلَا تَنْكِحُوْا مَا نَكَحَ اٰبَآؤُكُمْ

او نکاح مه کوئ د هغه ښځو سره چه نکاح ورسره کړې وي پلارانو ستاسو

مِّنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ط

د زنانو نه مګر هغه چه مخکښ تیر شویدی

اِنَّهٗ كَانَ فَاحِشَةً وَّ مَقْتًا ط

یقیناً دا دے بښکاره ګناه او سبب د غضب د الله دے

وَسَآءَ سَبِيْلًا ﴿۲۲﴾

او بده لاره ده -

چه افضاء رجماع کول) ده او هغه ښځو ښکے د مهر ده - دویمه طریقه ، دا د لوظ کولو نه مخالفت کول دی - کیف استفهام انکاری دے سره د تعجیب نه - افضیٰ ، دا کنایه ده د جماع کولو نه - او خلوتِ صحیحه کولو کښ د اهل علمو اختلاف دے چه افضاء هغے ته شامل ده او که نه ردَ دے تفصیل امام رازی ، قرطبی ، آلوسی او صاحب اللباب کړیدے. وَاَخَذْنَ مِنْكُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ، د دینه مراد نکاح شرعی دے چه د ګواهانو په مخکښ اوشی او اعلان ئے اوکړیشی.

س ۲۲ :- دا یوولسم حکم دے په رد د ظلم د جاهلیت کښ چه هغه نکاح کول د پلار د ښځے رمیرے مور) سره - د ابن عباس رضی الله عنهما او جمهورو مفسرینو نه روایت دے چه جاهلیت والو به د خپلو پلارانو د ښځو رناسکه میندو) سره نکاح کوله کله چه به هغوی طلاقه کړه یا به ترینه خاوند مړ شو - نو الله تعالیٰ د هغوی په رد کښ دا نازل کړو چه - وَلَا تَنْكِحُوْا مَا نَكَحَ اٰبَآؤُكُمْ ، دلته په لفظ د مَا کښ دوه وجے دی - اوله وجه ، دا چه ما موصوله دے او روستو مِنَ النِّسَآءِ ، د دے بیان دے نو معنیٰ دا ده چه

دَ هغه ښځو سره نکاح مه کوئ چه ستاسو پلارانو ورسره نکاح کړے وی - دویمه وجه داچه مامصدریه دے او من النساء په لاتنکحوا پورے متعلق دے نو معنیٰ دا ده چه دَ ښځو سره نکاح مه کوئ په مثال دَ جاهلانو پلارانو لکه نکاح دَ شغار وغیره - دا قول ابن جریر غوره کړیدے لیکن اوله وجه دَ جمهورو مفسرینو قول دے او غوره ده (قرطبی)- او دلته دَ نکاح په معنیٰ کښ درے اقوال دی - اول دا په معنیٰ دَ نکاح دے - دویم دا په معنیٰ دَ جماع (زنا) سره دے - دریم داچه داعام دے نکاح او جماع دواړو ته - نو په دویمه او دریمه معنیٰ سره معلومه شوه چه هغه زنانه چه یو سړی ورسره زنا کړے وی نو دَ دے سړی (زانی) دَ ځوے دَ دغسے ښځے سره نکاح حرام دے - دا قول دَ امام ابوحنیفه او امام احمد رحمه الله دے - او په اوله معنیٰ سره حکم مزنیے دَ دغه سړے ته نه دے شامل نو دَ هغے زنانه نکاح دَ دغه زانی سړی دَ ځوے سره جائز دے - دا قول دَ امام شافعی رحمه الله او دَ نورو اهل علمو دے - او پوره تفصیل په دیکښ صاحب اللباب ذکر کړیدے.

إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ، سَلَفَ په معنیٰ دَ مخکښ تیر شوو او وړکړے شوو دے - سلم ته هم سلف ځکه وئیلے شی چه په هغے عقد کښ ثمن (قیمت) بیع مخکښ ادا کړی او مطلق قرض ته هم سلف وئیلی شی - هغه خلق چه مخکښ زمانه کښ تیر شویدی هغوی ته هم سلف وئیلے شی - او دَ اهل شرع په اصطلاح کښ دَ دے مصداق صحابه کرام او تابعین دی او دریته سلف صالحین وئیلی شی - دلته دَ سلف نه مراد نکاح دَ ځوے ده دَ پلار دَ ښځے سره چه دَ دے حکم دَ نازلیدلو نه مخکښ کړے شوے وی -

سوال :- لا تنکحو فعل مستقبل دے او ما سلف فعل ماضی ده نو دا استثناء څرنګ صحیح کیږی؟

جواب:۔ دا استثناء منقطع ده معنیٰ دا چه لیکن هغه نکاح چه دَ دے حکم دَ نزول نه مخکښ شوے ده نو هغه پر یږدئ او دَ هغې ګناه نشته یا الا په معنی دَ بعد سره دے لکه په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ لا یذوقون فیها الموت الا الموتة الاولی۔ یا الا په معنیٰ دَ لا دے لکه په دے قول کښ وما کان لمؤمن ان یقتل مؤمنًا الاخطاءً نور توجیهات هم مفسرینو ذکر کړیدی۔

اِنَّهٗ کَانَ فَاحِشَةً، یعنی په قباحت او بدئ کښ دَ اندازے نه بهر شوے عمل دے چه ټولو عقل والو ته ید بنکاره کیږي۔ او دا دَ دے وجے نه چه ناسکه (میره) مورهم پشان دَ خپلے مور ده نو دا ځکه ډیر بد کار او افحش جرم دے۔

وَمَقْتًا، مقت، هغه بغض او کینے ته وئیلے شي چه ورسره سپکوالے هم وي۔ او دَ الله تعالیٰ مقت په بنده باندے مستلزم دے ډیرے شرمندګئ او خسران لره۔ او دَ عربو په اصطلاح کښ دَ میرے مور سره نکاح ته نکاح مقت وئیلے شو او داسے شخص ته به مقیت وئیلے کیدلو او دَ هغوی نه به چه ولد پیدا شو هغه ته به مقتي وئیلے کیدو۔ او دغه شخص (نکاح کوونکی) ته ضیزن وئیلے شي۔

وَسَآءَ سَبِیْلًا، دَ بد عمل دَ قباحت دَ پاره درے مرتبے دي۔ اوله مرتبه قباحت عقلیه دے نو فاحشه لفظ کښ دیته اشاره ده۔ دویم مرتبه قباحت شرعیه دے نو مقتًا کښ هغے ته اشاره ده او دریمه مرتبه قباحت دے دَ عادت په اعتبار سره نو هغے ته په ساء سبیلا سره اشاره ده۔ نو په دیکښ اشاره ده چه دا نکاح په ټولو قباحاتو (بدو) کښ اقبح (ډیر بد) نکاح دے۔

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهٰتُكُمْ

حرام کړے شوی دی په تاسو (نکاح) د میندو ستاسو

وَبَنٰتُكُمْ وَأَخَوٰتُكُمْ وَعَمّٰتُكُمْ

او لوڼړو ستاسو او خویندو ستاسو او ترورياڼو ستاسو

وَخٰلٰتُكُمْ وَبَنٰتُ الْأَخِ

او ماسي‌گانو ستاسو او د وریرے

وَبَنٰتُ الْأُخْتِ وَأُمَّهٰتُكُمُ

او خوریځے ستاسو او میندے ستاسو

الّٰتِيٓ أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوٰتُكُمْ

هغه چه یئ درکړے وی تاسو ته او خویندے ستاسو

مِّنَ الرَّضَاعَةِ وَأُمَّهٰتُ

د پیو ورکولو د وجے نه او میندے

نِسَآئِكُمْ وَرَبَآئِبُكُمُ الّٰتِي

د ښځو ستاسو (خواښے) او پرکتۍ ستاسو هغه چه

فِي حُجُورِكُمْ مِّنْ نِّسَآئِكُمُ

په پالنه ستاسو کښ دی د ښځو ستاسو نه

الّٰتِي دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَإِنْ لَّمْ

هغه چه یو ځائے شوی یئ تاسو د هغوی سره نو که نه

تَكُونُوا دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ

یئ یو ځائے شوی د هغوی سره نو نشته گناه

عَلَيْكُمْ وَحَلَآئِلُ اَبْنَآئِكُمُ

په تاسو پاندے او ښځے د ځامنو ستاسو (اینګور یانے)

الَّذِيْنَ مِنْ اَصْلَابِكُمْ

او هغه ځامن چه پیدا دی ستاسو د شاګانو نه

وَاَنْ تَجْمَعُوْا بَيْنَ الْاُخْتَيْنِ

او جمع کول د دوو خویندو

اِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ

مګر هغه چه مخکښ تیر شو یدای یقیناً الله تعالیٰ

كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۲۳﴾

دے بخنه کوونکے رحم کوونکے۔

۲۳ ۔ په دیکښ دولسم حکم ذکر کوی چه په هغے کښ د محرماتو د نکاح تفصیلی ذکر دے - او رد دے په مظالمو د جاهلیت باندے چه هغوی په د دینه بعضے قسمونه جائز ګنړل لکه روستو الا ما قد سلف کښ هغے ته اشاره ده - او په دے آیت کښ د هغه زنانو ذکر دے چه د هغوی سره نکاح حرام دے چه په هغے کښ اوۀ د نسب د وجے نه حرامے دی لکه مور، لور، خور ترور، ماسی، وریره او خورزه - او اوۀ د سبب د وجے نه حرامے دی چه هغه اسباب دا دی - اول سبب رضاعت دے او د هغے په سبب سره بے حرام دوه ذکر کړیدی (رضاعی مور او رضاعی خور) - دویم مصاهرت (سخرګنۍ) ده او د هغے په سبب بے څلور حرامے ذکر کړیدی (خواښے، پرکټۍ اینګور او خینے د ښځے خور یعنی په یو وخت دواړه خویندے په نکاح کښ جمع کول) - دریم سبب تعلق د نکاح د غیر دے (او هغه بے په راتلونکی آیت کښ) یوه ذکر کړیده چه هغه د ښته نکاح ښځه ده - نو په اول سبب کښ دوه

حرام دی په دویم کښی څلوراو په دریم کښی یو حرامه ده نو ټول اوه شول - او دا په صحیح حدیث سره ثابت دی چه ابن کثیر دا ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت ذکر کړیدے چه حرام کړے شویدی د نسب نه اوه او د صهر نه اوه -

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ، حل او حرمت احکام شرعیه د کارونو د مکلفینو سره تعلق لری د ذات د څیز سره نه دی متعلق د دے وجے نه اجماع ده چه دلته مراد حرمت د نکاح دے او مخکښی روستو بحث د نکاح دے او مخکښی روستو بحث هم د نکاح په باره کښی دے دا هم قرینه ده - او دا جمله په ظاهر کښی خبریه ده لیکن په معنیٰ د انشاء کښی ده - او فاعل د تحریم معلوم دے شرعًا او عرفًا چه الله تعالیٰ دے د دے وجے نه د هغه ذکر ئے اونکړو -

أُمَّهَاتُكُمْ، ام اصل ته وئیلے شی نو په اعتبار د دے معنیٰ سره دا لفظ نیا ته حقیقتًا شامل دے - او قرطبی وئیلی دی چه ام په اصل کښی نوم د هرهغے زنانه دے چه د هغے په تا باندے حق د ولادت وی نو نیا گانے د مور او پلار دواړو د طرف نه په دے لفظ کښی داخلے دی -

وَبَنَاتُكُمْ، دا جمع د بنت ده هرهغه زنانه ده چه ستا په هغې باندے حق د ولادت وی یا هره هغه زنانه چه د هغے نسب تا ته راګرځی په ولادت سره که په یو درجے سره وی او که په ډیرو درجاتو سره - نو دا لفظ لور ته او د اولاد لوڼړو ته ( د خوے لور او د لور لور ) شامل دے - اګرچه نور هم په ښکته وی یعنی نوسئ او کړوسئ وغیره -

وَأَخَوَاتُكُمْ، دا جمع د اخت ده او هرهغه زنانه مراد ده چه ستا سره ئے شرکت وی په مور او پلار دواړه کښی یا په یو کښی یعنی اعیانی، اخیافی او علاتی خویندو ټولو ته شامل دے - اهلِ لغت وئیلی دی چه بنات جمع د بنت د

او هغه په اصل کښ بَنِيَة دے نو دَ يَا دَحذف دَ وجے نه دَ باء لاندے زیر راغے - او اخت په اصل کښ اخوة دے نو په 'همزه' باندے پيښ راوړو دَ وجے دَحذف دَ 'واو' نه -

وَعَمّٰتُكُمْ ، عمه هغه زنانه ده چه هغه ستا دَ پلار سره شريکه وي په يو اصل يا په دواړو اصلونو کښ دغه درے اقسام دي - او کله عمه دَ مور دَ طرف نه وي چه هغه ستا دَ پلار دَ مور خور ده -

وَخٰلٰتُكُمْ ، خاله هغه زنانه ده چه شريکه وي ستا دَ مور سره په يو اصل يا دواړو اصلونو کښ نو په هغے کښ هم درے اقسام دي او کله خاله دَ پلار دَ طرف نه وي چه هغه ستا دَ پلار دَ مور خور ده -

وَبَنٰتُ الْاَخِ وَبَنٰتُ الْاُخْتِ ، دا هم هغه زنانه دي چه ستا دَ ورور يا ستا دَ خور په هغوي باندے دَ ولادت حق وي بالذات يا په واسطے سره - او په اخ او اخت کښ اعياني، اخيافي او علاتي دريواړه داخل دي يعنى ستا دَ هر قسم ورور او خور لونړه (وريرے او خورځے) - او دَ دے ټولو په ترتيب کښ اقرب فالا قرب ذکر کړيدے چه مور ده بيا لور، بيا خور او بيا ترور او ماسي او بيا وريره او خورځه - (او عمه او خاله ئے دَ اکرام او احترام دَ وجے نه په وريره او خورځه باندے مخکښ ذکر کړيدي ځکه چه هغوي په عمر کښ مشرانے وي)

وَاُمَّهٰتُكُمُ الّٰتِيْٓ اَرْضَعْنَكُمْ ، رضاعت ئے سبب دَ تحريم کرځولے دے - رضاعت په لغت کښ چوپل دَ سينے (تي) دي او دَ شريعت په اصطلاح کښ چوپل (پي رودل) دَ بچي دي دَ سينے دَ زنانه نه په خاص وخت دَ رضاعت کښ - او دا پئ رودل خو مشهوره ذريعه ده که په بله طريقے سره دغه پئ دے بچي ته اورسي (يعنى په بوتل وغيره سره) نو هغه هم رضاعت دے په شرع کښ - او دَ اهلِ رضاعت نه ئے دلته دوه ذکر کړيدي (مور او خور) -

لیکن په حدیث دَ صحیحین کښې دَ عائشه او ابن عباس رضی الله عنهما په روایت سره ذکر دی چه دَ رضاع په وجه هغه حرام دی کوم چه دَ نسب په وجې سره حرام دی - او قرطبی وثیلی دی چه یو زنانه یو وړوکی له پئ ورکړی نو دغه زنانه په دغه بچی باندے حرامه شوه ځکه چه دائے رضاعی مور شوه اولور دَ هغې زنانه په دے بچی حرامه شوه ځکه چه هغه رضاعی خور شو او دغسے خور دَ هغې زنانه ځکه چه هغه یئے خاله شوه او مور دَ هغې ځکه چه هغه یئے رضاعی نیا شوه - او لور دَ هغه سړی چه دَ هغه دَ وجے نه دَ دے تیځے پئ پیدا شوی دی (اګرچه دَ بلے تیځ نه وی) هغه دَ ده رضاعی خور شوه او دغه سړے یئے رضاعی پلار شو او خور دَ دغه سړی دَ دے بچی رضاعی ترور شوه او مور دَ هغه یئے نیا شوه او نوسیٔ دَ هغه سړی په دواړه طریقو سره چه وی حرامے دی په دے بچی باندے ځکه چه هغه یئے رضاعی وریرے اوخورځے دی - او رضاعت که لږ وی اوکه ډیر وی برابر دے په نیز دَ امام مالک او امام ابوحنیفه رحمهم الله سره او پنځه رضعات شرط دی په نیز دَ امام شافعی رحمه الله او دَ بعضے علماؤ په سبب دَ حدیث دَ خمس رضعات سره - او په دیکښې نور اقوال هم شته دے تفصیل یئے په روح المعانی او قرطبی وغیره کښې اوګورئ - دا رنګ مسئله دَ تحریم رضاع روستو دَ دوو کلونو نه آلوسی په تفصیل سره ذکر کړیده -

وَاَخَوٰتُكُمْ مِّنَ الرَّضَاعَةِ ، دا خور عامه ده که اعیانی وی او که اخیافی یا علاتی وی - مِنْ اجلیه دے دَ تعلیل دَ پاره -

سوال :- هر کله چه سبب دَ رضاع دَ مور او خور نه علاوه نورو ته هم شامل دے نو دَ دے دوو تخصیص یئے ولے اوکړو ؟

جواب :- تحریم دَ نسب دَ وجے نه په دوه طریقو سره دے

اول په طریقه دَ ولادت سره چه هغه مور او لور ده او دویم په طریقه دَ اخوت سره چه هغه ښځه دې رخور، ترور، ماسئ وریره او خورځه) نو په رضاعت کښ ئې هم صرف دا دوه طریقې ذکر کړے اول په ولادت سره چه مور رضاعي ده او دویم په اخوت سره چه خور رضاعي ده - او دا تنبیه ده په باقي پاتے په طریقه دَ اختصار سره -

وَ اُمَّهٰتُ نِسَآئِكُمْ، دَ اُمَّهٰتُ، په لفظ کښ دَ مور او پلار طرف ته دواړه نیاګانے داخل دي - او نِسَآءِ نه مراد منکوحات دي - او په دیکښ عموم دے که دَ هغې منکوحے سره دخول شوے وي او که نه وي - او دا قول دَ اکثرو صحابه کرامو او تابعینو دے او دا دَ ځلورو وارو آئمه کرامو مذهب دے.

وَرَبَآئِبُكُمُ الّٰتِیْ فِیْ حُجُوْرِكُمْ مِّنْ نِّسَآئِكُمُ الّٰتِیْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ، رَبَآئِبُ، جمع دَ ربیبة ده رلور دَ ښځے چه دَ بل خاوند نه وي) او مور او دویم پلار ئے غالبًا پالنه کوي پشان دَ نور اولاد او پښتو کښ هغې ته پرکټئ و ئیلے شي - حُجُوْرِ، جمع دَ حجر ده په لغت کښ اړخ دَ انسان ته و ئیلے شي رد ترخ نه ترتشي پورے) چه هغې ته عامه اصطلاح کښ غیږ و ئیلے شي او مراد ترینه پالنه کول دي - او دا قید هم غالبي دے ځکه چه یوه ښځه دَ دویم خاوند سره نکاح کوي نو خپله لور دَ اول خاوند نه دَ دویم خاوند کور ته دَ ځان سره راولي - او الفاظ دَ ربائب او حجورکم دَ تاکید دَ علت دَ حرمت دَ پاره دي - لکه چه لَا تَاْكُلُوا الرِّبٰوٓا اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً کښ تاکید دے - او دَ اکثرو اهل علمو په نیز دا قید احترازي نه دے یعني که په حجر ( پالنه) دَ دغه سړي کښ نه وي نو هم پرے حرامه ده - دَخَلْتُمْ بِهِنَّ، دا صفت صرف دَ روستو نِسَآئِكُمْ دَ پاره دے دَ مخکښ نساء سره متعلق نه دے ځکه چه دَ دے حرمت دَ پاره دخول شرط دے او په مخکښ کښ شرط نه دے.

فَإِنْ لَّمْ تَكُونُوا دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ، په تصریح
دَ دے نفی کښې اشاره ده چه قید دَ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ دَ فِی
حجورکم پشان نه دے یعنی هغه قید عادتی او غالبی دے
او دا قید احترازی دے۔ حاصل ئے دا دے چه سړے دَ
یو زنانه سره نکاح اوکړی او دَ هغې سره لوړ وی
لیکن دا سړے دَ دغې ښځې سره جماع او نکړی او طلاقه
ئے کړی یا مړه شی مخکښې دَ جماع نه نو دَ هغه لور سره
ئے نکاح کول شی۔ او قرطبی دَ امام مالک، ثوری، امام
ابوحنیفه رحمهم الله قول ذکر کړیدے چه په شهوت
سره مسه کول او عورت خاصه ته نظر کول په حکم دَ
جماع کښې داخل دی۔

وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ، حَلَائِلُ
جمع دَ حلیلة ده دَ حلول نه اخستلے شویدے یعنی ښځه
دَ خاوند سره په یو فراش (بستره) کښې حلول کوی یا کوم
ځائے چه خاوند حلول (نزول) کوی نو ښځه ورسره تابع
وی۔ په دے معنیٰ حلیله په معنیٰ دَ فاعل سره دے۔ یا
دا دَ حل او حلال نه اخستلے شویدے په معنیٰ دَ مفعول
سره یعنی حلاله کړے شوے۔ او دَ دینه مراد بیبیانے
(منکوحات) دی۔ نو په صرف نکاح کولو دَ ځوئے سره
دغه ښځه (نیګور) په خپل سخر باندے حرامه ده که
دخول کړے شوے وی او که نه۔ او دَ أَبْنَائِكُمْ په حکم
کښې نوسے یعنی دَ ځوئے ځوئے داخل دے اګرچه دَ هغې
نه خکته هم وی کړوسے وغیره۔ أَصْلَابِكُمْ جمع دَ صلب
ده۔ ملا ته وئیلے شی او مراد ترینه دلته نطفه دَ پلار ده
چه هغه راوتلے ده دَ ملا دَ هغه نه۔ لکه يَخْرُجُ مِنْ بَيْنِ
الصُّلْبِ وَالتَّرَائِبِ (طارق) او په دے لفظ سره احتراز
شویدے دَ متبنیٰ نه چه هغه هم په عرف دَ عربو کښې
ځوئے ګڼړلے کیدلو لیکن دَ هغه دَ ښځې سره زروستو دَ

طلاق یا مرګ دَ خاوند نه) نکاح کول جائز دی- خوېندې سره دَ رضاعي خوَرې نه احتراز نه دے کړے شوے په سبب دَ هغه حدیث چه حرام دی دَ رضاع نه هغه چه حرام دی دَ نسب نه-او دَ متبنّٰی تفصیل او دَ هغه دَ ښځې تحلیل په سورۃ احزاب کښې ذکر دے۔

وَاَنْ تَجْمَعُوْا بَيْنَ الْاُخْتَيْنِ، دا په محل دَ رفع کښې دے عطف دے په امهاتکم باندے-یعنی جمع کول دَ دوو خوېندو په نکاح کښې حرام دی-یو سړے دَ خپلې خېنې (دَ ښځې دَ خور) سره نکاح نشي کولے څو پورے چه هغه ښځه دَ ده په نکاح کښې وی-او په جمع سره تعبیر ئې دَ دے وجې نه اوکړو چه دلته ابدی حرمت مراد دے او هغه متعلق دے دَ جمع سره- بغیر دَ جمع نه دَ هر یو نکاح جائز دے-او په دے حکم دَ جمع دَ ښځې او دَ ترور دَ هغې او دَ ماسی دَ هغې هم داخل ده په سبب دَ صحیح حدیث سره او دا حدیث مسلم، ترمذی، ابوداؤد او نسائی دَ شپږو صحابه کرامو نه روایت کړے دے نو حدیث مشهور دے تقیید دَ قرآن په دے سره جائز دے (دا به په تفسیر دَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ آه (اعراف) کښې ان شاء الله ذکر کړے شي) خو کله چه یو سړے خپله ښځه طلاقه کړی په طلاق غیر رجعیه سره نو دَ هغې دَ خور سره دَ عدت نه مخکښې نکاح کولو کښې دَ صحابه کرامو، تابعینو او اهل علمو اختلاف دے-او چه طلاقِ رجعي ئې ورکړے وی نو بیا به دَ عدت پوره تیرېدلو پورے انتظار کوی- دا رنګ که چرے یوه ښځه وفات شي نو دَ هغې دَ خور سره متصل ورځو کښې نکاح کولے شي عدت پورے انتظار ته ضرورت نشته-

اِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ، دا استثناء منقطع ده یعنی هغه چه تیر شوی وی ستاسو نه په جاهلیت کښې (نکاح دَ بعضې محرماتو

سره) نو الله تعالیٰ دَ هغې مغفرت کوی- او دَ اکثر مفسرینو
په نیز دَ دې تعلق دَ دوو خویندو جمع کولو سره
دے په نکاح کښې ځکه چه دَ دغه نورو محرما تو دَ تحریم
خو جاهلیت والا قائل وو- لکه چه امام شاه ولی الله
دهلوی په الحجة البالغة کښې لیکلی دی لیکن جمع بین
الاختین ئې جائز گنړله- نو او وئیلے شو چه دَ اسلام نه
مخکښې چا دَ دوو خویندو جمع کړیده نو دَ اسلام قبلولو نه
به روستو دَ هغوی نه یوې ته طلاق ورکوی- او دا سے په
حدیث دَ ابوداؤد او ترمذی وغیره کښې وارد دی- دَ ابن
عباس رضی الله عنهما نه هم روایت دے چه جاهلیت والا
دَ دے ټولو محرما تو دَ تحریم قائل وو سیوا دَ منکوحے
دَ پلار (میرنۍ مور) او دَ جمع بین الاختین نه- دَ دے
وجے نه دَ دواړو په آخر کښې ئې الا ما قد سلف ذکر
کړے دے- او دا قول دَ امام محمد بن حسن نه هم
نقل دے (آلوسی، قرطبی)-

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا، دا متعلق دے دَ الا ما
قد سلف سره- دَ منکوحة الاب (میرنۍ مور) په نکاح
کښې قباحت ډیر وو نو دَ هغې سره ئې انه کان فاحشة آه
ذکر کړیدے او دَ جمع بین الاختین په تحریم کښې
قباحت دَ هغې نه لږ کم وو (ځکه چه وئیلے شویدی
چه دَ یعقوب علیه السلام په دین کښې دا جمع جائز
وه) نو دَ دے وجے نه دَ دے آخر کښې مغفرت او رحمت
ذکر کړو-

وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا

او (حرام دي) خاوندانو والا ښځې مګر

مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ۚ كِتٰبَ اللّٰهِ

هغه ښځې چه مالک شي ښې لاسونه ستاسو د هغوی، حکم د الله تعالیٰ فرض کړشوي

عَلَيْكُمْ ۚ وَاُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ

په تاسو او حلال کړیدی تاسو لره سیوا د دے (د ذکر شوو) نه

ذٰلِكُمْ اَنْ تَبْتَغُوْا بِاَمْوَالِكُمْ

چه طلب کوئ تاسو په مالونو خپلو سره

مُّحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ ؕ

نکاح کوونکے یئ نه یئ زنا کوونکي،

فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ

نو هغه ښځې چه فائده واخلئ تاسو په دے (مهر) سره د هغوی نه

فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً ؕ

نو ورکوئ هغوی ته مهرونه د هغوی مقرر کړے شوے،

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا

او نیشته ګناه په تاسو باندے په هغه مهر کښ چه

تَرٰضَيْتُمْ بِهٖ مِنْ بَعْدِ

رضا شئ تاسو په هغے سره روستو د

الْفَرِيْضَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ

مقرر کولو نه، یقیناً الله تعالیٰ

عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۲۴﴾

پوهه دے په هرڅه حکمتونو والا دے۔

۲۴:۔ دا عطف دے په ما قبل محرماتو باندے او په دیکښ دَ محرمات سببیه نه اووم قسم ذکر کوی یعنی تحریم په سبب دَ نکاح دَ غیر سره او دا قسم ئے دَ مخکښ نه په جدا آیت کښ ذکر کړو ځکه چه مخکښ ئے هغه ذکر کړل چه تحریم ئے همیشه دے او دا قسم حرام همیشه نه دے۔

تنبیه:۔ دَ قرآن په لوستلو کښ نه دی جائز چه دا آیت دَ مخکښ آیت نه ډیر وخت (وقفه) پس اولولی یا تلاوت دَ دے ځائے نه شروع کړی بلکه دَ مخکښ آیت سره متصل لوستل پکار دی ځکه چه دا کلام ناقص دے بغیر دَ اول آیت نه ځکه چه دا عطف دے په مخکښ آیت باندے۔

وَالْمُحْصَنٰتُ، دا دَ احصان نه اخستلے شوے دے او احصان دَ حصن نه دے او حِصن په لغت کښ منع کولو او بچ کولو ته وئیلے شی لکه په سوره انبیاء ۸۰ کښ (لِتُحْصِنَكُمْ مِّنْ بَاْسِكُمْ)۔ دا رنګ حصان هغه زنانه ده چه ځان ئے دَ فحشاء نه بچ ساتلے وی۔ او احصان په قرآن کښ په څلورو معانیو سره استعمال دے۔ اوله معنیٰ، تزوج یعنی نکاح کول لکه په دے آیت کښ محصنین او وروستے آیت کښ محصنات او احصن (دا الفاظ په معنیٰ دَ نکاح کولو دی)۔ دویمه معنیٰ عفت (پاک لمنی) ده۔ لکه (الَّتِيْٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا) (انبیاء ۹۱) وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ (مائده ۵)۔ دریمه معنیٰ حریت (آزادی) ده۔ لکه روستو آیت کښ راځی (فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ)۔ څلورمه معنیٰ اسلام دے۔ قرطبی وئیلی دی چه په دے معنیٰ سره په قرآن کښ نه ده راغلے او په سنت کښ وارد ده۔ او صاحب اللباب وئیلی دی چه په روستو آیت کښ (فَاِذَآ اُحْصِنَّ) دَ بعضے

مفسرینو په تیز په معنیٰ دَ اسلام راوړلو دے۔ دلته مراد دَ المحصنات نه اوله معنیٰ ده یعنی هغه ښځه چه دَ بل سړی په نکاح کښې وی۔ ابو سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دے چه دا دَ مشرکانو زنانو په باره کښې نازل شویدے چه هغوی مدینے ته هجرت اوکړو یعنی مسلمانانے شوے او خاوندان ئے (مشرکان) په مکه مکرمه کښې وو نو مؤمنانو به دَ دوی سره نکاح اوکړه۔ بیا به ئے خاوند مسلمان شو او هجرت به ئے اوکړو او مدینے ته به راغے۔ نو الله تعالیٰ په دے آیت سره دَ هغوی نکاح حرام کړه۔ دَ مخکنو خاوندانو دَ وجے نه او بیا ئے استثناء اوکړه په دے قول سره چه مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا مَلَکَتۡ اَیۡمَانُکُمۡ۔ او دَ دینه مراد سبایا دی (دَ کافرانو سره دَ جنګ په وخت کښې قید کړے شوے)۔ نو دَ مَلَکَتۡ نه مراد سبیه دی (وینځه)۔ په دے سَبِیَّه سره دَ دے مخکښې نکاح ماته شوه۔ دا قول دَ عمر، عثمان او ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو او خلورو وارو امامانو دے۔ لیکن اختلاف دے چه خاوند ورسره قید کړیشی نو نکاح ئے ماتیږی او کنه۔ نو دَ امام شافعی رحمه الله په نیز نکاح ئے ماته ده او دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز چه خاوند ورسره وی نو بیا ئے نکاح نه ماتیږی۔ او دَ دے نور تفصیل په روح المعانی کښې اوګورئ۔ او په آیت کښې نور اقوال هم شته لیکن اول قول غوره دے۔

کِتٰبَ اللّٰهِ عَلَیۡکُمۡ، په دیکښې درے وجوه دی۔ اول دا مفعول مطلق دے دَ مضمون دَ حرمت دَ پاره یعنی په دغه جملو کښې معنیٰ دَ کتابت ده معنیٰ ئے دا ده چه کَتَبَ اللّٰهُ عَلَیۡکُمۡ تَحۡرِیۡمُ مَا ذُکِرَ سَابِقًا کِتَابًا (فرض کړیدے الله تعالیٰ په تاسو باندے تیر شوے تحریم په فرض کولو سره)۔ دویمه وجه، دا منصوب دے په اغراء (تیزولو) سره یعنی علیکم کتاب الله (لازم دے په تاسو باندے کتاب او

حکم دَ الله تعالیٰ) او دا قول دَ کیسائیؒ دے دَ هغه په نیز تقدیم دَ منصوب جائز دے۔ دریمه وجه، دا منصوب دے په سبب دَ پټ فعل سره یعنی اَلْزِمُوْا کِتَابَ اللهِ۔ او دا قول دَ ابوالبقاء دے۔

وَ اُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ، دا عطف دے په حرمت باندے یعنی روستو دَ تحریم نه تحلیل ذکر کوی۔

سوال:- دا لفظ دلالت کوی چه دَ دے قسمونو نه علاوه دَ نورو زنانو سره نکاح کول جائز دی مثلاً ترور او وریرے او دَ ماسی اور خورځے دی۔ دا رنګ نیاګانے او دَ رضاعت دَ وجے نه ما سیوا دَ رضاعی مور او خور نه۔ او دا رنګ زنانه په عدت دَ بل کښ او دَ پنځمے ښځے سره نکاح کول او هغه ښځه چه چا ورسره لعان کړے وی نو په دغه لعان کوونکی حرام ده او طلاقه کړے شوے په دریو طلاقو سره بغیر دَ تحلیل دَ بل خاوند نه؟

جواب:- دَ دے جواب په ډیرو وجوهو سره دے۔ اوله وجه، دا عموم خاص کړے شوے دے په نورو نصوصو سره هغه دا چه په باره دَ تحریم دَ پنځمے ښځے او طلاقه کړے شوے په دریو طلاقو سره بغیر دَ تحلیل نه او په زمانه دَ عدت کښ نور آیتونه وارد دی۔ او په باره دَ جمع کولو دَ ترور او وریره او ماسی او خورځه کښ او په باره دَ تحریم دَ رضاعت سره سیوا دَ رضاعی مور او خور نه احادیث صحیحه راغلی دی۔ او دغه احادیث اخبار احاد نه دی بلکه مستفیض (مشهور) دی او دَ اتو صحابه کرامو نه نقل دی۔ تحریم دَ جمع کولو دَ ترور ماسی او وریرے او خورځے سره دَ علی، ابن عباس، جابر، ابن عمر، ابو موسیٰ، ابو سعید، ابو هریره او عائشه رضی الله عنهم نه نقل دی۔ او بعضے علماؤ وئیلی دی چه دا متواتر حدیث دے۔ ابن عطیه وئیلی دی چه په دے تحریم باندے اجماع ده

نو تخصیص دَ عموم دَ کتاب الله نه په صحیح متواتر او مشهور احادیث سره او په اجماع دَ صحابه سره اتفاقي مسئله ده (بحر المحیط).
دویمه وجه دا ده چه په موثر بانډے په قرآن او په سنت صحیحه بانډے عمل کول واجب دی ځکه چه دواړه نازل شویدی نو بعضے احکام په قرآن کښ دی - او بعضے په احادیثو صحیحو کښ دی - دَ دے تفصیل قاسمي په خپل تفسیر کښ ذکر کړیدے - دریمه وجه، لفظ دَ بعد یا غیر ذالکم ئې نه دے فرمائیلے بلکه وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ دے او لفظ دَ وراء په ډیر روستو والي بانډے دلالت کوي یعني ما قبل محرمات چه قرآن صراحتًا ذکر کړیدی او بعضے دَ هغے نه په دلالت سره معلومیږي او بعضے دَ هغے نه په احادیثو کښ ذکر دي دَ دے ټولو نه روستو نورے حلالے دي - دیته ابن عطیه او آلوسي اشاره کړیده - څلورمه وجه، دلته مقید دے په اقارب سره یعني حلال کړے شویدي ما سوا دَ ما قبل دَ اقاربو نه چه غیر ذوات المحارم دي (ابوحیان) -
په دے وجوهو کښ اوله وجه غوره ده -
أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ، دَ دے په محل دَ اعراب کښ درے وجوه دي - اوله وجه، دا چه دا بدل اشتمال دے دَ مَا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ نه نو په محل دَ رفع کښ دے - دویمه وجه، دا مفعول له دے په محل دَ نصب کښ په تقدیر دَ لام اجلیه سره - دریمه وجه، باء مقدر ده یعني بِأَنْ تَبْتَغُوا ... او دا په محل دَ جر کښ دے او مفعول دَ تبتغوا پټ دے یعني النساء - بِأَمْوَالِكُمْ، کښ باء دَ عوض دَ پاره ده او دَ اموال نه مراد مهر عوض دے دَ نکاح دَ پاره - قرطبي وئیلي دي چه دا لفظ دلالت کوي چه مهر که لږ وي او که ډیر وي نو جائز دے - او دا مذهب دے دَ جمهورو اهل علمو او اصحاب الحدیث - او امام شافعي رحمه الله وئیلي دي چه هر یو څیز چه دَ ثمن دَ مبیع (قیمت دَ یو څیز) یا دَ اجرت

صلاحیت لري نو هغه مهر کیدیشي که هغه لږ وي او که ډیر وي نو معلومه شوه چه تعلیم د قرآن په بدل د نکاح کښ مهر کیدیشي ځکه چه اجرت په تعلیم د قرآن سره جائز دے - او په دے باندے دلیل هغه مشهور حدیث دے چه بخاري وغیره نقل کړیدے - او امام مالک رحمه الله وئیلی دي چه کمه اندازه درے درهمه یا د دینار څلورمه حصه ده - او د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دادے چه کمه مهر کمه اندازه لس درهمه دي او دلیل ئیسی په حدیث د دارقطني سره - لیکن قرطبي وئیلی دي چه د دے حدیث په سند کښ میشر بن عبید راوي دے چه هغه متروك (پریخودلے شوے) دے - او په دے باندے نور کلام ذکر کړے دے - لیکن د لږ مهر په باره کښ احادیث چه دارقطني راوړے دي لکه خاتم حدید (د اوسپنے ګوتمه) یا کف دقیق وسویق هغه صحیح دي.

مُحْصِنِيْنَ ، دا حال دے د فاعل د تبتغوا نه او د احصان نه مراد نکاح کول دي.

غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ ، دا دویم حال دے ، سفح په لغت کښ بیولو ته وئیلے شي لکه دماً مسفوحاً - او د سفاح نه دلته مراد زنا کول دي ځکه چه د زنا مقصد هم صرف اوبه (مني) بیول وي - او په دیکښ تصریح ده چه مال په عوض د نکاح کښ مراد دے او هغے ته مهر وئیلے شي. اجرت د زنا نه دے مراد ځکه چه هغه خو یقیني حرام دے.

فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً ، مخکښ جمله کښ اشتراط (شرط) د مهر د نکاح د پاره ذکر کړے شو نو اوس په دے جمله کښ د هغے د پوره ایجاب د پاره سبب ذکر کوي چه هغه استمتاع (فائده اخستل) ده - مَا شرطیه دے یا موصوله دے او په دے سره مراد هغه زنانه دي چه استمتاع (فائده) ترینه واخستلے شي

په تاویل دَ نوع دَ مُسْتَمْتَعٌ سره - یا قرینه مراد معنی مصدری ده یعنی هغه فائده چه تاسو حاصله کړئ هغې لره۔ او فَاٰتُوْهُنَّ دَ دے جزاء او خبر دے او دَ هُنَّ ضمیر حرف مَا ته راجع دے ځکه چه مَا په معنیٰ دَ نساء سره جمع کیدی شی۔ او بله توجیه دا ده چه ما په معنیٰ دَ مهر سره دے او بِهٖ کښ بآء سببیه عوضیه ده او اُجُوْرَهُنَّ کښ ئے اسم ظاهر په ځائے دَ ضمیر یاد ے ذکر کړیدے دَ وجوب دَ علت دَ پاره چه دَ اجر دے او اجر ورکول واجب دی۔ اَسْتِمْتَاعُ په لغت کښ نفع حاصلول دی او په کوم څیز یادے چه نفع حاصلیږی نو هغه متاع وی۔ نو دَ جمهورو مفسرینو په نیز دَ دینه مراد جماع کول دی روستو دَ نکاح نه په دلیل دَ دے سره چه مخکښ لفظ دَ محصنین ذکر شو چه دلالت کوی په نکاح کولو یادے۔ نو مقصد دَ جملے دا دے چه دَ نکاح نه روستو دَ منکوحے (ښځے) نه فائده دَ جماع واخستلے شوه نو دَ هغے کامل مهر په خاوند یادے واجب شو اګرچه دَ جماع نه مخکښ نیم واجب دے۔ او دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز یادے په خلوت صحیحه سره هم ایجاب دَ ټول مهر راځی - او بعضے مفسرینو وئیلی دی چه دَ دینه مراد متعه کول دی دَ ښځو سره - او په یو قرائت کښ دلته لفظ دالی اجل مسمی ذکر دے نو په دے آیت سره متعه جائز ده لیکن بیا منسوخ کړے شویده - دَ عائشه رضی الله عنها او قاسم بن محمد نه نقل دی چه دَ دے تحریم او نسخ په قرآن سره ثابت دی په آیت (وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حَافِظُوْنَ - اِلَّا عَلٰی اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ - فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعَادُوْنَ) (سوره مومنون) یعنی متعه نکاح نه دے او ملك (مالک کیدل) هم نه دے نو وراء ذالك کښ داخل ده او په دے قول سره دغه آیت په مکی سورت

کښې مدنی دے - او دار قطنی دَ علی رضی الله عنه نه روایت ذکر کړیدے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ متعے نه نهی کړیده - او دَ ابن مسعود رضی الله عنه قول دے چه متعه منسوخ ده نسخ دَ دے په حکم طلاق، عدت او میراث سره شویده ځکه چه په متعه کښې په ښځه باندے دا دریواړه نه وی بلکه آزاده وی روستو دَ مقرر شوے نیټے نه - او ابن عباس رضی الله عنهما دَ متعے په جواز باندے قائل وو لیکن روستو ئے رجوع کړیده کله چه هغه نسخ واوریدله - او دا رنګ قول دَ عمران بن حصین دے او بیا ئے رجوع کړیده - دَ دے مزید تفصیل په اللباب، قرطبی او روح المعانی کښې اوګورئ -

أُجُوْرَهُنَّ، دَ دیته مراد بالاتفاق مهر دے چه مسمی وی یا دَ مهر مثل وی - او دا مهر عوض دے دَ مجموعه دَ حل دَ ښځے او دَ بدن دَ هغے او قائلدے اختلاف دَ هغے نه - او دا قول قرطبی ذکر کړیدے - فَرِيْضَةً، حال دے دَ اجور نه یا فعل پټ دے یعنی فَرَضَ اللهُ فَرِيْضَةً - او مفعول مطلق دے -

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا تَرَاضَيْتُمْ بِهٖ مِنْۢ بَعْدِ الْفَرِيْضَةِ، په دے جمله کښې روستو دَ مقرر کولو او ایجاب کامل نه په هغے کښې زیاتے کول یا معاف کول ذکر کوی - پس یکښې دَ زیاتی کولو دَ پاره رضا دَ خاوند شرط ده او دَ کمولو یا دَ معاف کولو دَ پاره دَ ښځے رضا شرط ده پشان دَ سوره بقرے ۲۳۷ او نساء ۴ چه مخکښې تیر شویدی -

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا، دا تاکید دے په ترغیب ورکولو کښې تیر شوے احکامو منلو ته یعنی په دیکښې ډیر حکمتونه دی چه دَ بندګانو دَ علم نه اوچت دی -

وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا

او څوک چه نه لري ستاسو نه (مالي) طاقت

اَنْ يَّنْكِحَ الْمُحْصَنٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ

چه نكاح اوكړي د آزادو ښځو ايمانداړو سره

فَمِنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ

(نو نكاح دِ اوكړي) د هغے سره چه مالك وي ښي لاسونه ستاسو.

مِنْ فَتَيٰتِكُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ؕ وَاللّٰهُ

د وينزو ستاسو نه چه ايمانداړے وي او الله تعالىٰ

اَعْلَمُ بِاِيْمَانِكُمْ ؕ بَعْضُكُمْ

ښه پوهه دے په ايمان ستاسو ، بعضے ستاسو نه (د جنس)

مِّنْۢ بَعْضٍ ۚ فَانْكِحُوْهُنَّ

د بعضو نه دي نو نكاح كوئ د دوي سره

بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ وَاٰتُوْهُنَّ

په اجازت د مولاګانو د دوي او وركوئ دوي ته

اُجُوْرَهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ مُحْصَنٰتٍ

مهرونه د دوي په ښهٔ طريقے سره بندكړے شوے وي (په نكاح كښ)

غَيْرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا مُتَّخِذٰتِ

نه په ښكاره زنا كوي او نه په نيسئ

اَخْدَانٍ ۚ فَاِذَآ اُحْصِنَّ فَاِنْ

پټے دوستانے ، نو كله چه دوي سره نكاح اوكړے شي نو كه بيا

أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا

(نو که اوکړه دوی په بدکارئ) نو په دوی باندې نیمه ده د هغې نه چه واجب ده

عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ ط

په آزادو ښځو د سزا (د حد، دُرّو وهلو) نه

ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ

دا (نکاح د وینزو) هغه چالره ده چه یریږی د زنا کولو نه

مِنْكُمْ ط وَأَنْ تَصْبِرُوْا خَيْرٌ

ستاسو نه، او صبر کول ستاسو (د نکاح د وینزے نه) غوره دی

لَّكُمْ ط وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۵﴾ ع

تاسو لره، او الله تعالیٰ بخونکے دے رحم کوونکے دے۔

۲۵:- په دے آیت کښې دیارلسم حکم ذکر کوی روستو د ذکر د تحریم او تحلیل د آزادو ښځو نه۔ په دے آیت کښې د وینزو سره طریقه د تحلیل او د نکاح ذکر کوی۔ او په دیکښې شپږ جملے دی۔ اوله جمله، وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا أَنْ يَّنْكِحَ، طول په اصل کښې فضل ته وئیلے شی او په دیکښې درے اقوال دی۔ اول قول د ابن عباس رضی الله عنهما، مجاهد او سعید بن جبیر دے چه طول په معنیٰ د وسعت (فراخئ د مال) دے او غِنا او قدرت ته هم وئیلے شی۔ او دلته تر ینه مراد قدرت دے په مهر د آزاده ښځه باندے (یعنی که د چا د دغه مهر طاقت نه وی)۔ دویم قول د ابن حبیب او امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهم الله دے چه طول په معنیٰ د وجود د آزادے ښځے دے په نکاح د ده کښې نو مقصد دا دے چه د چا په نکاح کښې آزاده ښځه وی نو ده لره نکاح د وینزے سره جائز نه دے اګرچه وسعت ورسره نه وی او د عنت (زنا) په مشکل کښې اچول)

نه هم ډیر ډیر ی (طبری) - دریم قول دَ قتاده، نخعی، عطا او سفیان ثوري دے چه طول صبر او زړورتیا ته وئیلے شی - حاصل دَ دے قول دا دے چه سړے دَ یوے وینزے سره محبت او مینه لری خو یره کوی دَ هغے سره دَ عنت نه نو ده له جائز دی چه دَ هغے وینزے سره نکاح اوکړی اګر چه دَ ده سره وسعت دَ مال دَ نکاح دَ آزادے دَ پاره شته دے. بناء په اول قول باندے نکاح دَ وینزے مشروط دے په دوه شرطونو سره اول دا چه وسعت مالی دَ آزادے ښځے دَ نکاح نه لری - دویم دا چه دَ عنت نه یره کوی نو اجتماع دَ دے دواړو شرط ده - دا قول دَ جابر او ابن عباس رضی الله عنهما او عطاء، طاؤس، امام شافعی، امام مالک او امام احمد رحمهم الله دے - او دَ مجاهد او امام ابو حنیفه رحمهم الله په نیز دَ وینزے سره نکاح جائز دے اګر چه وسعت دَ مال لری دَ نکاح دَ آزادے ښځے سره دا په دلیل دَ عامو نصوصو سره - او دَ دے نص محمل دَ دوی په نیز دویم قول دے یا دَ دوی په نیز باندے مفهوم شرط معتبر نه دے.
طَوْلًا، مفعول مطلق دے دَ یستطع دَ پاره په سبب دَ اشتراک دَ معنے سره او ان ینکح مفعول به دے دَ یستطع یا متعلق دے په طولا پورے - یا طولا مفعول به دے په معنیٰ دَ حاصلولو سره دے او ان ینکح په دے پورے متعلق دے - معنیٰ دا ده چه څوک وس او طاقت نه لری دَ آزادو ښځو مؤمناتو سره دَ نکاح کولو.
اَلْمُحْصَنٰتِ، دَ دینه مراد په اتفاق سره آزادے زنانه دی په قرینه دَ مقابلے دَ ما ملکت سره.
اَلْمُؤْمِنٰتِ، دا قید مقابل دے دَ مشرکات، کتابیات او غیر کتابیات نو دا دلالت کوی که یو شخص دَ آزادے مؤمنے دَ نکاح وسعت نه لری لیکن دَ نکاح دَ آزادے کتابیے وس لری نو جائز ده چه نکاح دَ وینزے مؤمنے سره اوکړی.

فَمِنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ، په دیکښې فعل پټ دے یعنی فلیتزوج - او دَ ابن عباس رضی الله عنهما قول دے چه دَ دینه مراد مملوکه (وینزه) دَ بل مسلمان ورور ده ځکه چه انسان له دَ خپلے مملوکے (وینزے) سره دَ نکاح کولو حاجت نیشته - (ابن جریر، قرطبی).

مِنْ فَتَيٰتِكُمْ، دا جمع دَ فتات ده او عرب په خپله اصطلاح کښې وینزے ته فتات وائی او مرئی ته فتی وائی - او په صحیح حدیث کښې ذکر دی چه خپل مرئی او وینزے ته عبدی او امتی مه وایئ بلکه فتای او فتاتی ورته وائی - دا حکم استحبابی دے.

اَلْمُؤْمِنٰتِ، په دے صفت سره ئے احتراز اوکړو دَ وینزے کتابیے مشرکے نه نو دَ اکثر اهل علمو په نیز دَ کتابیے وینزے سره نکاح نه دے جائز - او دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا قید صرف دَ فضیلت دَ پاره دے. او دوی قیاس کوی په نکاح دَ آزادو کتابیو باندے چه دَ هغوی سره نکاح جائز دے نو دَ وینزے سره ئے هم جائز دے لیکن دا قیاس صحیح نه دے ځکه چه په شریعت کښې دَ نکاح دَ وینزو نه تحذیر دے او صاحب اللباب دَ دے دَ پاره جدا فصل قائم کړیدے او اته وجوه ئے ذکر کړیدی نو قیاس دَ جواز دَ نکاح دَ کتابیے وینزے سره جائز نه دے په آزاده کتابیه باندے.

دویمه جمله، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِكُمْ، په دے جمله کښې ترغیب دے دَ نکاح دَ وینزو دَ پاره روستو دَ وجود دَ شرطونو نه ځکه چه اکثر خلق دَ هغوی دَ نکاح نه مطلق نفرت کوی حالانکه داسے نه ده - نو مقصد په دے جمله کښې دا دے چه دَ وینزے سره دَ نکاح دَ جواز دَ پاره ظاهری ایمان پوره دے او دَ زړه حساب خو الله تعالیٰ پیژنی موږ دَ هغے په علم باندے نه یو مکلف لیکن شرط

دا دے چه دَ هغې نه ښکاره موجب دَ کفر او شرک نه وي صادر شوي - دریمه جمله، بَعۡضُكُم مِّنۢ بَعۡضٍ، په دیکښې هم تانیس (رغبت) دے دَ نکاح دَ وینزو دَ پاره - او په دیکښې رد دے په هغه چا باندے چه دَ فخر دَ نسبونو دَ وجے نه دَ وینزو دَ نکاح نه نفرت کوي - مقصد دا دے چه په جنس کښې هم اشتراک دے او په دین کښې هم دے نو دَ هغوي دَ نکاح نه مطلقًا نفرت جائز نه دے.
څلورمه جمله، فَٱنكِحُوهُنَّ بِإِذۡنِ أَهۡلِهِنَّ، دا شرط دے دَ نکاح دَ وینزے اګرچه ثیبه بالغه وي - او مراد دَ اهل نه اهل دَ ولایت دے یعني مولا او مالک دَ هغې. او دا دلیل دے چه دَ وینزے دَ مولا دَ رضا نه بغیر دَ هغې سره نکاح باطل دے - او دا جمله دلیل دے چه په دے آیت کښې دَ پردۍ وینزے بحث دے دَ خپلے وینزے سره دَ نکاح ته حاجت نشته لکه چه مخکښې ذکر شو - پنځمه جمله، وَءَاتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ، دَ أُجُور نه مراد مهر دے مسمّٰی وي یا مهر مثل وي یا دَ دینه مراد نفقه ده - اکثر اهل علمو په نیز دَ دے مهر مالک به مالک دَ وینزے وي او نسبت ځکه وینزو ته شوے دے چه دَ مهر سبب دغه وینزه ده او دَ امام مالک رحمه الله په نیز دا ملکیت دَ بېځې (وینزے) دے.
بِٱلۡمَعۡرُوفِ، دَ دے نه مراد موافق دَ شرع او سنت سره دے (قرطبي) یا په معنیٰ دَ عدم تاخیر او ټال مټول نه کولو دے او دیته عادت جملیه و ئیلے شي.
مُحۡصَنَٰتٍ، دلته مراد احصان په معنیٰ دَ نکاح شرعي سره دے یا په معنیٰ دَ پاکدامنۍ دے.
غَيۡرَ مُسَٰفِحَٰتٍ، سفاح په ښکاره سره زنا کول دي - جاهلیت والو کښې عادت وو چه بعضو وینزو به په خپلو خپلو ځایونو باندے جهنډے (نخې) لګولے وے.

وَلَا مُتَّخِذَاتِ أَخْدَانٍ، أَخْدَانٍ جمع دَ خدن ده پټ دوست دَ بدکارئ ته وئيلے شي - نو مسافحات هغه دی چه ښکاره بدکاری کوی او مُتَّخِذَاتِ أَخْدَانٍ هغه دی چه په پټه بدکاری کوی لکه وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ - یا مسافحات عام زنا کوونکی دی او متخذات اخدان هغه دی چه یو مخصوص شخص سره زنا کوی -
سوال :- مخکښ آیت کښ صرف غیر مسافحین ذکر دے او دلته ورسره متخذات اخدان هم ذکر دے ؟
جواب :- هغه آیت کښ دَ نارینو ذکر دے او په هغوی بانْدے دَ متخذ اخدان اطلاق نه کیږی او په وینزوکښ دغه دواړه قسمونه موجود وو دَ دے وجے نه ئے متخذات اخدان ذکر کړو -
شپږمه جمله ، فَإِذَا أُحْصِنَّ فَإِنْ أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ ، دلته دَ احصان نه مراد نکاح کول دی روستو دَ اسلام نه او فَاحِشَةٍ نه مراد زنا کول دی چه په هغے سره اقرار اوکړی یا ئے په څلورو ګواهانو سره ثابت شي نو فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ ، دَ الْمُحْصَنَاتِ نه دلته هغه آزادے ښځے مراد دی چه واده کړے شوے نه وی یعنی بکرے وی او زنا اوکړی - الْعَذَابِ نه مراد حد دَ جلد (دورو وهلو) دے چه هغه په آزادو بکرو بانْدے شل دُرے دی په دلیل دَ سورة نور سره نو په وینزه بانْدے (چه زنا اوکړی) پنځوس دُرے دی - لفظ دَ نِصْفِ قرینه ده چه محصنات نه مراد بکرے دی ځکه چه ثیبه (واده کړے شوے) زنا اوکړی نو په هغے رجم (سنګسارول) دے او په رجم کښ تنصیف (نیمول) نه کیږی - او دا دلیل دے چه مملوکان مرئ او وینزے په احکامو شرعیو کښ دَ آزادو په نیمه بانْدے دی حکمت ئے دا دے چه عقوبت په مقدار دَ نعمت سره واجبیږی نو مملوکانو بانْدے

نیم نعمت دے نو عقاب یۓ هم نیم دے او دا حکم مریانو
ته هم شامل دے په طریقه دلالت النص سره۔ او نورد
حدودو ته هم شامل دے۔ حد قذف او حد شرب دَ
آزادو اتیا دُرے دی نو دَ دوی به خلویښت خلویښت وی۔
سوال:۔ فاذا احصن په معنیٰ دَ واده کړے شوی دَ نو دَ دے دَ قید
لګولو څه فائده ده؟
جواب:۔ په دیکښ مقصد دفع دَ وهم ده چه آیا دَ دوی
حد (سزا) به زیاتی کیږی په سبب دَ احصان (واده کولو)
سره نو او وئیلے شو چه څرنګه دَ واده کولو نه مخکښ (ربکره
باندے) حد دَ زنا دُرے وهل دی نو روستو هم هغه دُرے
دی رجم ته دے او دُرے په دواړو حالاتو کښ پنځوس
دی۔ په دلیل دَ حدیث دَ علی رضی الله عنه چه مسلم او
نسائیٔ روایت کړے دے چه حدود قائم کړئ په
ممالیکو باندے که واده کړے شوے دی او که بے واده وی۔
او په دے مقام کښ ابن کثیر دَ دے نور څلور جوابات
ذکر کړیدی۔

او ومه جمله، ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ، په دیکښ
دَ وینځے دَ نکاح دَ پاره روستو دَ عدم طول نه دویم
شرط ذکر کوی۔ ذٰلِكَ اشاره ده دَ مؤمنے نکاح ته په وخت
دَ عدم طول کښ۔ اَلْعَنَتَ په اصل کښ هډوکے ماتول دی
روستو دَ جوړیدلو نه او په معنیٰ دَ مطلق مشقت سره
استعمالیږی لکه په دے قول کښ چه لوشاء الله لاعنتکم۔
او دلته دَ عنت نه مراد زنا کول دی ځکه چه هغه سبب
دَ عذاب دنیوی او اخروی دے۔ ابن کثیر وئیلی دی
چه مراد دا دے چه نکاح دَ وینځو سره په مخکښنو
شرطونو سره هغه چاله جائزه ده چه دَ زنا کولو نه په
ځان باندے یره کوی او جماع نه صبر کول ورته ګران وی۔
دَ بعضے اهل علمو په نیز لام دَ پاره دَ تخصیص دَ جواز کے

يُرِيدُ اللّٰهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ

غواړي الله تعالىٰ چه بيان اوكړي تاسو ته (د احكامو خپلو)

وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِينَ

او اوښائي تاسو ته طريقے د هغه كسانو

مِنْ قَبْلِكُمْ وَيَتُوبَ عَلَيْكُمْ ۚ

چه مخكښ ستاسو نه وو او رحم اوكړي په تاسو باندے

وَاللّٰهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٢٦﴾

او الله تعالىٰ پوهه دے حكمت والا دے۔

او د بعضو په نيز لام صرف د تفعے د پاره دے۔

اتمه جمله، وَاَنْ تَصْبِرُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ، يعني كه يو انسان په ځان باندے مجاهده اوكړي او د بدكارئ (زنا) نه ځان بچ اوساتي او د وينزے د نكاح نه صبر اوكړي نو په ديكښ ډير خير او فائدے دي ځكه چه اولاد به ئے د مرئ والي (غلامئ) نه بچ پاتے شي (يعني مريان اولاد به پيدا نشي)۔ د عمر رضي الله عنه نه روايت دے چه كوم آزاد شخص د وينزے سره نكاح اوكړي نو خپله نيمه حصه ئے مملوكه كړه (قرطبي)۔

نهمه جمله، وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ، ده۔ آلوسي وئيلي دي چه په دے جمله كښ هم مقصد تنفرت وركول دي د نكاح د وينزے نه گويا چه دا يو گناه ده۔

۲۶:۔ په دے آئنده درے آيتونو كښ ترغيب دے تعميل د هغه احكامو د الله تعالىٰ ته كوم چه مخكښ ذكر شويدي۔ په دے آيت كښ ئے درے فائدے ذكر كړے دي۔

فائده ۱:۔ يُرِيْدُ اللّٰهُ، د سيبويه او جمهورو بصريانو

مذاهب دا دے چه دلته مفعول پټ دے یعنی تحلیل ما احل وتحریم ما حرم (حلالول دَ هغے چه حلال کړیدی اوحرامول دَ هغے چه حرام کړیدی) او دغه پټ نه مراد وئیلے شی او په لِيُبَيِّنَ لَكُمْ، کښں لام دَ تعلیل یا عاقبت دَ پاره دے۔او دَ کوفیانو په نیز لام په معنیٰ دَ ان سره دے او دَ بیرید دَ پاره مفعول دے ۔او په دیکښں نورا قوال هم شته دے لیکن اول قول غوره دے ځکه چه قرآن کریم دَ یرید لفظ نه روستو بعضے آیاتونوکښں ان ذکرکړیدے لکه سورة توبه ۳۲ کښں ۔ او بعضے آیاتونوکښں لام ذکردے لکه سورة صف ۸ کښں ۔ نو کوم ځائے چه ان ذکرکړیدے نو هغه ته مراد اومقصد وئیلے شی اوکوم ځائے چه لام ذکردے نو هلته مراد پټ دے او دَ هغے علت ذکردے او دَ هرځائے سره دَ هغے مناسب کلام ذکر دے ۔ دلته ئے په مفعول کښں تعمیم مراد وو ( اَمْرَ دِيْنِكُمْ، مَصَالِحَ اَمْرِكُمْ، مَا يَحِلُّ لَكُمْ وَمَا يَحْرُمُ) نو هغه ئے حذف کړو او دَ هغے درے فائدے ئے ذکر کړیدی ۔ اول بیان کول او دَ بیان نه مراد تمیزکول دی دَ حرام اوحلال او دَ حسن اوقبیح ۔ اوقرطبی وئیلی دی چه په دیکښں اشارة ده چه هیڅ واقعه دَ حکم الٰهی نه خالی نیشته لکه (مَا فَرَّطْنَا فِى الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ) (سورة انعام ۳۸).

فائده ۔ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ، سنن جمع دَ سنت ده او په معنیٰ دَ طریقے سره دے اوپه الذین من قبلکم سره مراد تیرشوے انبیاء علیهم السلام او صالحین دی ۔ او په دیکښں درے توجیه دے ۔اوله توجیه، آلوسی ذکرکړیده چه مراد دا نه دے چه بعینه دا احکام په مخکښں شریعتونوکښں وو بلکه دا دَ هغے دَ جنس او دَ نوع نه دی په مصلحتونوکښں ۔ نو په دیکښں لفظ مثل یا جنس پټ دے ۔ دویمه توجیه، دا ده چه دا احکام چه په دے سورت کښں دَ یتیمانو، سفهاؤ او زنانو په باره کښں

وَاللّٰهُ يُرِيْدُ اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْكُمْ ۖ

او الله تعالی غواړی چه قبولے کړی توبے ستاسو

وَيُرِيْدُ الَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ

او غواړی هغه خلق چه روان دی دَ نفس په

الشَّهَوٰتِ اَنْ تَمِيْلُوْا مَيْلًا

مزو پسے چه کاږه شئ تاسو (دَ حکم دَ الله نه) په کوږ والی

عَظِيْمًا ﴿۲۷﴾

ډیر سره -

او دَ نکاح او دَ میراث په باره کښں ذکر شول دا بعینها په په مخکښں شریعتونو کښں وو (صاحب اللباب) - دا رنګ قاسمی وئیلی دی چه په دے تیر شوے آیاتونو کښں چه څه ذکر شول نو داسے احکام په مخکنو ملتونو کښں هم وو او ما په تورات سفر الاحبار للاولیین اتلسم فصل کښں لوستلے دی چه دَ دے تائید کوی - دریمه توجیه، دا ده چه په اوله جمله کښں ترغیب وو او په دیکښں تخویف دے او الـذین من قبلکم نه مراد تکذیب کوونکی دی او یهدیکم نه مراد اخیار ورکول دی او سنن کښں دَ هغوی عنا یونو ته اشاره ده (قرطبی) -

فائده ۳ :- وَيَتُوْبَ عَلَيْكُمْ ، مراد دا دے چه په امتثال دَ احکامو کښں کله دَ مؤمن نه تقصیر کیږی او مؤمن دَ هغے کمی نه توبه اوباسی او الله تعالی ئے قبلوی - یا دَ توبے نه مراد رحمت دَ الله تعالی دے په تیر شوے احکامو کښں په خپلو بندګانو باندے -

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ، عالم دے په مصلحتونو دَ بندګانو باندے او دَ هغه حکمونه دَ دنیوی اخروی حکمتونو او

فوائد و ته ډک دی۔
۲۷ :۔ په دے آیت کښ ترغیب دے احکامو متلو ته په طریقه دَ تقابل سره په منهج دَ احکام شرعیه او غیر شرعیه کښ۔
وَاللّٰهُ يُرِيْدُ اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْكُمْ، ابن عطیه وئیلی دی چه دا په ظاهر کښ تکرار دے لیکن مقصد په دیکښ اخبار دے دَ باطل پرستو دَ ارادے ته۔ لیکن غوره دا ده چه دا تکرار نه دے بلکه په دیکښ فرق دے په دوه وجوهو سره۔ اوله وجه دا ده چه مخکښ توبه په طریقه دَ علتیت سره ذکر کړے ده او دلته په طریقه دَ مفعولیت سره ذکر ده یعنی هلته توبه علت او فائده دَ مراد وه او دلته توبه عین مراد دے (اللباب)۔
دویمه وجه، هلته قبولیت دَ توبے مراد وو او دلته هغه اعمال مراد دی چه دَ توبے دَ قبولیت دَپاره سبب دی (آلوسی)۔
او هر کله چه دلته مقصد تقابل او تحذیر دے دَ اتباع دَ اهل باطل نه نو دَ اهتمام دَپاره ئے والله مخکښ ذکر کړو اشاره ده چه دغه اراده (دَ مقرر کولو دَ اعمالو چه اسباب دَ توبے دی) خاص ده په الله تعالیٰ پورے ځکه چه احکام شرعیه مقرر کول په الله تعالیٰ پورے خاص دی۔
وَيُرِيْدُ الَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ الشَّهَوٰتِ، دا لفظ عام دے۔ فاسقانو، یهودیانو، نصارانو، مجوسیانو، مشرکانو او زناکارو ټولو ته شامل دے یعنی دا ټول چه په غیر شرعی اعمالو کښ مشغول دی گویا چه شهوات دَ دوی متبوع دی او دوی ئے تابع دی۔
اَنْ تَمِيْلُوْا مَيْلًا عَظِيْمًا، دَ تَمِيْلُوْا متعلق پټ دے یعنی عن الحق چه اتباع ده دَ احکام شرعیه۔ او لفظ دَ عظیمًا دلالت کوی چه دَ یو گناه ارتکاب چه کله کله وی او هغے ته گناه وائی دا خو کله په یو مؤمن مسلمان کښ هم کیږی لیکن دَ باطل پرستو سره پوره موافقت کول او گناهو ته خائسته او حلال گنړل دا میل عظیم دے۔ او دَ دے ارادے بعضے تفصیل

يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ ج

| غواړي | الله تعالىٰ چه آسانتيا راولي په تاسو په خپلو حکمونو کښ |
|---|---|

وَخُلِقَ الْاِنْسَانُ ضَعِيْفًا ﴿٢٨﴾

| ځکه پيدا کړے شوے دے | انسان | کمزورے - |
|---|---|---|

دا دے چه مشرکان اراده کوي چه دَ ميرے مور سره دے نکاح جائز وي - او يهوديان غواړي چه دَ پلار او دَ مور دَ خويندو (ترورياتو) سره دے نکاح جائز شي او دغه شان جمع بين الاختين دِ جائز شي - او مجوسيان خو اعتراض کوي چه وريرے او خورځے سره نکاح حرام دے نو دَ تره او دَ ماما دَ لوڼو سره دِ هم حرام شي - دا رنګ مشرکان په زنا کولو اجرت حلال ګڼړي - نو دا ټول غواړي چه مؤمنان دِ په دے کارونو کښ زموږ اتباع اوکړي -

ف۲۸ :- په دے آيت کښ ترغيب دے امتثال (عمل کولو) دَ احکام شرعيه ته په بله طريقے سره او بيان دَ فرق دے په مينځ دَ احکام شرعيه او غير شريعه کښ يعني په شرعي احکامو کښ تخفيف او آسانتيا ده او غير شرعي احکامو کښ حرج او تکليف دے -

يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ، دا عام دے ټولو احکامو شرعيو ته او دَ دے تائيد په سورة اعراف ف۱۵۷ ، بقره ف۱۸۵ او سورة حج ف۷۸ کښ شته دے (اللباب) -

وَخُلِقَ الْاِنْسَانُ ضَعِيْفًا ، دا په منزله دَ علت کښ دے دَ ماقبل دَ پاره يعني دَ احکام شرعيه دَ تخفيف دَ پاره ضعف دَ انسان يو سبب دے - او ضعف دَ انسان کښ ډير اقوال دي - اول دا چه دَ وجے دَ کثرت دَ اسبابو دَ شهوت او لذت نه ضعيف دے - دويم دا چه خلقت (پيدائش) يے ضعيف دے (کمزورے دے) لکه چه په سورة روم ف۵۴ کښ دي - دريم دا چه په باره دَ معامله دَ زنانو کښ کمزورے دے چه دَ هغوي نه صبر نشي کولے -

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَأْكُلُوٓا۟
اے ایمان والو! مه خورئ
أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ إِلَّآ
مالونه دَ یو بل په مینځ ستاسو کښ په ناروا مگر
أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٍ
که وی (دا معامله) تجارت په رضا
مِّنكُمْ ۚ وَلَا تَقْتُلُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ ۚ
ستاسو ، او مه وژنئ ځانونه خپل
إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴿٢٩﴾
یقینًا الله تعالیٰ په تاسو باندے مهربان دے۔

او په دے باره کښ قرطبی بعضے روایات دَ سلفو ذکر کړیدی.
او په دے آیت کښ تصریح ده چه دین اسلام دَ ټولو دینونو نه غوره دے ځکه چه دَ انسانانو دَ حالت سره پوره مناسب دے.
فائده :- دَ امام بیهقی روایت دے دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه چه دَ سوره نساء اته آیتونه دَ دے امت دَ پاره غوره دی دَ ټولو هغه ځیزونو نه چه په هغے باندے نمر ښکاره کیږی او پټیږی - دا درے آیتونه او ۳۱، ۴۸، ۶۴، ۱۱۰، ۱۴۷.
۲۹ :- په دیکښ څوارلسم حکم دے چه په هغے کښ امور دَ تدبیر منزل او دفع دَ مظالمو ذکر کوی۔
ربط :- ربط ئے دَ مخکښ سره دا دے چه مخکښ سره دا دے چه مخکښ دَ میراث او نکاح په احکامو کښ حقدارو ته دَ مالونو ورکول ذکر شول لکه اٰتوا الیتامٰی ، فان طبن لکم عن شیٔ ، او حصے دَ میراث ورکول ذکر شوے او دَ مهر په باره کښ لکه اٰتیتم احدٰهن قنطارًا ، فاٰتوهن اجورهن او ان تبتغوا باموالکم. نو اوس یو عام حکم شرعی ذکر کوی

چه دَ مالونو او نفسونو سره متعلق دے۔
یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا ، دا نداء دلالت کوی په دیر اهتمام دَ دے حکم باندے لَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَیْنَكُمْ ، دَ اکل معنیٰ مجازی عامه ده یعنی انتفاع اخستل په یو څیز سره پوره انتفاع (فائده اخستل)۔ نو دَ بل چا دَ مال اکل (خوراک) داغلبه کول دی په هغه مال باندے په طریقه دَ ظلم سره۔ اَمْوَالَكُمْ نه مراد دَ یو بل مالونه دی په قرینه دَ بینکم سره۔
بِالْبَاطِلِ ، دَ دینه مراد هغه طریقه ده چه دَ شرع نه خلاف وی لکه ربا ، جواری ، لوټ مار ، غصب ، غلا او تول او پیمانه کښ کمے کول او نور فاسد او غلط عقد ونه او حیلے کول او نور فاسد او غلط عقدونه او حیلے کول ۔ ابن جریر او ابن کثیر ذکر کړیدی چه دا هم پکښ داخل ده چه یو شخص دَ چا نه یو جامه په بیع سره واخلی او بیا وائی چه که خوښه م شوه نو وا به ئے اخلم او که خوښه م نشوه نو واپس به ئے کړم او مثلاً یو روپئ په ورسره درکړم ربا دا سے شرط خرڅوونکے اولږد) اګرچه ورکوونکے په دے باندے رضا وی لیکن دا عقد فاسد دے۔
اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ ، دا استثناء منقطع ده ځکه چه تجارت شرعیه په باطل کښ داخل نه دے او ضمیر دَ تکون اموال ته راجع دے۔ عَنْ تَرَاضٍ ، متعلق دے په صادرة پټ پورے او منکم متعلق دے په کائن (پټ) پورے۔
تِجَارَت په لغت کښ مطلق عوض (بدل) ته وئیلے شی او په اصطلاح کښ عبارت دے دَ بیع او شراء (اخستلو او خرڅولو) نه په شرطونو دَ هغے سره ۔ نو دلته ئے تخصیص دَ تجارت اوکړو ځکه چه دا ډیر واقع کیدونکے دے او ډیر پاک کسب دے ۔ او جائز ده چه دَ تجارت نه عامه معنیٰ مراد کړیشی یعنی دَ بل چا نه مال منتقل کیدل په شرعی طریقے سره که بیع او شراء وی او که هبه او اجاره وی او که میراث وی (اللباب ، روح المعانی)

عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ، تراض خوشحالی دَ نفس ده دَ دواړو طرفونو نه چه موافق وی دَ حکم شرعی سره - په دیکښ بیع دَ خیار شرط داخل دے - او تراضی دوه قسمه ده - اول په قول سره او هغے نه قبول وئیلے شی دَ هغے تفصیل ابن کثیر ذکر کړے دے -
وَلَا تَقْتُلُوْا اَنْفُسَكُمْ، دَ دینه مراد قتل کول دَ یو بل دی ځکه چه ټول مؤمنان پشان دَ یو نفس دی
سوال :- قتل دَ خپل ځان خوهندوان ثواب ګنړی لیکن دَ مؤمنانو خو دا سے عقیده نشی کیدے نو دَ مؤمنانو دَ پاره ئے دا خطاب ولے ذکر کړو ؟
جواب :- که دَ نفس نه مراد خپل ځانونه شی نو بیا مطلب ئے دا دے چه دَ ډیر غم او تکلیف دَ وجے نه بعضے جاهلان مؤمنان خپل ځان قتل کوی (خودکشی کوی) دَ دے وجے نه ئے دا نهی ذکر کړه - یا مراد دا دے چه دا سے کارمهٔ کوئ چه هغه سبب اوګرځی ستاسو دَ قتل دَ پاره - لکه قتلول دَ بل مسلمان ورور یا زنا کول روستو دَ واده نه یا مرتد کیدل - (اللباب)
او دَ ابوداؤد روایت دے چه په هغے کښ واقعه دَ عمرو بن العاص رضی الله عنه ذکر ده چه په سخته یخنیٔ کښ دَ غسل جنابت په ځائے تیمم اوکړو - او دَ دے آیت نه ئے استنباط کړے وو -
اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا، په دے کښ اشاره ده چه دَ باطل خوراکونو نه منع کول او دَ قتل نه نهی کول خاص رحمت دَ الله تعالیٰ دے -
فائده :- دَ مال خوراک په باطل طریقے سره او دَ قتل دَ نفس په مینځ کښ مناسبت دا دے که چرے تجارت په رضا سره جائز نه وے نو سبب دَ هلاکت وو او که په باطلے طریقے سره دَ یو بل مالونه خوړل جائز وے نو دا هم سبب دَ هلاکت دَ نفسونو وو چه خلقو به دَ یو بل سره جنګ جګړه کوله او قتل او قتال به پکښ کیدو -

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ عُدْوَانًا

او چا چه اوکړو دا کار (خلاف کول د احکامو نه) زیاتے کوونکے

وَّظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيْهِ نَارًاؕ

او ظلم کوونکے (په کمی کولو سره) نو زر دے چه داخل به کړو هغه لره اور ته.

وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿۳۰﴾

او دے دا کار په الله تعالیٰ باندے آسان۔

ت ۳: په دے آیت کښ تخویف اخروی دے او د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه دا آیت د ابتداء د سورت نه تر دے آیت پورے ټولو منهیاتو ته شامل دے۔ او ابن جریر وئیلی دی چه د دے سورت د نولسم آیت نه تر دے آیت پورے شامل دے ځکه چه د هغے نه د مخکښ آیتونو سره تخویفات ذکر شوی دی۔

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ، د فعل نه مراد ارتکاب د منهیاتو دے او ذٰلِكَ اشاره ده تیر شوے منهیاتو ته۔

عُدْوَانًا وَّظُلْمًا، دا دواړه حالونه یا مفعول له دی او په دے قید سره ئے احتراز اوکړو د سهو، نسیان او خطا نه ځکه چه هغه معاف دی۔ او فرق د عدوان او ظلم په مینځ کښ دا دی چه عدوان افراط (زیاتے) کول دی د حد نه او ظلم تفریط (نقصان) کول دی د حد نه۔ دا رنګ عدوان تعدی کول دی په بل چا باندے لکه د یتیمانو او کمزورو مال خوړل او ظلم ګناه کول دی په خپل ځان باندے لکه په باطل طریقے سره مال حاصلول یا محرماتو سره نکاح کول وغیره۔

فَسَوْفَ نُصْلِيْهِ نَارًا، اصلاء داخلول دی د عذاب ورکولو او سوځولو د پاره۔ نَارًا، تنوین د تعظیم یا د تنویع د پاره دے۔

وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا، ذٰلِكَ اشاره ده په اور کښ سوځولو ته۔ او دا ځکه په الله تعالیٰ باندے آسان دی چه د هغه قدرت

إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ

که ډډه کوی تاسو د هغه غټو ګناهونو نه چه منع کړے شوی یئ تاسو

عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ

د هغے نه تولرے به کړو ستاسو نه بدئ ستاسو

وَنُدْخِلْكُمْ مُدْخَلًا كَرِيمًا ﴿۳۱﴾

او داخل به کړو تاسو ځائے د داخلیدلو عزتمن ته۔

کامل دے څوک یئے مقابله نشی کولے او نه د ځانه یره کوی او علم یئے راګیروونکے دے د هر څیزونو هر ګناه پیژنی۔

ف۳۱۔ په دے آیت کښ بشارت دے روستو د تخویف نه۔ او د بشارت د پاره دوه امور ذکر دی اول تکفیر د سیئاتو (واړه ګناهونه معاف کیدل) دویم جنت ته داخلیدل۔

إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ، قرطبی (په طور د مناسبت سره) وئیلی دی چه هر کله په دے سورت کښ الله تعالی د بعضے ګناهونو نه منع اوکړه نو اوس وعده کوی د هغے نه په اجتناب سره د آسانتیا د صغائرو نه۔ او دا لفظ دلیل دے چه ګناهونه دوه قسمه دی څه غټ ګناهونه دی او څه واړه دی اګرچه بعضے په یو جهت سره غټ دی او په بل جهت سره واړه دی۔ او دا قول د جمهورو علماؤ دے۔ او ابو اسحاق اسفرئینی او ابوالمعالی او قشیری وئیلی دی چه ګناهونه ټول کبیره دی لیکن بعضو ته صغیره په نسبت د بل ګناه سره (چه هغه ډیر غټ وی) وئیلے شی۔ امام رازی وئیلی دی چه اکثر اهل علمو وئیلی دی چه الله تعالی د ټولو کبائرو تمیز او تعین نه دے کړے۔ حکمت پکښ دا دے که چرے دا تعین یئے کړے وی نو د دے آیت په وجے سره به په انسان کښ د وړو ګناهونو جراءت پیدا کیدلو او دا د حکیم د حکمت سره مناسب نه دے۔ هاں سره د دینه د بعضے کبائرو تعین کړے شوے دے په اشاراتو سره په آیاتونو کښ او په تصریح

سره په احادیثو کښ - او دَ دے په باره کښ دوه قسمه اقوال دی - اول قسم ذکر دَ تعین دَ کبائرو په تعین او په عدد سره. او په دیکښ ډیر احادیث دی - ابن کثیر تقریبًا شل احادیث ذکر کړیدی چه بعضے دَ هغے نه دلته ذکر کوو-

۱ حدیث دَ عبدالله بن عمر رضی الله عنهما (مرفوع) دے چه کبائر شرک بالله، عقوق (نافرمانی) دَ والدینو، قتل دَ نفس او یمین غموس (قسم کول قصدًا په دروغو سره) دی (بخاری، ترمذی، او نسائی)-

۲ حدیث دَ انس رضی الله عنه (مرفوع) دے چه اکبر دَ کبائرو شرک بالله، عقوق دَ والدینو او قول دَ دروغو دے (بخاری، مسلم)-

۳ حدیث دَ عبدالله بن مسعود رضی الله عنه (مرفوع) دے چه اعظم گناهونه درے دی اول دَ الله تعالیٰ سره شریک جوړول او دَ هغه شریک ته حاجات غوښتل- دویم قتل دَ خپل ولد او دریم دَ خپل گاونډی دَ ښځے سره زنا کول (بخاری، ترمذی)-

۴ حدیث دَ ابوهریره رضی الله عنه (مرفوع) دے چه اووه گناهونه موبقات (هلاکوونکی) دی شرک بالله، جادو کول، قتل دَ نفس په ناروا، ربا کول، دَ یتیم مال اخستل، دَ میدان جهاد نه تیخته کول او پاکدامنو ښځو ته دَ زنا تهمت کول (بخاری، مسلم)-

۵ دَ عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما بل حدیث (مرفوع) دے چه اکبر دَ کبائرو نه دا دے چه شخص خپل مور او پلار ته کنځل او لعنت کوی او معنیٰ ئے داده چه دَ بل چا مور او پلار ته کنځل کوی نو جواب کښ په هغه دَ ده مور او پلار ته کنځل کوی - (بخاری او ترمذی)-

۶ حدیث دَ ابن عباس او دَ ابن مسعود رضی الله عنهما (مرفوع او موقوف) دے چه اکبر دَ کبائرو شرک بالله دے- او نا امیدی دَ رحمت دَ الله تعالیٰ نه (چه هغے ته یاس او قنوط ویلے شی)، او دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه یره نه کول (ابن جریر، ابن کثیر)-

۷ حدیث دَ طاؤس چه دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه تپوس

اوکړے شو چه آیا کبائر اووه دی؟ هغه ورته اوفرمائیل چه او وه سوو ته نزدے دی لیکن نشته کبیره سره د استغفار نه او نشته صغیره سره د اصرار نه (ابن جریر، ابن کثیر) د احادیثو ذکر کولو نه روستو ابن کثیر بعضے کبائر په تعین سره ذکر کړیدی چه په هغے کښ د مخکښ ذکر کړے شوو نه علاوه نور دا دی بد کاری کول د تارینه د یو بل سره، شراب څکل، غلا کول، غصب کول، د رمضان روژے نه نیول (بے عذره)، صله رحمی (خپلولی) قطع کول، په وزن او پیمانه کښ خیانت کول، مونځ د وخت نه مخکښ کول بغیر د حکم شرعی نه، دا رنګ مونځ د وخت نه روستو کول بغیر د حکم او عذر شرعی نه، دروغ جوړول په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے، صحابه کرامو ته بد ردوئیل، ګواهی پټول، رشوت اخستل، زکوٰة نه ورکول، امر بالمعروف او نهی عن المنکر سره د قدرت نه پریخودل او طعن کول په اهل قرآن او په اهل علمو باندے۔

دویم قسم په تعریف د کبائرو کښ د سلفو وغیره اقوال دی؛ اول قول، د بعضے شوافعو دے چه کبیره هغه دی چه د هغے په باره کښ خاص وعید وی په نص د کتاب الله یا سنت کښ۔ دویم قول، د امام بغوی دے چه کبیره هر هغه ګناه ده چه سبب وی د پاره د ایجاب د حد شرعی۔ دریم قول د ابن عباس رضی الله عنهما دے چه هر هغه ګناه کبیره ده چه د هغے په باره کښ ذکر د اور، جهنم وی یا غضب یا لعنت یا عذاب وی۔ څلورم قول هر حرام لعینه چه هغے ته نهی وارد وی۔ پنځم قول، هر هغه ګناه کبیره ده چه د هغے په تحریم باندے نص موجود وی۔ (دا اقوال آلوسی بغیر د نسبت نه ذکر کړیدی)۔ شپږم قول د ابن مسعود رضی الله عنه دے چه کبائر هغه دی چه نهی ئے کړیده د هغے نه په دے سورت کښ چه هغه تقریبًا درے دیرش دی۔

نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ، تکفیر، په اصل کښ پټولو ته وئیلے شی او د دینه مراد معاف کول او مغفرت کول دی۔ او د سَيِّاٰت نه

مراد په اتفاق دَ اهل سنت والجماعت سره صغيره گناهونه دي.
فائده :- دَ اهل سنت والجماعت مسلک دا دے چه يو مؤمن شخص په گناه کبيره سره (بغير دَ شرک نه) نه کافر کيږي او گناه کبيره په توبے سره معاف کيږي او که الله تعالیٰ اوغواړي نو په خپل فضل سره يُے هم معاف کوي- او گناهونه صغيره په توبے سره معاف کيږي او دا رنګ په نيکو اعمالو سره هم رژيږي- او دَ معتزلو مسلک دا دے چه گناه کبيره بغير دَ توبے نه نه معاف کيږي او گناه صغيره په نيکو اعمالو سره هله معاف کيږي چه دغه شخص گناه کبيره اونکړي- او چه گناه کبيره يُے کړے وي او توبه يُے نه وي ويستلے نو په نيک اعمالو سره دَ ده صغيره گناهونه نه معاف کيږي-
سوال :- په دے آيت کښ يُے خو اجتناب دَ کبيره نه شرط گرځولے دے دَ پاره دَ معاف کولو دَ صغيره گناهونو- نو دا دلالت کوي چه په دے مسئله کښ چه دَ معتزلوٗ مسلک حق دے ؟
جواب ۱ه :- په لفظ دَ اِنْ سره چه يو څيز معلق کړے شي نو په وخت دَ عدم شرط کښ لازم نه دے عدم دَ هغه څيز- او قرآن کريم کښ داسے ډير آيتونه دي- اول (فَاِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتَانِ) - ځکه چه گواهي دَ زنانه جائز ده اگرچه دوه ناريته موجود وي- دويم (وَاِنْ كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ وَّلَمْ تَجِدُوْا كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَّقْبُوْضَةٌ) يعني که يو شخص مسافر نه وي او کاتب هم موجود وي ليکن رهان جائز دے- دا رنګ سوره نساء ۳ او ۱۱۰، سوره نور ۳۳ :- صاحب اللباب نور هم ډير آياتونه ذکر کړيدي-
جواب ۲ه :- ابو مسلم وئيلي دي چه مراد دا دے چه په دے سورت کښ مخکښ کوم کبائر ذکر شول دَ هغے چه څوا ارتکاب کړے وي او بيا يُے پريږدي نو هغه به الله تعالیٰ معاف کړي-
جواب ۳ه :- دلته دَ کبائر نه مراد کفر او شرک دے په اعتبار

وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ

| اومه غواړئ | هغه چه غوره والے درکړیدې الله تعالىٰ په هغې سره |
|---|---|

دَ اقسامو دَ هغې سره يئے جمع ذکرکړيده ـ نو مراد دا دے چه کله تاسو دَ کفر او شرک دَ ټولو اقسامو نه ځان بچ کوی نو نورکبيره اوصغيره ګناهونه په الله تعالىٰ اپخپل فضل سره هم معاف کړی په قرينه دَ سورة نساء ۴۸ سره دا جواب صاحب اللباب په خپل تفسيرا و ملاعلى قارى په مرقات کښ ذکرکړيدے ـ
جواب ۴ :ـ دلته ذکر دَ اجتناب دے او دالفظ دلالت کوی په پريخودلو دَ ګناه سره دَ قدرت نه په کولو دغے باندے لکه چه په حديث دَ غار کښ يو شخص ذکر دے چه هغه په زنا باندے قادر شو ليکن دَ الله تعالىٰ دَ خوف دَ وجے نه يئے دَ هغې نه اجتناب اوکړ دا او دغه اجتناب کول دَ هغه دَ پاره عمل صالح جوړ شو او وسيله شوه ـ نو دلته مراد دا دے چه په ګناهونو باندے چه تاسو قدرت اومومئ ليکن دَ الله تعالىٰ دَ خوف دَ وجے دَ هغې نه ځان اوساتئ نو دا تاسو له عمل صالح اوګرځيدلو او په دَ سره واړه ګناهونه معاف کيږی ـ او دا جواب بے تکلفه دے ـ
وَنُدْخِلْكُمْ مُّدْخَلًا كَرِيْمًا ، دا بشارت دے په جنت سره ـ يعنى چه سيئات معاف شی او دَ کبائرو نه اجتناب اوکړشی نو جنت ته به په دخول اول سره داخليږی ، مُدْخَلًا ، په پيښ دَ ميم سره مصدر ميمی يا ظرف مکان دے ليکن ظرف مکان په دا سے مقام کښ مفعول به وی دَ اخفش په نيز او مفعول فيه دے دَ سيبويه په نيز ـ كَرِيْمًا ، خائسته چه ډير منافع پکښ وی او دا صفت دَ مقام راځی لکه مقامٍ کريمٍ ـ

بَعۡضَكُمۡ عَلٰى بَعۡضٍ ؕ لِلرِّجَالِ

بعضے ستاسو نه په بعضو باندے ، دَپاره دَ نارينو

نَصِيۡبٌ مِّمَّا اكۡتَسَبُوۡا ؕ وَلِلنِّسَآءِ

برخه ده دَ وجے دَ هغه عمل نه چه دوی کړيدي او زنانو لره

نَصِيۡبٌ مِّمَّا اكۡتَسَبۡنَ ؕ وَسۡـَٔلُوا اللّٰهَ

برخه ده دَ وجے دَ هغه نه چه دوی کړيدے ، او غواړئ دَ الله تعالىٰ نه

مِنۡ فَضۡلِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ

دَ فضل دَ هغه نه يقيناً الله تعالىٰ دے

بِكُلِّ شَىۡءٍ عَلِيۡمًا ﴿۳۲﴾

په هر څيز پوهه -

۳۲ :- په دے آيت کښ پنځلسم حکم دے دَپاره دَ دفع کولو دَظلمونو يعنى حسد کول سبب دَ مظالمو دے نو دَ ديته ځان نه ساتئ -

ربط ۱ :- مخکښ ئے منع اوکړه دَ باطل خوړاکونو او قتلونو نه نو اوس نهى کوى دَ سبب دَ هغے نه چه رسول کوى هغه حسد ته -

ربط ۲ :- مخکښ تطهير دَ انداموذکرکړے شو دَ حرامو نه نو اوس تطهير دَ قلب ذکر کوى دَ حسد نه چه سبب دَ حرامو او ګناهونو دے -

وَلَا تَتَمَنَّوۡا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعۡضَكُمۡ عَلٰى بَعۡضٍ ، تمنى، طلب دَ يو څيز دے په طريقه دَ ارمان کولو سره او اکثر په ممتنعاتو کښ استعماليږى او کله کله په ممکنا تو هم استعماليږى -

مَا فَضَّلَ اللّٰهُ الخ ، په ديکښ مرتبه، جاه، عزت او دَ مال فراخى (امورکونيه) - دا رنګ زيا ته حصه دَ نارينه په ميراث کښ

وغیره ټول داخل دي۔
ترمذي روایت راوړیدے دَ ام سلمه رضي الله عنهما نه چه دے ویلي وو چه نارینه غزا کوي او مونږ نه کوو او زمونږ دَپاره په میراث کښ نیمه برخه ده نو دا آیت نازل شو۔ او دا تمنی معنیٰ دَ حسد ده یعني په آیت کښ دَحسد نه منع ذکر ده۔ او دَحسد قباحت دَ سورهٔ فلق په تفسیر کښ په ان شاء الله ذکر شي۔ اودَ دے په قباحت او بدئ کښ احادیث ډیر دي۔ او کوم حدیث کښ چه جواز دَحسد په دوه څیزونو کښ ذکر دے نو امام بخاري رحمه الله دَ هغے معنیٰ په غبطے رسیالئ کولو سره کړیده دَ هغے نه حسد نه دے مراد۔ نو دَ دغه حدیث په بناء په آیت کښ حسد او غبطه دواړه داخل دي. چه منع دي لیکن قرطبي ویلي دي چه کله تمنا او غبطه کولو کښ بل شخص ته تعرض کول مقصد نه وي نو هغه جائز دے لکه په صحیح حدیث کښ دي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم دَشهادت تمنا کوله (وَدِدْتُ اَنْ اُحْیٰی ثُمَّ اُقْتَلُ ثُمَّ اُحْیٰی ثُمَّ اُقْتَلُ) زارمان دے چه ژوندے شومے بیا قتل شومے بیا ژوندے شومے بیا قتل کړے شومے) - او په دے تمنا (چه منع ترے شویده) او حسد کښ دَ حرمت وجه دا ده چه دَ الله تعالیٰ په تقسیم باندے رضا نه وي بلکه په الله تعالیٰ باندے اعتراض کوي او سبب دَ دشمنئ او ګرځي دَ یو بل ترمینځ او دا غتې ګناهونه دي۔

لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوا وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِّمَّا اكْتَسَبْنَ ، دا جمله دَ ماقبل نهي دَپاره علت دے یعني دَ برخو تقسیم او دَ صفاتو او حالاتو تقسیم الله تعالیٰ په خپل حکمت سره په مناسب طریقے سره کړیدے او په دے باندے اعتراض صرف حسد کوونکي کوي۔ او دا جمله دلیل دے چه حسد دَ نارینو او زنانو ټولو دَپاره حرام دے۔ او په مخکښ جمله کښ لفظ دَ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ټولو نارینو او زنانو ته

شامل دے۔ او په دے جمله کښې دَ مفسرینو ډیر اقوال دی۔ اول قول دَ قتاده دے چه دَ اکتساب نه مراد عام دے که عمل دَ خیر وی اوکه دَ شر وی۔ او نصیب ثواب او عقاب دواړو ته شامل دے۔

دویم قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما دے دَ نَصِيبٌ، نه مراد دَ میراث هغه برخے دی چه په قرآن او سنت کښې مقرر شوی دی او دَ اکتساب نه مراد دَ دوی صفات او استعداد دے په طریقه دَ تفاوت سره او دیته اکتساب مجازاً وئیلے دے (آلوسی)۔ دریم قول دَ ابوعبید الله او ابن عباس رضی الله عنهم نه روایت دے چه دَ دینه مراد دَ دنیا نعمتونه دی چه په تجارتونو، زراعت او نورو کسبونو سره حاصلیږی ځکه چه په تقدیر کښې مقرر دی۔ نو دَ نَصِيبٌ نه مراد هغه دے چه الله تعالیٰ په تقدیر کښې مقرر کړیدے (آلوسی)۔

وَسْئَلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهٖ، په دے جمله کښې دوه اقوال دی۔ اول قول دا چه دویم مفعول پټ دے دَ ابن عطیه په تیز باندے یعنی امانیکم پټ دے او دَ ابوعلی فارسی وغیره په نیز باندے شیئاً پټ دے۔ او مِنْ فَضْلِهٖ، کښې په اوله توجیه باندے من اجلیه دے او په دویمه توجیه صفت دے دَ شیئاً دَ پاره۔ او پټوالے دَ مفعول دلالت کوی په تعمیم باندے۔ دویم قول دا چه مِنْ زیاتی دے او دا قول دَ اخفش دے۔ او دا امر مقابل دَ تمنی دے یعنی په تمنا کولو سره هیڅ نه حاصلیږی بلکه دَ الله تعالیٰ نه سوال کوئ او دُعا غواړئ نو هغه ئے قبلوی او ورکوی۔ قرطبی وئیلی دی چه دا امر دلیل دے چه دَ الله تعالیٰ نه سوال کول واجب دے۔ او په روایت دَ ابن مسعود رضی الله عنه سره حدیث مرفوع دے چه سوال کوئ دَ فضل دَ الله تعالیٰ نه ځکه چه الله تعالیٰ سوال کوونکی محبوب کنړی او افضل عبادت انتظار دَ فراخئ دے۔ او بل روایت دَ ابوهریره رضی الله عنه نه مرفوعاً نقل دے چه څوک دَ الله تعالیٰ نه

وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا
او د پاره د هر چا مقرر کړي دي مونږ وارثان د هغه مال
تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ
چه پریخودلے وي مور او پلار او خپلوانو
وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ
او هغه کسان چه کلک شوي دي قسمونه ستاسو
فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ
نو ورکوئ هغوي ته برخه د هغوي . يقينًا الله تعالیٰ

سوال نه کوي نو الله تعالیٰ په هغه باندے غضب کوي۔ د دا په روايات ترمذي رحمه الله ذکر کړيدي۔
فائده :۔ په صيغه دَ امر مخاطب کبنې دَ سوال نه، دَجمهورو په نيز قاعده داده چه دَ واو يا فاء نه روستو وي نو همزه پکښې بښکاره وي لکه (فَإِن كُنتَ فِي شَكٍّ مِّمَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ فَاسْأَلِ الَّذِينَ يَقْرَءُونَ الْكِتَابَ مِن قَبْلِكَ) (يونس ۹۴) او دا آيت وَاسْئَلُوا دَ کسائیٰ او ابن کثير په نيز په ديکښې تخفيف (همزه غورځول) جائز دی۔ او هرکله چه واو او فاء نه وي يا امر غائب وي نو اتفاق دے دَ قراؤ په تخفيف باندے لکه (سَلْ بَنِي إِسْرَائِيلَ) (وَلْيَسْأَلُوا مَا أَنفَقُوا) (الممتحنه ۱۰) (اللباب)۔
إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ، يعنی الله تعالیٰ تقسيم او تقدير دَ خپل علم موافق کړيدے۔ دا رنګ دَ چا سوال قبلول دَ خپل حکم مطابق کوي او عالم دے په زړونو دَ حسد کوونکو باندے۔

كَانَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ شَهِيْدًا ﴿۳۳﴾

پہ ہر خیز باندے حاضر ناظر دے۔

۳۳:۔ پہ دے آیت کښں شپارسم حکم دے دَ میراث پہ بارہ کښں دَ ظلم دَ دفع کولو دَ پارہ۔
ربط ۱:۔ داعلت دے دَ لاتتمنوا ما فضل اللہ دَ پارہ یعنی دَ بل چا پہ مال کښں طمع مہ کوئ کہ ژوندے وی او کہ مړوی ځکہ چہ اللہ تعالیٰ دَ ھغے حقدار مقرر کړیدی۔
ربط ۲:۔ یا دا متعلق دے دَ للرجال نصیب سرہ یعنی دغہ نصیب (برخہ) دَ میراث پہ ولایت دَ ولادت او قرابت پورے متعلق دے۔

وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْاَقْرَبُوْنَ ، کُلٍّ لفظ مضاف استعمالیږی او کلہ چہ قطع شی دَ اضافت نہ نو پہ عوض دَ مضاف الیہ کښں تنوین راځی او پہ معنیٰ کښں ئے مناسب مضاف الیہ را وستلے کیږی۔ او دلتہ پہ تقدیر دَ کلام کښں دَ مفسرینو ډیر اقوال دی۔ بعضے دَ ھغے نہ دَ فائدے دَ پارہ ذکر کووم۔
اول قول دا دے چہ مضاف الیہ ھالك یا تارك پټ دے او تارك سرہ مالاً ھم پټ وی او جعل نہ مراد حکم شرعی دے او موالی نہ مراد اھل ولاء پہ معنیٰ دَ قرب او میراث سرہ دے۔ او مِمَّا تَرَكَ متعلق دے پہ معنیٰ دَ موالی پورے یعنی یلوُنہ یرثونہ او من دَ تبعیض دَ پارہ دے او ما موصولہ پہ معنیٰ دَ مال سرہ دے او الوالدان والاقربون بدل دے یا بیان دے دَ موالی دَ پارہ او الف لام پہ الوالدان والاقربون کښں بدل دے دَ مضاف الیہ ضمیر نہ یعنی والداھم واقرباءھم۔ نو معنیٰ دا شوہ چہ دَ ھر یو وفات شوی شخص یا ھر پریخودونکی دَ مال دَ پارہ مونږ مقرر کړیدی خپلوان وارثان چہ وراثت اوړی بعضے دَ ھغے مال نہ چہ پریخودلی وی ھغہ مړی۔ او ھغہ خپلوان وارثان

مور او پلار او نور خپلوان دی - او په ذکر دَ الوالدان سره اولاد ته هم اشاره ده یعنی ولادت سبب دے دَ پاره دَ میراث - په دے توجیه سره دا آیت متعلق دے دَ للرجال نصیب مما اکتسبوا سره -
دویم قول، دَ کلٍّ مضاف الیه شئ پټ دے - مما ترک کښ ما نه مراد حال دَ میراث دے، معنیٰ دا ده چه دَ یو څیز دَ پاره دَ هغه څیزونو او مالونو نه چه پریخودلے وی مور او پلار او خپلوانو روستو دَ مرګ نه مونږ مقرر کړی دی مستحق دَ میراث دَ پاره - او په دے معنیٰ سره دا مناسبت لری دَ ما فضل الله به بعضکم علی بعض سره -
دریم قول، مضاف الیه دَ کل منکم پټ دے - موالی په معنیٰ دَ عصبه وارثانو دے او من دَ تبعیض دَ پاره دے او ما په معنیٰ دَ من موصوله دے، الوالدان والاقربون فاعل دے دَ ترک دَ پاره یعنی عصبه دَ هغه کسانو نه چه پریخودلے وی مور او پلار چه هغه تره، نیکه او ماما دے - او پریخودلے وی اقربون چه هغه دَ تره ځوے دے اګرچه هغه خکته وی او وریرونه او دَ هغوی اولاد دی - نو آیت کښ اشاره ده چه روستو دَ ذوالفروضو نه چه په مخکښ دوه آیتونو دَ میراث کښ ذکر وو) میراث دَ پاره دَ عصبۀ دے په نیز دَ جمهورو - او دَ بعضو په نیز ذوی الارحامو ته هم اشاره ده چه دَ هغے دوه قسمونه په تفصیل سره په حدیثو کښ ذکر دی - او په دے معنیٰ سره دا دَ میراث دَ آیت سره تعلق لری په طریقه دَ تکملے دَ هغے سره اګرچه دا دَ هغے نه ډیر روستو دے -
څلورم قول، مضاف الیه منکم پټ دے او په دیکښ مخاطب هغه کسان دی چه هغوی ته په لا تتمنوا ما فضل الله سره خطاب وو - موالی نه مراد هغه کسان دی چه دَ هغوی سره حلف (قسم) کړے شوے وی چه هغه ته مولا دَ موالات وئیلے شی - من دَ تبعیض دَ پاره دے او ما موصوله په

معنیٰ دَ الـذين دے یعنی دوستان دَهغه چا نه چه پریخودلے وی مور او پلار او خپلوانو یعنی هغوی ورسره ولایت دَ موالات په خپل ژوند کښ کړے وی او دیته ولاء قدیم وئیلی شی۔

وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ، په دے توجیه کښ دا عطف دے په الوالدان باندے یعنی چه تاسو دَ هغوی سره نوے قسم او عقد دَ رورولئ کړے وی نو دیته ولاء جدید وئیلے شی۔ په دے توجیه سره دا آیت دَ لا تتمنوا سره متعلق دے دا رنګ دا دَ میراث دا آیت تکمله ده۔ لیکن حکم دَ مولاد موالات روستو ذکر کیږی۔ دَ دے نه علاوه نور هم توجیهات صاحب اللباب او آلوسی وغیره ذکر کړیدی لیکن هغه دَ مقصد نه بعید او غیر مناسب دی۔

وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ اَيْمَانُكُمْ فَاٰتُوْهُمْ نَصِيْبَهُمْ، یوه توجیه مخکښ ذکر شوه چه دا عطف دے په الوالدان باندے۔ دویمه مشهوره او راجح توجیه دا ده چه دا دَ سر نه کلام دے او دا مبتداء ده او خبر ئے فاتوهم دے۔ او دَ عقد او معاقده په تفسیر کښ ډیر اقوال دی۔ اول قول دا چه دا حلف (قسم) دے یعنی په جاهلیت کښ به یو شخص دَ بل چا سره قسم او وعده اوکړه چه زما وینه ستا وینه ده زما جنګ ستا جنګ دے زما صلح ستا ده ته به زما وارث ئے او زه به ستا وارث یم ته به زما نه دیت ورکوے او زه به ستا نه۔ نو بیا به میراث دَ حلیف کښ دَ بل حلیف (دغه چه وعده به ئے یو بل سره کړیوه) شپږمه حصه وه۔ دا قول دَ ابن عباس سعید بن جبیر او حسن بصری رضی الله عنهم وغیره دے بیا دا منسوخ دے په اولوا الارحام بعضهم اولی ببعض فی کتاب الله (انفال ۷۵) سره۔ دویم قول، دا مواخات (رورورولی) ده ځکه هرکله چه مهاجرین مدینے طیبے ته راغلل نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ هغوی دَ انصارو سره عقد مواخات اوکړو نو میراث به په مواخات سره ملاویدلو نو دا هم منسوخ شو په تیر شوی آیت سره۔ دا قول هم دَ ابن عباس رضی الله عنهما

او تورو ته روایت دے۔ دریم قول، دا تبني ده یعنې یو شخص به بل کس ځان له د ځوئے په ځائے اونیولو او په هغه بان دے به یې د ځوئے احکام جاري کړل د هغه ښځه به یې اینګور ګنړله نو هغه له به یې په میراث کښ حق او برخه ورکوله، بیا دا منسوخ شو لکه په ابتداء د سوره احزاب کښ ذکر کیږي۔ څلورم قول، د دینه مراد عقد د نکاح دے یعنې خاوند او ښځه او د دوی میراث ثابت دے په دے سورت کښ مخکښ ذکر شوے دے۔ دا قول د ابو مسلم اصفهاني دے۔ په دے قول سره په آیت کښ نسخ نشته دے لیکن په دے ټولو کښ اول قول غوره دے لیکن نسخ نشته بلکه د نصیبهم نه مراد نصرت کول او عطیه ورکول دي میراث نه دے مراد۔ او دا ابن جریر د مجاهد نه او امام بخاري رحمه الله هم په کتاب التفسیر کښ نقل کړیدي۔
فائده:۔ موالي جمع د مولی ده او دا مشترک دے په ډیر معانو کښ آزادوونکے، آزاد کړے شوے غلام (ده ته مولا د عتاقت وئیلے شي)، حلیف (هر قسم دوست) ده ته مولا د موالات وئیلے شي، د تره ځوئے (تربور)، امداد کوونکے (په دے معنی الله تعالی ته وئیلے شي لکه ذالك بان الله مولی الذین امنوا (محمد ۱۱)، مالک په صفت د الله تعالی کښ لکه مولاهم الحق، عصبه خپلوان په دے آیت کښ په یو تفسیر سره دا مراد دے لکه چه مخکښ تیر شو۔
اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدًا، شهید په معنی د عالم، خبر لرونکے او لیدونکے دے۔ په دے جمله کښ ترغیب دے اطاعت کوونکو ته او تخویف دے عصیان او نافرماني کوونکو ته۔

اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ

نارینه حاکمان دی په ښځو باندے

بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى

په سبب دَدے چه غوره والے ورکړیدے الله تعالیٰ بعضو دَدوی ته په

بَعْضٍ وَّبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ

بعضو باندے او په سبب دَدے چه خرچ کوی دَ

اَمْوَالِهِمْ ۭ فَالصّٰلِحٰتُ قٰنِتٰتٌ

مالو نو خپلو ته (په زنانو باندے) نو نیکے زنانه تابعدارے کوونکے دی (دَ الله او رسول او

حٰفِظٰتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا

خاوند) ساتونکے دی (دَ ځان او دَ مال) په وخت دَ غائب کیدلو دَ خاوند په وجه دَدے

حَفِظَ اللّٰهُ ۭ وَالّٰتِيْ تَخَافُوْنَ

چه الله تعالیٰ دَدوی ساتنه کړیده او هغه زنانه چه یریږئ تاسو

نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ وَاهْجُرُوْهُنَّ

دَ بے خوئی دَ هغوی نه نو وعظ کوئ هغوی ته او جدا شئ دَ هغوی نه

فِي الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوْهُنَّ ۚ فَاِنْ

په ځائے دَ سملاستو کښ او وهئ هغوی لره نو که

اَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوْا عَلَيْهِنَّ

خبره یئ او منله ستاسو نو مه لټوئ په هغوی باندے

سَبِيْلًا ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيْرًا ﴿٣٤﴾

لار (دَ طلاق) یقینًا الله تعالیٰ اوچت دے لوئے دے۔

٣٤۔ په دے آیت کښ اولسلم حکم دے دَ دفعے دَ ظلم او دَ اصلاح دَ کورنئ دَ پاره۔

ربط ۱:۔ دَ مخکښې سره دا دے چه هر کله مخکښې آیت (ولا تتمنوا) کښې اشاره وه زیاتوالی دَ میراث دَ نارینه ته په زنانه باندے نو اوس په دے آیت کښې دَ هغې علت ذکر کوی چه قیام دَ نارینه دے په زنانه باندے۔

ربط ۲:۔ هر کله چه مخکښې یو عقد ذکر شو چه سبب دَ نصرت دے نو اوس بل عقد (نکاح) ذکر کوی چه سبب دَ قیام دَ سړی دے په ښځه باندے۔

ربط ۳:۔ دا چه مخکښې په قول دَ ابو مسلم اصفهانی کښې په والذین عقدت ایمانکم کښې چه نکاح مراد دے نو اوس دَ ښځے خاوند په کورنۍ کښې نظام او طریقه دَ استوګنے ذکر کوی دے دَ پاره چه کورنۍ کښې فساد پیدا نشی۔

اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ، الف لام په دواړو کښې جنسی دی یعنی جنسِ نارینه قیام لری په جنسِ زنانه باندے، بعضو وئیلی دی چه الف لام عهدی دی یعنی هغه سړے چه په هغه کښې سړیتوب، جراءت، او هوښیارتیا وی۔ ابوحیان وئیلی دی چه مطلق هغه سړے چه ډیره لری نه دے مراد ځکه چه ډیر کرته ډیرے والا وی خو په هغه کښې هیڅ نفع او ضرر نه وی۔ لیکن اول قول غوره دے۔ تخصیص دَ بعضِ افرادو په قرینه خارجیه سره کیږی۔ ابن عاشور وئیلی دی چه دلته دَ اَلرِّجَالُ نه صرف خاوندان او دَ النِّسَآءِ نه صرف ښځے نه دی مراد بلکه دواړه جنسونه مراد دی ځکه چه دا یو قانون کلی دے۔

قَوّٰمُوْنَ، صیغه دَ اسم فاعل دَ مبالغې او جمله اسمیه دلالت کوی په ډیر تاکید باندے۔ ابن عاشور وئیلی دی چه دا یو قانون کلی شرعی دے په دے باندے ډیر احکام شرعیه متفرع کیدے شی۔ قَوّٰمُوْنَ دَ قیام نه اخستلے شویدے او صیغه دَ مبالغې ده لیکن لفظ قَيُّوْم کښې دَ دینه مبالغه زیاته ده نو خاص دے په الله تعالیٰ پورے۔ قیام په اصل کښې او دریدلو ته وئیلے شی او استعمالیږی دَ پاره دَ اهتمام په یو څیز باندے او پوخ کیدل۔

دلته دَ مفسرينو نه دَ دے معنیٰ دا سے نقل ده - قرطبی وئیلی دی چه قائم دی په نفقه ورکولو اودفاع کولو دَ ښځو نه ردَنفقے ذکر مناسب نه دے ځکه چه هغه ئے روستو سبب ګرځولے دے او سبب او مسبب یوځیز نشی کیدے) او دا رنګ نارینه حاکمان، امراء او غازیان کیدیشی او زنانه دا سے نشی کیدے) روستو ذکرکوی قیام په ځیز بانديے په هغے باندے پوره نظرکول وی او دَ هغے په ساتنه کښ کوشش کول دی - نو دَ سړی په زنانه باندے دَ هغے تدبیرکول دی، ادب ورکول دی، په کور کښ ساتل دی او دَ بهر وتلو نه (بے ضرورته) منع کول دی او په زنانه باندے دَ هغه طاعت کول دی او دَ هغه هرحکم منل دی (خو چه دَ شرعے نه خلاف نه وی) - آلوسی وئیلی دی چه دَ سړو شان دا دے چه دوی به قیام کوی په زنانو باندے پشان دَ قیام دَ حاکمانو په خپل رعیت باندے په امر او نهی وغیره سره - صاحب اللباب وئیلی دی چه قوام هغه دے چه قائم وی په مصلحتونو او په تدبیر او په ادب ورکولو او په اهتمام کولو په ساتنه دَ هغوی باندے - ابن کثیر وئیلی دی چه سړے قیم دے په ښځه باندے معنیٰ دا چه دَ هغے رئیس او مشر دے او په هغے باندے حاکم دے او ادب ورکوونکے دے کله چه هغه کوږوالے کوی - او علی بن ابی طلحه دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت نقل کړیدے چه دَ قوامون معنیٰ دا ده چه امیران به وی په هغوی باندے او ښځه به دَ هغه طاعت کوی په مقام دَ طاعت کښ او طاعت دا دے چه هغه دَ اهل سره به احسان کوی او دَ هغه دَ مال حفاظت به کوی - او دَ دے قیام دَ پاره الله تعالیٰ دوه اسباب ذکر کړیدی اول وهبی دویم کسبی -

وهبی دا دے چه بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ، فضیلت دَ نارینو په زنانو باندے په ډیرو وجوهو سره دے چه بعضے حقیقیه دی او بعضے احکام شرعیه دی - هغه دا دی چه عقل او علم (په اکثری طور) دَ نارینه ډیر دی - په سختو کارونو

باندے یئے قدرت ډیر دے او قوت او دَ غشو ویشتل او په آسونو سورلئ کول وغیره - او امامت کبری او امامت صغری او جهاد کول، آذان وئیل، خطبه ورکول او شهادت ورکول په حدودو او قصاص کښ، په میراث کښ زیاته حصه اوړل، دیت ادا کول په قتل خطائ او قسامت کښ، اختیار دَ نکاح او دَ طلاق او دَ رجوع او په نسب کښ نسبت هغه ته - دا سے صاحب اللباب شمار کړی دی.
آلوسی وئیلی دی چه الله تعالیٰ دَ دے فضائلو تفصیل نه دے کړے ځکه چه دا ټول اهل عقلو ته معلوم دے - او هغه وئیلی دی چه رسالت او نبوت (په مشهور قول سره) او امامت کبری او صغری په سړو پورے خاص دی دا په زنانه کښ نشی کیدے - او ابن کثیر وئیلی دی چه سړے غوره دے دَ ښځے نه دَ دے وجے نه نبوت خاص دے په نارینه پورے او دارنګ لوے بادشاهئ خاص دی په نارینو پورے دَ وجے دَ حدیث دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم لَنْ يُّفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا اَمْرَهُمْ اِمْرَاءَةً (هیچرے نشی کامیابیدے هغه قوم چه اختیار دَ ولایت ښځے له ورکړی) (بخاری په روایت دَ ابوبکر رضی الله عنه) او دا رنګ منصب دَ قضا وغیره په سړی پورے خاص دی - قاسمی وئیلی دی چه په دے آیت سره دلیل نیولے کیږی چه ښځے لره نه دی جائز چه قاضیه ډِ شی لکه چه لوے امامت ورله نه دے جائز ځکه چه الله تعالیٰ نارینه قوام ګرځولے دی په ښځو باندے نو جائز نه دی چه ښځه ډِ قیام (مشری) کوی په نارینه باندے دا کلام یئے دَ سیوطی دَ کتاب اکلیل ته نقل کړیدے.
سوال :- دَ حدیث دَ لن یفلح قوم آه په سند کښ عوف ابن ابی جمیله دے چه هغهٔ ابوسهل وئیلی شی - په هغه باندے امام ذهبی په سیر اعلام النبلاء کښ او نورو ناقدینو سخته جرحه کړیده نو په دے حدیث باندے استدلال نشی کیدے؟
جواب علا :- دا دَ امام بخاری رحمه الله دَ رواياتو نه دے او ابن حجر دَ فتح الباری په مقدمه کښ ذکر کړیدے چه دَ امام بخاری روایت کول دَ یو راوی نه دلالت کوی دَ هغه په وثوق (اعتماد)

بانندے ځکه چه امام بخاري هم دَ اصحابو دَ جرح او تعدیل نه دے.
جواب ۲:- جرحه په هغه باندے په اعتبار قدریت او تشیع سره ده لیکن دَ اکثر محدثینو په نیز دَ اهل بدعت نه روایت کول صحیح دی کله چه په هغه کښ دَ وثوق نور صفات وی او په ده کښ هغه صفات دَ وثوق موجود دی - په سیر اعلام النبلاء شپږم جلد ص۳۸۳ کښ هغهٔ ثقه مکثر، او ثقه ثبت وئیلی دی - او تهذیب الکمال دوویشتم جلد ص۴۳۷ نه ترص۴۴۱ پورے وئیلی دی چه امام احمد ورته ثِقَه صَالِحُ الْحَدِيْث وئیلی دی - یحیٰی بن معین ورته ثقه او ابوحاتم ورته صدوق او صالح وئیلی دی او نسائیٔ وئیلی دی ثقه ثبت او مشهور دے په صدوق سره - او ابو داؤد وئیلی چه ټول جماعت دَ محدثینو دَ هغه نه نقل کړیدے نو دَ دے وجے نه دَ ده روایت قبول دے.
جواب ۳:- دَ عوف نه ماسیوا نورو راویانو هم دَ عوف متابعت کړیدے یعنی ترمذی دَ حمید الطویل عن الحسن عن ابی بکر رضی الله عنه نه روایت راوړیدے - سنن نسائیٔ هم په دغه سند سره ذکر کړیدے - امام احمد رحمه الله په مسند کښ دَ ابو عبد الرحمن بن جوشن عن ابیه عن ابی بکرہ - په سند سره ذکر کړے دے او دا سے سند په مسند دَ طیالسی کښ هم شته دے - دارنګ امام احمد دَ حمید عن الحسن عن ابی بکره رضی الله عنه سند هم ذکر کړیدے - او دارنګ دَ مبارک بن فضاله عن الحسن عن ابی بکر رضی الله عنه سند ذکر کړیدے (مسند امام احمد جلد پنځلسم صفحات ص۲۱۶، ص۲۳۵، ص۲۳۷) دارنګ مستدرک دَ عبد العزیز بن ابی بکر عن ابیه سند راوړیدے او دَ حمید الطویل سند ئے هم ذکر کړے دے (جلد څلورم ص۲۹۱) او په مسند الشهاب دویم جلد ص۵ کښ عن مبارک بن فضاله عن الحسن عن ابی بکر رضی الله عنه سند ذکر دے - او په دے سند سره صحیح ابن حبان اووم جلد ص۲۵ او معجم الصحابه دَ ابن قانع دریم جلد ص۱۴۳

کښې عتیبه بن الرحمٰن بن ابي بکره عن ابیه سند ذکر دے.
او مصنف دَ ابن ابي شیبه پنځلسم جلد ص۲۶۶ کښې هم دا سند ذکر کړیدے - نو معلومه شوه چه په دے سند کښې دَعوف په متابعت کښې حمید الطویل، ابوعبد الرحمن بن جوشن، مبارک بن فضاله، عبد العزیز بن ابي بکره او عبد الرحمٰن بن ابي بکره اماما دَحدیث ذکر دی.

**فائده** :- دلته ما اوږده خبره دَ دے وجے نه ذکر کړه چه دَ دے زمانے اکثر بے دینه یا دَ دین نه ناخبره خلق زنانو له مشري، صدارت یا وزارت عظمی دَ ملک ورکوي او دا جائز ګنړي او په حدیث دَعوف بانده اعتراض کوي نو ان شاء الله چه دَ دے تحقیق او تفصیل نه روستو خبره واضح شوه.

وَبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ، دا دویم سبب (کسبي) دے دَ پاره دَ اثبات دَ قیام دَ نارینو په زنانو بانده - او دا عقلي تقاضا هم ده ځکه چه همیشه انفاق کوونکے حاکم وي په هغه چاچه خرچه ئے کوي - او صحیح حدیث کښې هم وارد دي چه هغه لاس چه انفاق کوونکے دے هغه ید علیا (اوچت لاس) دے.
هاں دَ دے کسبي سبب په وخت دَ عدم کښې قیام دَ سړي په خپله ښځه بانده ختمیدے شي - تفصیل ئے قرطبي لیکلے دے چه هر کله خاوند دَ نفقے دَ ښځے نه عاجز شو نو دے په هغے بانده قوام (حاکم) نشي کیدلے نو دا سے وخت اختیار دَ فسخ دَ نکاح دَ قاضي دَ پاره ثابت دے او په دے سره امام مالک او شافعي رحمهم الله ثابت کړے دے ثبوت دَ فسخ دَ نکاح په وخت دَ فقر او غربت دَ خاوند دَ نفقے اوجاے ورکولو نه اګرچه دَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز نه دے ثابت بلکه هغه له به مهلت ورکیدےشي تر حالت دَ آسانتیا پورے - او دلته دَ مَآ اَنْفَقُوْا نه مراد مهر، نفقه او استوګنه وغیره ده چه حقوق واجبه دي په خاوند بانده دَ ښځے - فَالصّٰلِحٰتُ، دَ خاوند دَ حال دَ ذکر کولو نه روستو حال دَ زنانه او ورسره طریقه دَ قیام دَ خاوند ذکر کوي - او دَ زنانه دوه حالا

ذکر کوی صالحات او ناشزات - دَ صالحات نه صلاح شرعي مراد ده۔ او دا مبتداء ده او قانتات ئے خبر دے۔
قٰنِتٰتٌ، معنیٰ ئے دا ده چه اطاعت کوونکی وی دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم او دَ خپل خاوند۔ لیکن دَ خاوند اطاعت کښې شرط دا دے چه دَ ګناه کار کښې به دَ هغه طاعت نه کوی۔
حٰفِظٰتٌ لِّلْغَیْبِ، دَ حٰفِظٰتٌ نه مراد حفاظت کوونکے دی خپلو نفسونو او دَ مال دَ خاوند، او لام په معنیٰ دَ فی دے یا لام دَ پاره دَ وخت دے لکه لدلوك الشمس سورة اسراء کښې او غیب مصدر دے په معنیٰ دَ غیبوبت دَ خاوند لکه چه په لم اخنه بالغیب سورة یوسف کښې دے - او دَ دے تائید حدیث دَ ابوداؤد الطیالسی دے چه دَ ابو هریرة رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه غوره دَ ښځو نه هغه دی چه هر کله ته راے خاوند ه) ورته ګورے نو تا خوشحاله کوی او کله چه ته ورته حکم کوے نو ستا طاعت کوی او کله چه ته دَ هغے نه غائب ئے نو حفاظت کوی دَ خپل نفس رستا دَ پاره) او ستا دَ مال، او دا آیت کریمه ئے اولوستلو۔
الوسی او صاحب اللباب بله توجیه دا لیکلے ده چه لام دَ الغیب په خپلے معنیٰ سره دے او معنیٰ ئے دا ده چه حفاظت کوی دَ خاوند دَ رازونو او دَ پټو حالاتو، او رازونو ته غیب وئیلے شي - غوره تفسیر اول دے ځکه چه په حدیث سره ثابت دے۔
بِمَا حَفِظَ اللهُ، نحاس وئیلی دی چه باء سببیه ده او مَا مصدریه دے او دَ حفظ دَ الله تعالیٰ نه مراد امداد او توفیق دے او بیخ کول دَ دوی دَ ګناه نه - او زجاج وئیلی دی چه مراد دَ حفظ نه امر دَ الله تعالیٰ دے خاوندانو ته په ادا کولو دَ مهر او دَ نفقے سره نو دَ هغے په بدله کښې ښځو لره دَ خپل نفس او دَ خاوند دَ مال حفاظت ضروری دے - او بعضو وئیلے دی چه حفظ په معنیٰ دَ استحفظ دے یعنی په سبب دَ دے چه

الله تعالیٰ دَ زنانو نه طلب دَ حفاظت دَ نفس او دَ مال دَخاوند کړیدے په واجب کولو سره په هغوی باندے.

وَالّٰتِیْ تَخَافُوْنَ نُشُوْزَهُنَّ، دا دویم حال اوقسم دے دَ ښځو یعنی ناشزات لیکن صالحات ئے په اسم فاعل سره ذکر کړو او ناشزات ئے او نه ویل ځکه چه دَ مسلمانانو ښځو غالب حال صلاحیت وی او نشوز پکښ کله کله پیدا کیږی.

تَخَافُوْنَ، دَ خوف نه مراد هغه حالت دے چه په زړه کښ پیدا کیږی په وخت دَ راتللو دَ یو مکروهه څیز په زمانه مستقبل کښ او دا علم ظنی وی. نُشُوْزَهُنَّ، نشز په اصل کښ پورته کیدلو ته ویلے شی لکه وَاِذَا قِیْلَ انْشُزُوْا فَانْشُزُوْا (سورة مجادله) دا رنګ نُنْشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوْهَا لَحْمًا (سورة بقره) او پورته (راوچتے) زمکے ته هم ویلے شی. او دلته نشوز دَ ښځے دَخپل خاوند دَ حکم نه خلاف کول دی په اطاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم او دَ خاوند خپل کښ او بد کتل دَ ښځے دی خاوند لره. او کله دا صفت په خاوند کښ هم راځی لکه دَ دے سورت په آیت ۱۲۸ کښ دی یعنی نفرت کول دَخاوند دَ خپلے ښځے نه. نو په دے نفرت کښ معنی دَ ترفع (ځان اوچت کڼړلو) راځی. او صاحب اللباب دَ امام شافعی رحمه الله نه نقل کړیدی چه دلیل دَ نشوز کله قولی وی او کله فعلی وی.

قولی دا دے چه مخکښ به خاوند دے ښځے ته آواز کوو نو دے به لبیك ویلو او کله به چه هغه ورسره خبرے کولے نو دے به په عاجزئ سره اوریدلے او ښه به پرے لګیدلے لیکن ناسا په داحالت بدل شی. او فعلی دا دے چه کله به خاوند کور ته داخل شو نو دا به پاڅیدله او کله به چه هغه ورته دَ څه کار حکم او کړو نو دے به زر په خوشحالئ سره کولو دا رنګ چه هغه به خپلے بسترے ته را او بلله نو په خوشحالئ سره به حاضریدله لیکن دا حالت ئے ناسا په بدل شو نو دیته علامات دَ نشوز ویلے شی. په دے علاماتو سره علم

دَ نشوز حاصل شو نو روستو حکم په دے علاماتو باندے مرتب دے.
فَعِظُوْهُنَّ، قرطبی وائی چه وعظ دے ورته اوکړی په کتاب دَ
الله تعالیٰ سره. (کوم چه الله تعالیٰ په ښځو باندے دَ خاوند سره
حسن صحبت واجب کړیدے او دا رنګ اقرار کول په اوچتو
درجو دَ خاوند سره حسن صحبت واجب کړیدے او دا رنګ
اقرار کول په اوچتو درجو دَ خاوند چه په دے آیت کښ ذکر دی).
او دا حدیث دَ نبی صلی الله علیه وسلم دے ورته بیان کړی
چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه که چرته ما
اجازت ورکولے یو شخص ته چه بل شخص ته دِ سجده اوکړی
(دَ اکرام او دَ عبادت هر یو مراد ده) نو ما به ښځو ته اجازت
کړے وے چه خاوندانو ته دِ سجده کوی (بخاری) -
بل حدیث دا دے چه کله خاوند خپله ښځه خپلے بسترے
ته را اوبلی او هغه انکار اوکړی نو ملائک په دغه ښځه باندے
ترسبا پورے لعنت وائی (بخاری) - او دا سے روایت په مسلم
کښ هم دے - نو دا سے آیاتونه او احادیث او دَ تخویف
خبرے دِ هغے ته دَ نصیحت په طور ذکر کړی - که چرے هغه
ښځه اومنی نو ښه ده کنی بل امر دا دے چه وَاهْجُرُوْهُنَّ
فِی الْمَضَاجِعِ، مَضَاجِعِ جمع مضجع ده - دا هغه مکان دے
چه په هغے کښ انسان خپله ډډه لګوی اهجروهن کښ ډیر اقوال
دی دَ مفسرینو مشهور قول دا دے چه دا دَ هجر او هجران
نه اخستلے شوے دے - پریخودلو او لرے کیدلو ته وئیلے شی نو
دَ ابن عباس او سعید بن جبیر رضی الله عنهم په قول معنیٰ دا
ده چه دَ دوی سره جماع (کوروالے) مه کوئ - او دَ ضحاک او
سدی قول دا دے چه په بستره کښ ورته شا کړئ او خبرے ورسره
مه کوئ - او دَ مجاهد قول دا دے چه دوی لرې پریږدئ په بستره
کښ او خپله په بله بستره کښ پریوځئ - او دَ عکرمه او حسن
بصری په نیز دا دَ هجر نه اخستلے شوے قبیح کلام ته وئیلے
شی لکه چه دا یو قول دے په تفسیر دَ تهجرون (سورة مؤمنون)

کیں - نو معنیٰ دا دہ چہ سختیٔ کویٔ دَ دوی سرہ او مضاجع پہ معنیٰ دَ بیوت سرہ دے یعنی پہ کورونو کیں - او دَ ابن جریر پہ نیز دا ھجار نہ ماخوذ دے او ھجار ھغہ رسیٔ دہ چہ پہ ھغہ سرہ دَ اوبن کوډے تړلے کیږی - نو معنیٰ دا دہ چہ او تړیٔ دوی لرہ پہ بسترو کیں دَ پارہ دَ تنګولو دَ ھغوی یا پہ زور ورسرہ جماع اوکړیٔ - دا قول ابن جریر غورہ کړے دے او پہ نورو اقوال ئے اعتراضونہ کړیدی او ابن جریر دَ دے دَ پارہ یو غریب (نا اشنا) حدیث ذکر کړیدے - لیکن زمخشری او ابن عربی پہ دے باندے سخت رد کړیدے - او بیا آلوسی پہ زمخشری باندے رد کړیدے دَ پارہ دَ اثبات دَ جواز دَ دے احتمال - بیا ھر کلہ چہ پہ دغہ طریقو سرہ ھجران فائدہ اونکړے نو دریم حکم دا دے چہ - وَاضْرِبُوْهُنَّ ، او دیتہ ضرب تادیبی (دَ ادب وھل) وئیلے شی لکہ څرنګہ چہ یعنی دَ ادب او علم دَ زدکړے دَ پارہ وھلے کیږی - او دَ ضرب نہ مراد ضرب غیر مبرح دے او دا روایت دَ مسلم او ترمذی دے دَ ابن عباس رضی اللہ عنھما نہ نقل دے چہ دا وھل پہ مسواک سرہ دی یا دَ ھغے پہ مثل لرګی سرہ - او پہ داسے وھلو سرہ چہ ھډوکی بہ نہ ماتوی او یو اندام بہ نہ عیبژن کوی - او پہ سوک سپیړہ وھل کولے شی - او پہ حدیث سرہ ثابت دی چہ مخ پہ ورلہ ھم نہ وھی - ابن عطیہ وئیلی دی چہ دا دریے وارہ اوامر پہ ترتیب سرہ مراد دی یعنی چہ اول واقع شی او اطاعت اونکړی نو بیا پہ دویم کار کوی یعنی بسترہ جدا کول او چہ پہ ھغے سرہ اونشی نو بیا دریم کار اوکړی لکہ وھل - او صاحب اللباب دا دَ علی رضی اللہ عنہ نہ روایت راوړیدے - او ابن کثیر دَ ابن عباس رضی اللہ عنھما نہ نقل کړیدی چہ پہ دریم امر سرہ ھم اطاعت اونکړی نو بیا دے تربنہ فدیہ واخلی یعنی خلع دِ اوکړی - فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا ، لفظ اطاعت دلیل دے چہ دَ دوی نشوز دَ عصیان (ګناہ) وو - او اطاعت دا دے

چه ستاسو سره موافقت اوکړي په ادا کولو دَ هغه امورو کښ
چه واجب دي په هغوی باندے اوعلامات دَ نشوز زائل شي.
فَلَا تَبْغُوْا، تَبْغُوا په معنیٰ دَ طلب سره دے یعنی مه لټوئ په
دوی باندے بله لار دَ دغه درے امورو نه وعظ، هجران اوضرب
یعنی بیا ورسره دا کارونه مه کوئ۔ دا قول مشهور دے۔
یا مه لټوئ په دوی باندے لار دَ محبت دَ زړه ځکه چه هغه
دَ الله تعالیٰ په اختیار کښ دے دا قول دَ سفیان دے۔ یا مه
لټوئ په دوی باندے لار دَ ضرر او تکلیف ورکولو دَ دے دپاره
چه بیا نشوز شورو نکړي۔ او لفظ دَ علیهن دَ دے معنیٰ سره
مناسب دے۔ او قرطبي وئیلي دي چه تبغوا دَ بغي نه دے
او هغه په معنیٰ دَ جور او دَ ظلم سره دے او سبیلا په دے
معنیٰ سره په معنیٰ دَ بسبیل دے یعنی ظلم مه کوئ په دوی
باندے په هیڅ طریقے سره او دا لفظ طلاق ته هم شامل
دے یعنی چه اطاعت شروع کړي نو بیا لار دَ طلاق مه لټوئ
ځکه چه دَ اطاعت په حال کښ طلاق ورکول ابغض دے دَ
مباحاتو نه۔
اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيْرًا، په دے جمله کښ دَ خاوندانو دپاره
وعظ دے یعنی په اذن دَ هجران او ضرب سره دے دا
خاوندان په بنحو استعلاء او تکبر نه کوی ځکه چه علو او کبر
خو حقیقتًا دَ الله تعالیٰ صفات دي۔ دا رنګ قوامین (حاکمان)
کله کله په خپل رعیت باندے ظلم کوی چه په هغے کښ خاوند
هم داخل دے نو هغوی ته تحذیر ورکوی دَ ظلم کولو نه۔
علو دَ الله تعالیٰ صفت حقیقیه دے په معنیٰ دَ اوچتوالی سره
په دلیل دَ استوی علی العرش سره بغیر دَ تحریف او تاویل
نه او بغیر دَ تشبیه او تمثیل نه او فرق دا دے چه علو په اعتبار
دَ صفاتو سره۔ او په دواړو کښ دَ الله تعالیٰ شریک نشته۔

وَاِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا
او كه يريږئ تاسو د خلاف د مينځ د دواړو نه

فَابْعَثُوْا حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ
نو مقرر كړئ يو فيصله كوونكے د خپلوانو د سړي نه

وَحَكَمًا مِّنْ اَهْلِهَا ۚ اِنْ يُّرِيْدَآ
او يو فيصله كوونكے د خپلوانو د ښځے نه كه دوی غواړي

اِصْلَاحًا يُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَيْنَهُمَا ؕ
صلح كول جوړخ به پيدا كړي الله تعالیٰ په مينځ د دوی كښ،

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا خَبِيْرًا ﴿۳۵﴾
يقينًا الله تعالیٰ پوهه دے خبردار دے.

ف۳۵: په دے آيت كښ اتلسم حكم دے د پاره د دفع كولو د ظلم په مينځ د ښځے او خاوند كښ او دا تتمه ده د مخكښ حكم د پاره يعنی په فان اطعنكم كښ د ښځے د اطاعت حال ذكر شو تو اوس په دے آيت كښ د ښځے د عصيان (نافرمانۍ) حكم ذكر كوی ليكن هر كله چه د مسلمانانو سره عصيان كول نه خائيږي نو په طريقه د خوف د شقاق سره ئے ذكر كړو.

وَاِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ، شِقَاقَ، د شِق نه اخستلے شوے دے او شق جانب ته وئيلے شي نو هر كله چه د دوه كسانو مخالفت راشي نو د هغے نه دوه ډلے جوړے شي.

بَيْنِهِمَا، بين په اصل كښ ظرف (مفعول فيه) د شقاق دے ليكن په حكم د مفعول به كښ او ګرځولے شو او مصدر (شقاق) ورته مضاف كړے شو. او په دے خطاب كښ دوه اقوال دی اول قول د ابن عباس رضی الله عنهما، سعيد بن جبير، ضحاك او مجاهد رحمهم الله دے چه دا خطاب حاكمانو او امراؤ د مؤمنانو ته دے. او دويم قول د سدی

دے چه دا خطاب اولیاؤ دَ ښځې اوخاوند ته دے۔
فَابْعَثُوْا، دَ دینه مراد مقرر کول اولیږل دی په قصد دَ اصلاح سره دے دَ پاره چه دغه شقاق متعدی او نه کړئ غټې دشمنئ ته۔
حَکَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ، حَکَم، نه مراد هغه څوک دے چه په هغه کښ دَ فیصلے کولو صلاحیت وی یعنی داسے سړے چه عادل او هوښیار وی او خاوند دَ سیاست او ښه فکر وی۔
وَحَکَمًا مِّنْ اَهْلِهَا، اهل ئے ځکه خاص کړو چه هغه په حال بانده ښه خبریدلے او پوهیدلے شی۔ نو دغه حکمان به پوره تحقیق اوکړی او دَ ښځې او خاوند دَ مشکلاتو او دَ اسبابو دَ هغے او اراده لرل دَ هغوی دَ صحبت دَ باقی پاتے کیدلو یا دَ جدا کیدلو۔ قرطبی لیکلی دی که دَ هغوی په اهل کښ په دے صفاتو بانده څوک موجود نه وی نو بیا دِ دا اهل نه علاوه نور دوه عادلان او پوهه سړی مقرر کړی۔ او دَ تفتیش دَ حال او طریقے پوره تفصیل قرطبی ذکر کړیدے۔
او دا حکمان (فیصله کوونکی) دَ جمع او تفریق اختیار لری او که نه؟ په دیکښ دَ اهل علمو اختلاف دے دَ ابن عباس، علی رضی الله عنهم او شعبی وغیره قول دا دے چه دوی ته پوره اختیار دے ځکه چه دوی قاضیان مقرر کړے شویدی صرف وکیلان او ګواهان نه دی او فیصله دَ دوی په اصل کښ فیصله دَ حاکم اعلی ده چا چه دوی رالیږلے دی۔ دا قول امام شافعی او امام مالک رحمهم الله غوره کړیدے۔
او دَ امام ابوحنیفه او زجاج رحمهم الله قول دا دے چه دوی صرف دَ اصلاح اختیار لری دَ جدا کولو اختیار نه لری بغیر دَ رضا دَ خاوند نه۔ او دلیلونه دَ دواړو طرفونو قرطبی او آلوسی وغیره لیکلی دی۔ لیکن اول قول په اعتبار دَ دلیل سره غوره دے۔
اِنْ یُّرِیْدَآ اِصْلَاحًا یُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَیْنَهُمَا، په دے ضمیرونو

# وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوا

او بندگی کوئ دَ الله تعالیٰ او مه شریکوئ

# بِهٖ شَيْئًا وَّبِالْوَالِدَيْنِ

دَ هغه سره هیڅ شے او دَ مور او پلار

# اِحْسَانًا وَّبِذِي الْقُرْبٰى

سره نیکی کوئ او دَ رشته دارو سره

کښ دوه اقوال دی۔ اول دا چه دَ يُّرِيْدَآ او بَيْنَهُمَا ضمير حکمانو ته راجع دے او دا قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما، ضحاک او مجاهد وغیره دے۔ او دویم قول دا دے چه اول ضمیر راجع دے حکمانو ته او دویم ضمیر زوجینو ته راجع دے۔ او په دواړو حالاتو کښ اشاره ده چه موافقت دَ دوه کسانو په صحیح نیت باندے بناء دے ځکه چه نیت صحیح وی نو الله تعالیٰ امداد کوی۔ او دا حکم دَ هرے جرگے والو دَ پاره دے چه دَ دوه فریقو په مینځ کښ روغه کوی نو که دَ دوی نیت صفا وی نو الله تعالیٰ به دَ دوی مدد کوی او دوی به په مقصد کښ کامیاب کړی۔ او دا آیت ښکاره دلیل دے چه انسان ته حکم (فیصله کوونکے) وئیلے شی او حکم ته فیصله اوړل جائز دی لکه په سورة مائده ۹۵ کښ دی۔ او کله چه ضرورت شی نو دوه حکمان هم کیدی یشی۔ او په دے آیت سره ابن عباس رضی الله عنهما دَ حروریه خوارجو جواب کړے وو کله چه دوی دَ علی رضی الله عنه بغاوت اوکړو او ان الحکم الا لله چغے ئے وهلے ځکه چه هغه دَ معاویه رضی الله عنه سره دَ اختلاف په وخت کښ په دوه حکمانو باندے رضا شوے وو۔

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا خَبِيْرًا ، علم تعلق لری دَ ظاهر سره او خبیر تعلق لری دَ باطنی امورو سره دلته هم ظاهر حال دَ زوجینو او باطنی ارادو دَ هغوی ته اشاره ده۔

وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْجَارِ

او دَ يتيمانو سره او دَ مسكينانو سره او ګاونډي

ذِي الْقُرْبٰى وَالْجَارِ الْجُنُبِ

خپل رښتيزدے) او ګاونډي پردے (لرے)

وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْۢبِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۙ

او ملګرے دَ ډډے او مسافر

وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

او هغه کسان چه مالک دی ښي لاسونه ستاسو ، يقينًا الله تعالىٰ

لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا

مينه نه کوی دَ هغه چا سره چه وی لوئی کوونکے

فَخُوْرًا ۙ ﴿۳۶﴾

او خپله ستائنه کوونکے ۔

س۳۶ :- په دے آيت کښ نورلسم حکم دے دَ پاره دَ بچکيدو دَ ظلم نه په حقوق الله او په حقوق العباد کښ او هغه ټول لس دی۔

ربط ۱ :- دَ مخکښ سره دا دے چه هغه کښ دَ ازواجو سره دَ احسان کولو ذکر اوکړے شو نو اوس نور تکاليف احسانيه ذکر کوی ما سيوا دَ ښځے (زوجے) نه دَ پاره دَ پوره کولو دَ اخلاق کريمه۔

ربط ۲ :- مخکښ احکام دَ تدبير دَ منزل دَ پاره ذکر شول نو اوس فرمائی چه څو پورے توحيد او اخلاص موجود نه وی په دغه امورو باندے عمل قائده نه ورکوی۔

وَاعْبُدُوا اللّٰهَ ، مخکښ هم اوامر او نواهی دی په هغے باندے عمل کول عبوديت دے نو په هغے باندے دَ اعبدوا عطف کول مناسب دی۔ قرطبی وئيلی دی چه دا آيت محکم متفق

علیه دے هیڅ نسخ پکښ نشته - او داسے په ټولو آسمانی کتابونو کښ شته دے - او دا عقلی حکم هم دے - او دَ عبودیت، معنیٰ تذلل او احتقار (عاجزی کول) دی هغه چا ته چه دَ هغه دَپاره حکم دَ اختیار وی - بیا قرطبی دلته تفصیل دَ اقسامو دَ شرک او دَ ریاء او دَ هغے قباحاتو په تفصیل سره ذکرکړیدے - اوصاحب اللباب وئیلی دی چه عبادت دَ هر عمل ته عبارت دے چه دَ الله تعالیٰ دَ حکم دَوجے نه کولے شی -

وَلَا تُشْرِكُوا بِهٖ شَيْئًا، عبادت په شرع کښ توحید دَالله تعالیٰ دے لیکن دَتاکید دَپاره دا جمله دَ ولا تشرکوا ئے ورپسے ذکرکړه - اوپه دے جمله کښ په ډیرعموم سره نهی دَ شرک ذکرده - یعنی صیغه دَ نهی صراحتًا او لفظ دَ اشراک چه دَ کفر ټولو اقسامو ته شامل دے - اوشرک فی الربوبیت اوشرک فی الالوهیت اوشرک خفی ټولو ته شامل دے - او لفظ دَ شَیْئًا، کښ عموم دے هرڅیز ته شامل دے - او نکره ده په سیاق دَ نفی کښ نورعموم پیدا کوی - او په دے شَیْئًا کښ دوه احتمالات دی - اول دا مفعول بهٖ دے یعنی هیڅ څیز دَ څیزونو که ملک (فرشته) وی که نبی، ولی (مړ یا ژوندے)، جن، خواهش، شجر، حجر، ستوری او لمر سپوږمئ وغیره دی - یا مفعول مطلق دے یعنی شیئًا من الاشراک یعنی ټولو اقسامو دَ شرک ته عام دے -

وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا، دَدے تفسیر په سوره بقره ۸۳ کښ ذکر کړے شوے دے -

وَبِذِي الْقُرْبٰى، دَدینه مراد هغه څوک دی چه دَ هغوی سره دَ والدینو په واسطه خپلولی حاصله شوی وی - هرکله چه دا آیت دَدے امت په حق کښ دے او په دے امت باندے اهتمام دَ صله رحمیٰ ډیر دے دَدے وجے نه ئے حرف دَباء ئے دلته ذکرکړه - او سوره بقره کښ بنی اسرائیلوته خطاب او دَ هغوی حیثیت دَدے امت پشان نه دے - او دَدے هم

بعضے تفسیر هلته ذکر شوی دے۔
وَالْيَتٰمٰى، په یتیم کښ عجز په دوه وجوهو سره دے۔ اول
د هغه کوالے دویم دا چه متولی ئے نشته چه خرچه ور باندے
اوکړی نو هغه دَ ډیر شفقت لائق دے۔
وَالْمَسٰكِيْنِ، په داسے مقام کښ مسکین او فقیر کښ فرق کول
معتبر نه دی دا لفظ فقیر ته هم شامل دے۔
وَالْجَارِ ذِى الْقُرْبٰى، دَ دے امت دَ فضیلت دَ وجے نه په دوی
باندے نور احسانات هم واجب کړے شوی دی که قرابت
(نیزدیوالے) دَ خپلولۍ وی او که دَ ګاونډیتوب وی۔
وَالْجَارِ الْجُنُبِ، لفظ دَ جُنُبِ صفت دے او په دے لفظ کښ
مفرد، تثنیه، جمع، مذکر او مؤنث یو شان دی۔ او جُنُبِ
لرے ته وئیلے شی که دا لرے په نسبت سره وی یا په ګاونډیتوب
سره وی۔ او دَ نوف بکالی نه روایت دے چه جار ذی القربٰی
مسلمان ته وئیلے شی او جار الجنب غیر مسلم (یهودی، نصرانی)
ته وئیلے شی۔ او احسان عام دے لکه همدردی کول، بیا ئسته
ژوند کول، تکلیف کښ مدد کول، حفاظت کول او دعوت دَ حق
ورکول۔ ابو نعیم په حلیة الاولیاء او بزار په مسند کښ دَ جابر
رضی الله عنه مرفوع روایت ذکر کړیدے چه ګاونډیان
درے قسمه دی۔ اول قسم هغه دی چه دَ هغوی درے حقوق
دی۔ دویم هغه دی چه دَ هغوی دوه حقوق دی۔ دریم هغه
دی چه دَ هغوی یو حق وی۔ اول ګاونډی نسبی مسلمان دے۔
دویم ګاونډی چه مسلمان وی خو نسبی نه وی دریم ګاونډی
کافر۔ ده لره هم حق دَ ګاونډیتوب شته دے۔
وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ، دَ ابن عباس رضی الله عنهما او مجاهد
وغیره نه روایت دے چه دَ دینه مراد دَ سفر ملګرے دے۔
ابن جریج وئیلی دی چه شریک دَ درس یا کسب کولو یا
په یو مجلس یا مسجد کښ ستا دَ اړخ ملګرے وی او ستا
ورسره څه تعارف او پیژندګلو پیدا شی۔ او دَ علی،

عبد الله رضی الله عنهما او نخعي نه روایت دے چه دَ دینه مراد خپله ښځه ده چه هغه ملګرے ده په بستره دَ ده کښ.
وَابْنِ السَّبِيْلِ، مسافر چه دَ وطن نه لرے شویدے او دَ لارے دَ سفر خرچ ته محتاج دے یا ترینه میلمه مراد دے.
وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ، دَ دینه مراد مریان او وینزے دی یا عام دے ټولو حیوانا تو ته چه دَ انسان په ملکیت کښ دی. او خدمتګارانو ته هم شامل دے.
اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُوْرًا، مختال دَ خیلاء نه اخستلے شویدے. ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه مختال هغه څوک دے چه خپل شخصیت ورته لوے ښکاری او دَ بل چا حقوق په ځان باندے نه مني. او دَ لوئ دَ وجے نه دَ خپلوانو او ګاونډیانو نه نفرت کوی. او دَ هغے یو مصداق په حدیث کښ دا دے چه (مَنْ جَرَّ ثَوْبَهٗ خُيَلَاءَ لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ اِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ) (چا چه خپله جامه دَ لوئ دَ وجے نه په ځان پسے راښکله نو الله تعالیٰ به هغه ته دَ قیامت په ورځ نظر (دَ رحمت) نه کوی). فَخُوْرًا هغه څوک دے چه خپل صفتونه پخپله خلقو ته ذکر کوی دَ خپلے لوئ ښکاره کولو دَ پاره یعنی ډوزمار. او دا دواړه صفتونه په انسان کښ دَ حقوق الله او حقوق العباد نه نفرت پیدا کوی. نو په دیکښ اشاره ده چه اے خلقو دا صفتونه دَ ځان نه لرے کړئ په ادا کولو دَ ذکر شوو حقوق سره.
تنبیه:- تر دے ځاے پورے اول باب ختم شو او دَ دے جملے نه چه مخکښ ذکر شوه دویم باب شروع کیږی او هغه دَ آیت ۴۲ پورے دے.
خلاصه:- په دے باب کښ زجرونه دی منافقانو ته چه هغوی دَ دے ذکر شوو احکامو نه مخالفت کوی او هغوی موصوف دی په صفات قبیحه باندے. او دلته دَ هغوی لس صفات قبیحه ذکر کوی. او دا صفات دَ دوی په ۳۶، ۳۷، ۳۸ کښ ذکر دی. او وریسے

الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَيَاْمُرُوْنَ
دوی هغه دی چه شومتیا کوی او حکم کوی
النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُوْنَ
خلقو ته په شومتیا او پټوی
مَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ط
هغه شے چه ورکړے دے دوی ته الله تعالیٰ دَ فضل خپل نه ،
وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا (۳۷)
او تیار کړے دے مونږ کافرانو لره عذاب شرموونکے۔

په ۳۱، ۳۲ کښ تخویف اخروی دے او بیا دَ مونځ او طهارت په باره کښ خاص حکم ذکر کوی چه په هغے کښ اشاره ده چه دَ دینی امورو دَ پاره فهم، بیداری او ظاهری طهارت ضروری دی۔ او په هغے سره دَ منافقت نه بچاؤ حاصلیږی نو په دے ذکر شوے جمله کښ دهغوی دوه صفات قبیحه ذکر کوی مختال او فخور۔ (تفسیر)

۳۷:۔ په دے آیت کښ زجر دے منافقینو ته او دَ هغوی نور خلور صفات قبیحه ذکر کوی ۔ او دا هم دَ مختال او فخور تشریح ده۔ اَلَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ ، دَ اَلَّذِيْنَ په اعراب کښ مفسرینو اووه احتمالات ذکر کړیدی۔ لیکن په حال دَ نصب (زدر) کښ چه اعنی پټ دے متصل دے دَ مخکښ آیت سره چه داسے صفاتو والا شخص سره الله تعالیٰ محبت نه کوی نو تاسو ورسره هم احسان مه کوئ (قرطبی)۔ او دَ بخل نه مراد دَ واجبات شرعیه نه اداکول دی که مال وی او که دین او علم وی۔

وَيَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ ، یعنی بخیله هم گمراه او بخیل دے او نور هم گمراه او بخیلان کوی او داسے په سورة

وَالَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ

او دوی هغه کسان دی چه خرچ کوی مالونه خپل

رِئَآءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُوْنَ

دپاره د ښودنے د خلقو او ایمان نه داوړی

بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ط

په الله تعالی باندے او نه په ورځ روستنئ ،

وَمَنْ يَّكُنِ الشَّيْطٰنُ لَهٗ قَرِيْنًا

او هغه څوک چه شیطان د هغه ملګرے وی

فَسَآءَ قَرِيْنًا ﴿۳۸﴾

نو بد دے دا ملګری -

منافقون ۳۷ کښ هم ذکر دی۔
وَيَكْتُمُوْنَ مَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ، فَضْلِ مال علم او دین ته شامل دے او دا صفت د بخل نه ترقی ده یعنی ځان ښکاره کوی چه زهٔ مسکین اوغریب یم او بے علمه یم په ما باندے هیڅ حق واجبه نشته او حال دا چه مال او علم ورسره وی۔
وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا ، دا دلیل دے چه اعتقادی منافقان کافران دی۔ اوعذاب په صفت د اهانت (سپکوالی) سره خاص دے په کافرانو پورے۔ اګرچه مجرد عذاب د مؤمنانو ګنهګارو دپاره کیدیشی - او په دیکښ اشاره ده چه دغه انسان په سبب د بخل او کتمان سره د الله تعالی د نعمتونو اهانت (سپکاوے) کړیدے نو د ده سزا به هم د هغے سره مناسب وی یعنی عذاب مهین -
۳۸ :- دا هم زجر دے منافقانو ته او په دیکښ د هغوی نورځلور صفات قبیحه ذکر کړه ځکه چه هغه د احسان کولونه ښکاره مخالفت کول دی- دویم قسم صفت چه ورکوی مال

وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ
او څه وبال په وے په دوی باندے که ایمان راوړے وے دوی په الله تعالیٰ
وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَاَنْفَقُوْا
او په ورځ روستنۍ او خرچ ئے کولے

لیکن په ریا او سمعت سره نو دا هم قبیح کار دے - دا رنګ اول قسم معنیٰ دَ تفریط موجود ده او په دویم کښ اسراف دے چه هغه جانب دَ افراط کولو دے - یعنی یو شخص وی خو کله افراط کوی او کله تفریط کوی - یا دوه اشخاص وی

وَالَّذِیْنَ یُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ رِئَآءَ النَّاسِ، ریا مفعول له یا حال دے په معنیٰ دَ مرائین او لام پټ دے یعنی للناس - او دَ ریاء تفصیل او قباحت په سورهٔ بقرهٔ کښ ذکر شوے دے -

وَلَا یُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَلَا بِالْیَوْمِ الْاٰخِرِ، دَ منافق ایمان په حکم دَ نیشت کښ دے یعنی ایمان ئے نشته لکه وما هم بمؤمنین سوره بقرهٔ ۸ - دا رنګ دَ یهودو او نصارو ایمان هم شرعی ایمان نه دے لکه چه په سوره توبه ۲۹ کښ دی - او حرف دَ لا مکرر او دَ تاکید دَ نفی دَ ایمان دَ پارهٔ دے دَ دوی نه -

وَمَنْ یَّکُنِ الشَّیْطٰنُ لَهٗ قَرِیْنًا فَسَآءَ قَرِیْنًا، قرطبی وئیلی دی چه په دے کلام کښ دَ بعضے عبارت تقدیر دے یعنی قرینهم الشیطن ومن یکن آه - او شیطان عام دے جنی او انسی دواړو نه - قرین (مقارن) ملګرے او دوست نه وئیلے شی او مقصد دا دے چه څوک دَ شیطان انسی یا جنی خبره قبلوی او دَ هغه تابعداری کوی په دنیا کښ نو دے دَ هغه ملګرے دے - او دا سے په سورهٔ زخرف ۳۶، ۳۸ کښ هم شته -

مِمَّا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ ط وَكَانَ اللّٰهُ

دَ هغې نه چه ورکړي دي دوی ته الله تعالیٰ او الله تعالیٰ

بِهِمْ عَلِيْمًا ﴿۳۹﴾

په دوی باندې پوهه دے۔

۳۹ :- په دیکښې زجر دے او په ضمن کښې ترغیب دے پریخودلو دَ صفاتو دَ منافقت ته۔

وَ مَا ذَا ، په دیکښې دَ نحویانو دوه اقوال دي۔ اول دا چه مَا استفهامیه دے مبتداء ده او ذَا په معنیٰ دَ الذی سره خبر دے۔ دویم قول داچه مَاذَا مجموعه یو اسم دے او په دَ اَیُّ شیٍٔ سره دے۔

عَلَیْهِمْ ، په معنیٰ دَ وبال او عذاب دے په دوی باندے یا په معنیٰ دَ ایمان راوړلو کښې دے۔

لَوْ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَالْیَوْمِ الْاٰخِرِ ، مستانف (دَ سره) کلام دے او جواب دَ لَوْ شرطیه پټ دے یعنی حَصَلَتْ لَهُمُ السَّعَادَةُ۔ یا لَوْ مصدریه دے او متعلق دے په ماذا علیهم پورے او دَ لَوْ جواب ته حاجت نشته۔ او ابن عطیه وئیلی دی چه لَوْ شرطیه شي نو جائز ده چه ماذا علیهم دَ دے جواب مقدم شي او دَ ایمان نه مراد صحیح ایمان شرعي دے۔

وَ اَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ ، دا صفت مقابل دے دَ صفت دَ بخل۔ او دَ انفاق نه مراد شرعي انفاق دے چه خالي وي دَ ریاء او سمعت نه۔ نو دا مقابل دے دَ والذین ینفقون اموالهم رئاء الناس دَپاره هم۔

فائده :- په مخکښې آیت کښې عدم ایمان روستو ذکر کړیدے او په دے آیت کښې مخکښې ذکر کړیدے ځکه چه په هغه آیت کښې عدم ایمان دَ ماقبل صفات قبیحه دَپاره علت وو او علت روستو ذکر کولے شي۔ او دلته خو دعوت ورکول دي صفاتو دَ سعادت ته نو په دیکښې دَ ایمان دعوت مخکښې ضروري دي

إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ج
يقينًا الله تعالىٰ ظلم نه کوی په وزن دَ یو ذرے
وَإِنْ تَكُ حَسَنَةً يُضَٰعِفْهَا
او که وی (ذره مقدار) نیکی نو زیاتوی الله تعالیٰ هغه
وَيُؤْتِ مِن لَّدُنْهُ أَجْرًا
او ورکوی دَ خپل ځان دَ طرف نه ثواب
عَظِيمًا ﴿٤٠﴾
لوے۔

دَ كَانَ اللَّهُ بِهِمْ عَلِيمًا ، بِهِمْ نه دَ دوی ښکاره او پټ احوال مراد دی۔ او په دیکښ زجر او وعید ته اشاره ده سره دَ ترغیب نه۔

سکه :۔ په دے آیت کښ هم ترغیب دے ښائسته صفاتو ته سره دَ بشارت نه۔ او ظلم دلته په معنیٰ دَ نقصان دے په ثواب ورکولو کښ (قرطبی) یا په معنیٰ دَ نقصان ورکولو دے په ثواب کښ او زیاتے په عقاب کښ (امام راغب)۔

إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ، مثقال ، دا صفت دے دَ پټ موصوف دپاره یعنی ظلمًا مثقال یا یظلم په معنیٰ دَ ینقص دے۔ اول مفعول ئے پټ دے یعنی احدا او دویم مفعول ئے مثقال دے۔ مثقال دَ ثقل نه اخستلے شوے دے په اصل کښ مطلق مقدار ته وئیلے شی او په عرف کښ په څلویښت قیراطو نو باندے اطلاق کیدیشی۔ دلته په معنیٰ دَ مقدار سره دے۔

ذَرَّةٍ ، دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه مشهور روایت دا دے چه دا نری میږی ته وئیلے شی او په دیکښ دَ ابن مسعود رضی الله عنه روایت هم شته (آلوسی)۔ او په دویم روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما کښ دَ میږی سرته وئیلے شی۔ او په دریم روایت

کښې دي چه ابن عباس رضي الله عنهما خپل لاس په خاوروکښې داخل کړو بيا ئې راپورته کړو او پوکے ئې ورکړو دَ پوکي نه روستو چه په لاس پورے څه پاتے شو نو اوئيل ئې چه دا ذره ده - او چا وئيلي دي چه نمر دَ پلوشو څخه ته چه کوم ذرات ښکاريږي او په لاس نه راځي نو دا دي - خو اول قول مشهور دے - او عرب دَ يو څيز دَ کموالي دَ پاره دا په مثال کښې ذکر کوي نو ذکر دَ ذرے او مراد ترينه ډير لږ څيز دے چه په خيال او وهم دَ خلقو کښې راځي - او هر کله چه لږ ظلم نه کوي نو ډير خو بالکل نه کوي په دليل دَ ان الله لا يظلم الناس شيئا (يونس ۴۴) -

او لفظ دَ مثقال کښې اشاره ده چه خلق دا دَ ثقل په مقدارونو کښې استعمالوي - دَ امام مسلم او امام احمد رحمهم الله په مرفوع روايت کښې راغلي دي چه الله تعالیٰ دَ مؤمن نه هيڅ نيکي نه کموي بلکه دَ هغې په وجه په دنيا کښې هم نعمتونه ورکيږي او په آخرت کښې په هغې سره بهتره جزاء ورکيږي او هر چه کافر دے نو دَ حسناتو په سبب په دنيا کښې څه انعامات ورکوي او چه آخرت ته اورسيږي نو هيڅ حسنه ئې دَ جزاء ورکولو دَ پاره پاتے نه وي -

فائده :- په مقام دَ عدم ظلم کښې دَ الله تعالیٰ يا دَ هغه دَ علم محيط په ثبوت کښې يا په نفي دَ ملکيت دَ غير الله نه يا په ملاقات دَ اعمالو کښې په ورځ دَ قيامت ذکر دَ مثقال ذرة شوے چه دلالت کوي په ډير عموم باندے لکه سورة يونس ۶۱، سورة سبا ۲۲، ۳، سورة زلزال ۷، ۸ او په مقام دَ حساب کولو دَ تاکاره اعمالو کښې حبه من خردل ذکر کړے چه هغه دَ ذرے نه لږ غټ مقدار دے لکه انبياء ۴۷، لقمان ۱۶ اشاره ده چه الله تعالیٰ خپل رحم سره دَ ډير کم څيز (دَ بد اعمالو نه) دَ مؤمنانو سره حساب نه کوي - والله اعلم -

# فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ

تو څنګه به وی حال دَ دوی کله چه راولو موږ دَ هر

وَاِنْ تَكُ حَسَنَةً يُّضٰعِفْهَا ، په دے جمله کښې دَ مخکښ په نسبت سره ترقی ده یعنی کمے کول نشته او زیاتی ورکول شته۔ تَكُ ، دَ ډیر استعمال دَ وجے نه په وخت دَ جزم کښ چه روستو ورسره ضمیر متصل نه وی نو په دے کلمه کښ نون حذف کیږی او دا قول دَ سیبویه دے ځکه چه دا نون ساکنه په شان دَ حروف لین دے (لکه واو- یاء- الف) او حروف لین دَ جزم په حال کښ حذ کیږی او دَ دے نون حذف او اثبات دواړه جائز دی۔حذف ئے دے ځائے کښې دے او اثبات (ان یکن غنیًا او فقیرًا) کښې دے۔ حَسَنَةً ، په نصب (زور) سره خبر دے دَ تَكُ دَ پاره او اسم ئے پټ دے چه هغه ضمیر مثقال ته راجع دے او هغه مؤنث دے په سبب دَ اضافت کولو ذرة ته یا په تاویل دَ زنة سره۔ يُضٰعِفْهَا ، مضاعفه تقاضا کوی چه دا زیادت په کثرت سره دے۔

وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ ، لَدُنْ ، په معنیٰ دَ عند دے لیکن دَ ده په معنیٰ کښ ډیر تمکین مراد وی یعنی لَدَيْهِ مَالٌ ورته په هغه وخت کښ وئیلے شی چه مال ورسره حاضر موجود وی او عند عام دے چه مال ورسره موجود نه وی خو دَ هغه په وس او اختیار کښ وی یا ورسره موجود وی۔ نو په لفظ دَ لدنه کښ تاکید دے او دا دَ لالت کوی چه دا زیاتی کول دَ ثواب په سبب دَ فضل دَ الله تعالیٰ سره دی بل سبب پکښ معتبر نه دے۔

اَجْرًا عَظِيْمًا ، تنکیر دَ اجر او تاکید په عظمت سره اشاره ده چه دَ دے انتها بندګانو ته معلومه نه ده او هغه جنت دے۔

# اُمَّةٍۭ بِشَهِيْدٍ وَّجِئْنَا بِكَ

امت نه بیان کوونکے او راولو به تا لره .

# عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ شَهِيْدًا ﴿۴۱﴾

په دوی باندے بیان ورکوونکے ۔

سلہ :- په دے آیت کښ تاکید دے دَ ما قبل آیت په ذکر دَ هیبت دَ احوالو دَ ورځ دَ قیامت سره۔ یعنی هر کله چه ثابت شوه چه هر لږ او ډیر عمل باندے بدله ورکیدی شي۔ نو په چا باندے چه دَ بدو اعمالو په باره کښ شهادت نو نه پیش شي نو دَ هغوی به څومره ناکاره حال وی۔ دا کیف په محل دَ رفع یا نصب کښ دے په تقدیر دَ حالهم یا یکونون ویصنعون سره۔ او دا لفظ په راتلونکی هیبت ناک حال کښ استعمالیږی او په کیف کښ استفهام دَ توبیخ دَ پاره دے۔

فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ ، مراد ترینه هغه څوک دی چه هغوی ته نبی یا رسول لیږلے شوے وی حالانکه مؤمنان وی یا کافران۔

بِشَهِيْدٍ ، ته هغه نبی یا رسول مراد دے چه کوم ورته لیږلے شوے وی۔ او داسے په سوره نحل ۸۴ ، ۸۹ کښ هم دی۔ او شهادت نه مراد دَ هغوی گواهی ورکول دی په اعمالو دَ هغه کسانو چه حاضر وو په ژوند ته دَ هغوی کښ یا شهادت په تبلیغ کولو سره مراد دے۔

وَجِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ شَهِيْدًا ، په هٰٓؤُلَآءِ کښ اقوال دی۔ اول قول دا دے چه هغه شهداء (انبیاء علیهم السلام او نور تبلیغ کوونکی) دی او شهادت په دوی باندے شهادت دے دَ هغوی په صدق باندے (آلوسی)۔ او دا شهادت دَ تزکیے دے۔ دویم قول، چه کافران او مکذبین دَ دے امت مراد دی یعنی کفار قریش وغیره۔ دا قول دَ ابن مسعود رضی الله عنه، ابن جریج، سدی او مقاتل نقل کړیدے دَ

(ابوحیان) او لفظ دَ علی په دے باندے قرینه ده او دَ شهادت (ګواهئ) نه مراد شهادت دے په تکذیب دَ هغوی باندے یا شهادت په معنیٰ دَ تبلیغ کولو سره دے - دریم قول ، دَ دینه مراد صحابه کرام دی چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په وخت کښ حاضر وو او علی په معنیٰ دَ لام دے - او شهادت ورکول دَ هغوی په ایمان او تابعدارئ کولو سره دے - دا قول دَ ابو العالیه ، مجاهد او قتاده دے - او په یکښ صحیح دویم او دریم قول دے یعنی هغه خلق چه موجود وو په زمانه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم کښ نو نبی صلی الله علیه وسلم به دَ هغوی په اعمالو باندے شهادت ورکوی په دلیل دَ صحیح حدیث سره چه بخاری په کتاب التفسیر او امام مسلم په کتاب الصلوٰة المسافرین کښ ذکر کړے دے - او ترمذی او نسائی وغیره هم راوړیدے - مضمون ئے دا دے چه عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وائی چه ماته رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمائیل چه ماته قرآن اولوله نو ما اوئیل چه یا رسول الله صلی الله علیه وسلم آیا زه اولولم په تا باندے او حال دا چه په تا باندے نازلیږی نو هغوی او فرمائیل چه هاؤ زه خوښوم چه دَ بل (ملګری) نه قرآن واورم نو ما سورة نساء شروع کړه چه دے آیت ته را اورسیدم نو هغوی ارشاد او فرمائیلو چه بس کړه او دَ سترګو مبارکو نه ئے اوښکے بهیدلے - او دَ مسلم په روایت کښ شهیداً ما دمت فیهم (شهادت کووم دَ هغه وخت چه زه په دوی کښ موجود وم) دا او ابن جریر په دے روایت کښ راوړیدے چه (مَا دُمْتُ فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنْتَ أَنْتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ) - (څو پورے چه په دوی کښ ژوندے وم او کله چه تا وفات کړم نو بیا ته خبر ئے دَ دوی په حال باندے) او دَ دے تائید دَ عموم انبیاؤ علیهم السلام شهادت دے چه په سوره مائده ۱۰۹ کښ ذکر دے او شهادت دَ

يَوْمَئِذٍ يَّوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا
په دغه ورځ به ارمان اوکړی هغه کسان چه کفر ئې کړے دے
وَعَصَوُا الرَّسُوْلَ لَوْ تُسَوّٰى
او نافرمانی ئې کړېده دَ رسول نه چه هموار ه شوے

عیسیٰ علیه السلام چه په سوره مائده ۱۱۷ کښ ذکر دے دَ هغې تفسیر هلته اوکورئ - او چا چه وئیلی دی چه دَ دینه مراد دَ ټول امت په عملونو باندے ګواهی ورکول دی ځکه چه عملونه هغه ته پیش کیږی نو هغه قول دَ دلیل په لحاظ سره صحیح نه دے او دَ سوره مائده ۱۰۹ سره خلاف دے -

سوال :- دغه قول قرطبی په خپل تفسیر کښ ذکر کړے دے؟

جواب :- ابن کثیر دَ هغه په رد کښ وئیلی دی چه دا خو یو اثر دے او په دے کښ انقطاع ده او دَ دے په سند کښ یو راوی مجهول دے او دا حدیث مرفوع نه دے - نو داسے روایت نه په تفسیر کښ هیڅ اعتبار نشته دے - او زه وایم چه په دے زمانه کښ جاهلان دَ قرطبی دَ دے حدیث نه دلیل پیش کوی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم حاضر ناظر دے لیکن دا استدلال ئې صحیح نه دے ځکه چه په دے روایت دَ سعید بن المسیب کښ پیش کول دَ اعمالو ذکر دی صبا بیګاه په هغه باندے دا نه دی ذکر چه په هر مکان کښ پخپله حاضر یږی - او دَ دے دواړو خبرو په مینځ کښ دَ زمکے آسمان په شان فرق دے -

بِهِمُ الْاَرْضُ ؕ وَلَا يَكْتُمُوْنَ

| پہ دوی باندے زمکہ | او نہ بہ شی پټولے |
|---|---|

اللّٰهَ حَدِيْثًا ﴿۴۲﴾ ع

| دَ اللہ تعالیٰ نہ هیڅ خبرہ ۔ |
|---|

۴۲ :- دا هم دَ تخویف دَپارہ تتمہ دہ ۔ يَوْمَئِذٍ، دا منصوب دے پہ سبب دَ يَوَدُّ سرہ یا پہ مخکښ شهیدا سرہ ۔ إذ، ظرف دے او تنوین پہ دیکښ عوض دے دَ مضاف الیہ حذف کړے شوی نہ چہ هغہ جملہ دَ جئنا من کل امۃ آہ دہ ۔

يَوَدُّ، ود پہ معنیٰ دَ تمنا کولو سرہ دے ۔ اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا، هغہ څوک مراد دی چہ دَ آخری رسول صلی اللہ علیہ وسلم کفر او تکذیب ئے کړیدے ۔

وَعَصَوُا الرَّسُوْلَ، دا عطف دے پہ کفروا یعنی دغہ کافرانو سیوا دَ کفر کولو نہ دَ دے رسول نور مخالفتونہ هم کړیدی لکہ بدعات، رسمونہ او فسق و فجور ۔ او پہ دے کښ اشارہ دہ چہ کافران پہ فروعو سرہ هم مخاطب او مکلف دی ۔ (او دَ دے نور تفصیل دَ تفسیر اللباب پہ حاشیہ باندے اوګورئ) ۔ او الرَّسُوْلَ کښ الف لام عهدی دی یعنی آخری رسول صلی اللہ علیہ وسلم ۔ او پہ دے (وعصوا) کښ بلہ توجیہ دا دہ چہ دا عطف دے پہ تقدیر دَ الذین سرہ نو دا دوہ ډلو تہ اشارہ دہ یوہ ډلہ کافران او دویمہ نافرمان مؤمنان دی ۔ او پہ الرسول کښ بلہ توجیہ هم دہ چہ الف لام دَ جنس یا استغراق دَپارہ شی نو دَ ټولو رسولانو عاصیانو (نافرمانانو) تہ اشارہ دہ ۔

لَوْ تُسَوّٰى بِهِمُ الْاَرْضُ، لَوْ، مصدریہ دہ او مفعول دے دَ يَوَدُّ دَپارہ ۔ او پہ دے تسویہ کښ ډیر اقوال دی ۔ اول دا چہ دفن کړیشی پہ زمکہ کښ او خاورہ پہ دوی باندے هوارہ کړیشی ۔ دویم دا چہ دوی باقی دی پخپل اصل خلقت باندے

چه خاوره ده بغیر دَ نوی پیدائش نه -دریم داچه هر کله دوی اووینی چه نور بهائم اوحیوانات په خاورے کړیشی نو دوی به اووائی چه آرمان دے چه دغسے مونږ خاورے شوے لکه چه په سوره نباء کښ ذکر کښ دی -څلورم داچه دوی به آرمان کوی چه په دوی باندے دپاسه محشر والو خپے کیخودلے لکه چه دَ زمکے دپاسه گرځیدل کیدیشی -

وَلَا يَكْتُمُونَ اللّٰهَ حَدِيثًا ، داجمله په يَوَدُّ باندے عطف ده او په دیکښ دوه توجیهات دی -اوله داچه دوی دَ هیڅ خبرے دَ الله تعالی نه پټول نشی کولے ځکه چه اندامونه به په دوی باندے گواهی ورکړی نو دَ پټولو قدرت ئے نشته.
دویمه داچه نه به پټوی دَ الله تعالی نه هیڅ خبره بلکه اقرار به کوی په ټولو گناهونو باندے ځکه چه دویته معلومه شوه چه پټول مونږ ته هیڅ فائده نه راکوی.

سوال :- په سوره انعام ۲۳ کښ دی چه دوی به اووائی چه قسم دے په رب زمونږ چه مونږ شرک نه دے کړے ؟

جواب :- ابن جریر او ابن کثیر دَ سعید بن جبیر رضی الله عنه نه روایت ذکر کړیدے چه یو سړی دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه داسے تپوس کړے وو نوهغه ورته جواب کښ اوفرمائیل چه دا مختلف حالات دی - هر کله چه اووینی چه جنت ته صرف توحید والا داخلیږی نو دوی[۲] اووائی چه والله ربنا ماکنا مشرکین نو الله تعالی به دَ دوی په خلو باندے مهر اووهی - او دَ دوی لاسونه او خپے به په دوی باندے گواهی اوکړی نو بیا به اووائی چه ولا یکتمون الله حدیثا - دغه شان روایت امام بخاری رحمه الله هم په کتاب التفسیر کښ ذکر کړے دے -

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا
اے ايمان والو ! مه تيږدے کيږئ
الصَّلٰوةَ وَاَنْتُمْ سُكٰرٰى حَتّٰى
مانځه ته او حال دا چه تاسو نشه يئ تر دے
تَعْلَمُوْا مَا تَقُوْلُوْنَ وَلَا جُنُبًا
چه پوهيږئ په هغه څه چه تاسو ئے وائئ او نه په حال د جنابت کښ
اِلَّا عَابِرِىْ سَبِيْلٍ حَتّٰى تَغْتَسِلُوْا
مگر که تيريدونکي يئ د لارے تر دے پورے چه غسل اوکړئ
وَاِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى اَوْ عَلٰى
او که تاسو ناجوړه يئ يا په
سَفَرٍ اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ
سفر باندے يئ يا راشي يو تن ستاسو
مِّنَ الْغَآئِطِ اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ
لوے حاجت نه يا يو ځائے شئ تاسو د ښځو سره
فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا
او نه موئ تاسو اوبه نو تيمم اوکړئ
صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا
په خاوره پاکه باندے نو مسح کړئ
بِوُجُوْهِكُمْ وَاَيْدِيْكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ
مخونه خپل او لاسونه خپل ، يقيناً الله تعالىٰ

كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا ﴿۴۳﴾

| معافي کوونکے بخنه کوونکے دے۔ |
|---|

۴۳: ربط: دَ دے دَ ماقبل سره ربط په څو وجوهو سره دے۔
اوله وجه، دا چه دا دَ واعبدوا الله سره متعلق دے او وروستو دَ ایمان او توحید نه ذکر دَ اهم عبادت دے (اللباب)۔
دویمه وجه، هر کله چه مخکښ ئے مکارم اخلاق ته ترغیب ذکر کړو او هغه حقوق دَ بندګانو دو نو اوس اخلاص ذکر کوی په حق دَ الله تعالی کښ (آلوسی)۔
دریمه وجه، هر کله چه مخکښ دَ منافقانو ناکاره اخلاق په طریقه دَ زجر سره ذکر شول او په هغې باندې تخویف ذکر کړو نو اوس دَ هغوی دَ نورو ناکاره صفاتو نه منع ذکر کوی چه هغه مسکرات (دَ نشے خیزونه) استعمالول دی خصوصًا دَ عبادت په وخت کښ او هغه رسوونکی دی جهل ته۔ او دا رنګ په طهارت کښ سستی کول دی۔ نو په دیکښ اشاره ده چه دَ دین دَ اعمالو دَپاره دَ جهل او غفلت نه ځان ساتل پکار دی او طهارت ظاهریه پکار دے سره دَ طهارت باطنیه نه په ایمان سره۔
يَآيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ، دا نداء په دے طریقے سره دَپاره دَ تاکید دَ عمل کولو ده په روستو حکم باندے او اشاره ده چه په دے حکم باندے عمل کول مقتضا دَ ایمان ده۔ وَلَا تَقْرَبُوا، نهی کول دَ نزدیکت نه کنایه ده دَ نهی دَ موځ نه په طریقه دَ مبالغے سره لکه چه په لا تقربوا الزنا او په ولا تقربوا مال الیتیم آیتونو کښ داسی ده۔
تنبیه: دَ خمر (شرابو) په باره کښ اول آیت دَ سور بقره ۲۱۹ نازل شوے وو نو عمر رضی الله عنه اوئیل چه یا الله تعالی موتږ ته دَ خمر په باره کښ شافی بیان اوکړے نو بیا دَ سورة مائده آیت ۹۰ کښ نازل کړے شو (ابن کثیر)۔

او په حدیث دَ ابو داؤد کښې په کتاب الاشربه کښې راغلې دی چه دَدے آیت دَ نزول نه روستو دَ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم منادی (اعلان کوونکی) اعلان اوکړو چه په حال دَ سکر (نشه) کښې مونځ ته مه نیږدے کیږئ۔ اودَ ابوداؤد او نسائی په روایت کښې راغلی دی چه علی او عبدالرحمٰن رضی الله عنهما او یو بل سړی جمع شوے وو او شراب ئے اوڅښکل او عبدالرحمٰن رضی الله عنه امامت دَ مونځ اوکړو نو په سورة الکافرون کښې کمی وړه شو نو دا آیت نازل شو۔ دَ دے روایاتو نه معلومه شوه چه دلته دَ صلوٰة نه مراد مونځ کول دی ځائے دَ مونځ نه دے مراد اګرچه دا سے یو قول دَ بعضے مفسرینو نه نقل دے۔

وَاَنْتُمْ سُکٰرٰی، سُکٰرٰی جمع دَ سکران ده۔ سکر په لغت کښې بند ولو ته وئیلے شی سکر النهر (نهر ئے بند کړو) هغه په سورة حجر ۱۵ کښې دا معنیٰ مراد ده۔ او سکر (زور دَ کاف) هر هغه څیز دے چه نشه پیدا کوی۔ نو دا سکر چه مطلق ذکر شی نو مراد تری نه سکر دے دَ شرابو نه۔ او سکر چه دَ غضب یا دَ خوب یا دَعشق یا دَ مرګ دَ یرے دَ وجے نه وی نو هغه سکر مجازی دے او هغه مقید ذکر کیدے شی۔ لکه سکرة الموت (سورة قٓ ۱۹) وتری الناس سُکٰرٰی وما هم بسکٰرٰی (سورة حج ۲)۔ او دَ سکر په تعریف کښې اختلاف دے۔ سفیان ثوری وئیلی دی چه حد دَ سکر (نشه کیدلو) هغه نقصانی کیدل دَ عقل دی چه دَ هغے دَ وجے په لوستلو کښې کمی وړه کیږی او په خپلو خبرو نه پوهیږی۔ او امام احمد رحمه الله وئیلی دی چه عقل ئے بدل شی دَ حال دَ صحت نه او دا قول دَ امام مالک رحمه الله هم دے۔ ابن منذر وئیلی دی چه صرف په لوستلو کښې ئے کمی وړه واقع شی نو دا سکران دے په دلیل دَ دے آیت سره۔ او صحیح دا ده چه په سکر (نشه) کښې درے درجے دی اوله درجه اختلاط

دَ قراءت (ګکړ وړ والے دَ لوستلو) دے - دویمه درجه دا ده
چه پخپلو خبرو او په خپل حال نه پوهیږی - دلته دا دواړه درجے
مراد دی چه په داسے حال کښ مونځ اوکړی نو هغه فاسق دے.
او دریمه درجه، دا ده چه دَ زمکے او آسمان او دَ ښځے سړی
فرق نشی کولے نو دے په خپلو اقوالو افعالو کښ په حکم
دَ مجنون کښ دے.
فائده ۵ :- دَ جمهورو مفسرینو په نیز دَ سکر نه مراد دلته
نشه ده دَ شرابو نه - او دَ ضحاک په نیز سکر دے دَ خوب نه په
دلیل دَ صحیح حدیث سره چه ستاسو نه په یو شخص باندے
په حال دَ (نقل) مونځ کښ جوته دَ خوب راشی نو مونځ دِ
پریږدی او خوب دِ پوره کړی کیدیشی چه دے به دَ
استغفار په ځائے ځان ته خیرے اوکړی - او عبیده سلمانی
وئیلی دی چه دَ دینه مراد هغه حال دے چه دَ انسان دَ وړو
بولو یا لویو بولو نه خیته درنه وی ځکه چه په حدیث کښ راغلی
دی چه مونځ دے نه کوی یو تن ستاسو په داسے حال چه
حاقن (درونه) وی - قرطبی دَ دے نقل کولو نه روستو وئیلی
دی چه دَ دے اقوالو معنیٰ صحیح ده ځکه کوم څیز دَ مونځ خشوع
خرابوی نو دَ هغے دَ پاره مونځ پریخودل پکار دی لکه تیار خوراک
هم په دیکښ داخل دے - دا دَ دے دَ پاره چه مونځ بے خیاله
او بے خشوع اونکړی - لیکن زما رائے دا ده چه دَ سکاری
په تفسیر کښ دا داخل نه دی دَ صحیح احادیثو په سبب سره
په دے باندے خپل ځائے عمل کیدیشی خو دلته قول دَ جمهورو
مفسرینو صحیح دے.
فائده ۶ :- په دیکښ دا مقصد نه دے چه دَ نشے دَ پاره مونځ
پریږدئ بلکه مطلب دا دے چه دَ مونځ په وخت کښ نشه
مه کوئ - او په آیت کښ معنیٰ دَ نسخ نشته دے.
حَتّٰى تَعْلَمُوْا مَا تَقُوْلُوْنَ، آلوسی وئیلی دی چه مونځ مه کوئ
په حالت دَ نشه کښ تر دے پورے چه پوهیږئ په هغه څه چه

وایئ تاسو مخکښې دَ مونځ نه څکه چه په دے سره به معلومه شی چه تاسو به پوهیږئ په هغه څه چه په مانځه کښې یئے لولئ- او دَ دے وجے نه یئے دلته تقولون وئیلی دی- تقرءون یئے نه دی وئیلی څکه چه دَ مونځ نه مخکښې صرف خبرے مراد دی او په مونځ کښې قراءت سره درود اذکار او دعاګانے مراد دی نو تقولون لفظ ټولو ته شامل دے- او دا جمله دلالت کوی چه سکران (نشه) هغه شخص دے چه په خپلو خبرو باندے نه پوهیږی- او دَ دے وجے نه دَ هغه په طلاق واقع کیدلو کښې هم اختلاف دے (دَ هغے باره کښې قرطبی او ګورئ)-

وَلَا جُنُبًا، دا لفظ په وزن دَ مصدر دے نو مفرد، تثنیه، جمع او مذکر او مؤنث پکښې برابر دی- او دا ماده دلالت کوی په لرې والی باندے نو جُنُبٌ هم لرے دے دَ ادا کولو دَ مونځ نه یا لرے دے دَ طهارت نه- او دا لفظ عطف دے په انتم سکاری جمله حالیه باندے په طریقه دَ عطف دَ مفرد په جمله باندے- او په کلمه دَ لا مکرر راوړلو کښې فائده دا ده چه نهی دَ نیزدے والی نه مونځ ته هر حالت ته جدا جدا شامل شی نو په حال دَ اجتماع دَ دواړو حالاتو کښې نهی ضروری وی- او په دیکښې هم دَ مخکښې پشان دوه توجیهات جاری دی- اوله دا ده چه مونځ ته مه نیزدے کیږئ په حال دَ جنابت کښ- دویمه دا چه مه نیزدے کیږئ ځائے دَ مونځ ته چه مسجد دے په حال دَ جنابت کښې-

اِلَّا عَابِرِی سَبِیْلٍ، دا استثناء مفرغ ده او منصوب ده په اعتبار دَ حالیت سره نو معنیٰ دا ده چه مه نیزدے کیږئ مونځ ته په حال دَ جنابت کښې مګر چه تیریدونکی دَ لارے یئ یعنی مسافر یئ- یا مه نیزدے کیږئ مسجد ته په حال دَ جنابت کښې مګر چه تیریدونکی یئ په مسجد کښې- بله توجیه دا ده چه الا په معنیٰ دَ غیر ده او دا صفت دے دَ جنبًا دَ پاره نو حاصل دا دے چه مه نیزدے کیږئ مونځ ته په حال دَ جنابت کښې مګر چه

تاسو سره بل حالت وی چه په هغے کښ معذوره یئ چه تیریدل دی په لاره باندے. په دے مقام کښ دوه اقوال دی د مفسرینو. اول قول د علی، ابن عباس او سعید بن جبیر او مجاهد رضی الله عنهم دے چه مه نیزدے کیږئ مونځ ته په حال د جنابت کښ مګر چه مسافر یئ او اوبه نه مومئ نو تیمم او کړئ. او دا قول امام ابوحنیفه رحمه الله هم غوره کړیدے. دویم قول د ابن مسعود رضی الله عنه، سعید بن المسیب، حسن او عکرمه وغیره دے چه مه نیزدے کیږئ ځائے د مونځ ته یعنی مسجد ته مګر چه جنب شئ په مسجد کښ او ور تیریږئ په مسجد کښ یا د چا د کور دروازه په مسجد کښ وی او په کور کښ د غسل انتظام نه وی نو په مسجد باندے ور تیریږی. نو په دے حال کښ د اکثر اهل علمو په نیز تیمم ته ضرورت نشته په مسجد کښ د غسے تیریدلے شی لیکن په مسجد کښ حصاریدل منع دی. او په دے قول سره د صلاة نه مراد موضع د صلاة دے لکه په سوره حج ۴۰ کښ دی.

حَتّٰى تَغْتَسِلُوْا، دا غایه ده د ولا جنبًا د پاره یعنی د غسل کولو نه روستو جائز دی چه مونځ دے کوی او مسجد ته دا خلیږی لیکن شرط پکښ دا دے چه د غسل کولو په اوبو باندے قدرت او مومی.

سوال:- دلته ئے د الا عابری استثناء ولے مخکښ ذکر کړه؟

جواب ۱:- په دیکښ اشاره ده چه په دے حال (د جنابت) کښ حکم د نهی مطلق نه دے لکه چه په سکر کښ مطلق دے.

جواب ۲:- هر کله چه مقصد دلته صحت د مونځ دے په حال د جنابت کښ روستو د زوال د هغے د تیمم په طریقے سره، د دے وجے نه ئے اغتسال د استثناء نه روستو ذکر کړو.

وَاِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى، دا د هغه اجمال تفصیل دے چه په الا عابری سبیل کښ وو او د مستثنیٰ د پاره د عذر روستو بیان دے.

سوال:- عابری سبیل کښې خو صرف دَ سفر عذر ذکر وو او په تفصیل کښې ئې مرض هم ذکر دے؟
جواب:- په عابری کښې صرف دَ سفر ذکر وو په طریقه دَ مثال سره ځکه چه دغه عذر اکثر واقع کیږی او احکام ورسره بدلیږی او په مرض سره هر وخت احکام نه بدلیږی ځکه چه په هغے کښې خفیف او ثقیل وی۔
مَرْضٰی، جمع دَ مریض ده او دَ مریض نه دلته مراد هغه دے چه دَ اوبو په استعمال سره دَ مرض دَ زیاتوالی یا دَ مرګ یره وی۔ دَ ابن عباس رضی الله عنهما په روایت کښې دی چه دا هغه څوک دے چه زخمی شوی دے یا ورباندے چیچک (مرض دَ شری) راغلی دے او دے جنب شی تو یره کوی دَ غسل نه ځکه چه یا مرض او زخم سیوا کیږی یا دَ هغے دَ وجے نه مرکیږی۔
اَوْعَلٰی سَفَرٍ، دا عطف دے په مرضٰی باندے په محل دَ نصب کښې۔ او سَفَرٍ، نکره ده دَ عموم دَ پاره یعنی که اوږد سفر وی او که لنډ سفر وی لیکن روستو شرط ورسره مراد دے چه او به دَ اودس یا دَ غسل دَ پاره نه موهی تو په داسے حال کښې به تیمم کوی دَ مونځ دَ پاره او بیا ئې دَ مونځ راګرځول نشته۔ او دَ دے تائید حدیث دَ ابوذر رضی الله عنه دے چه ابوداؤد او ترمذی نقل کړیدے معنٰی ئې دا ده چه پاکه خاوره دَ مسلمان اودس دے اګر چه لس کاله پورے او به نه موهی او هر کله چه او موهی نو بدن پورے دِ اومږی۔
سوال:- دَ سفر او دَ مرض دَ ذکر نه معلومه شوه چه دَ روغوالی او دَ حضر په حالت کښې تیمم جائز نه دے اګر چه او به نه موهی؟
جواب:- په مسئله کښې دَ علماؤ اختلاف دے لیکن دَ امام ابوحنیفه او امام مالک رحمهم الله په نیز په داسے حالت کښې دَ مقیم دَ پاره تیمم شته دے او دوی وئیلی دی چه دَ

مرضى او مسافر ذكر په اعتبار دَ اغلب سره دے ځکه چه مقيم روغ شخص اکثر داسے ده چه هغوی اوبه مومی۔ نو دوی وئيلی دی چه مريض او مسافر په صريح نص کښں داخل دی او او صحيح مقيم او روغ شخص په وخت دَ نيشتوالی دَ اوبو کښں په معنیٰ دَ نص کښں داخل دی۔ دويم جواب دا دے چه روستو لفظ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ، مقيم او مسافر، مريض او روغ ټولو ته شامل دے۔ او دا رنګ حديث بخاری او مسلم کښں دَ ابوجهيم رضی الله عنه په روايت سره ثابت دی چه نبی صلی الله عليه وسلم دَ اقامت او صحت په حال کښں تيمم کړے وو کله چه اوبه يئے نه موندلے (قرطبی)۔

سوال:۔ علی سفر په ځائے باندے مسافرين ولے نه ذکر کولو؟

جواب:۔ دا لفظ په مقصد کښں ښه واضح دے او هر چه لفظ دَ مسافرين دے نو هغه احتمال لری دَ هغه چا چه دَ سفر اراده لری۔

سوال:۔ مخکښں يئے عابری سبيل او وئيلو او اوس يئے علی سفره او وئيلو؟

جواب:۔ عابری سبيل عام وو چه په مسجد کښں ورتيريدی يا سفر کوی لکه چه مخکښں ذکر شول دا رنګ دَ تيمم دَ رخصت دَ پاره سبب سفر دے صرف تيريدل دَ لارے نه دی نو هلته صرف استثناء مقصد وه نو دَ هغے دَ پاره لفظ دَ عابری سبيل کافی وو او دلته ذکر دَ حکم مقصد دے او دَ هغے دَ پاره لفظ دَ سفر صريح دے۔

سوال:۔ مرض يئے په سفر باندے ولے مقدم کړو؟

جواب:۔ هغه مرض چه سبب دَ رخصت دَ تيمم دے عام سبب په نسبت دَ سفر باندے ځکه چه په حال دَ مرض کښں دَ اوبو نه موندل عام دی چه دَ اوبو دَ استعمال طاقت نه لری يا اوبه موجود نه وی او په سفر کښں صرف روستو حال موجوديږی۔ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ، دا هم عطف دے په خبر

دَکنتم بانلدے او دلیل دے چه فعل ماضي بغیر دَ قد نه دَ کان دَپاره خبر واقع کیدیشي - او دا دَ بصریانو مذهب دے۔
غَائِطِ، په اصل کښ ښکته زمکے ته وئیلے شي او دا بناء دے په عادت دَ عربو باندے چه هغوی به دَ قضاء حاجت دَپاره دَځان پټولو دَپاره ښکته ځائے ته راتلل نو دا کنایه ده دَ هر قسم بے اودسۍ نه چه په دلیل شرعي سره هغه سبب دَ حدث (پلیتۍ) وي - لیکن بنا په عادت اکثریه سره دَ لوے اودس ماتي نه روستو انسان فطرتي طور سره زر پاکوالے غواړي نو ذکر دَ غائط په دے اعتبار سره شوے دے۔
اَحَدٌ کښ اشاره ده چه انسان په داسے وخت کښ یواځے والے غواړي نو احد لفظ په یواځے والي باندے دلالت کوي۔
سوال:- دلته ئے په صیغه دَجمع خطاب سره ذکر نه کړو دَکنتم او روستو لامستم پشان ؟
جواب:- په دے حالت سره خطاب کول بدکنړل کیږي په تیز خاوندانو دَعقل سلیم باندے۔
اَوْلَامَسْتُمُ النِّسَآءَ، په دیکښ درے اقوال مشهور دي۔ اول دا چه دَلمس نه مراد جماع کول دي۔ او ابن جریر دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت ذکر کړیدے چه لمس، مس او مباشرت جماع ده لیکن الله تعالی کنایه کوي چه څه اوغواړي۔ او دا قول ابن کثیر دَ علی، ابی بن کعب رضی الله عنهما، مجاهد، طاوس، حسن، عبید بن عمیر، سعید بن جبیر، شعبي، قتاده او مقاتل رحمهم الله نه نقل کړیدے۔ او دا قول دَ امام ابوحنیفه رحمه الله هم دے۔ او دَ دینه دلیل تیولے کیږي چه جنب کله په اوبو باندے قادر نه وي نو تیمم به کوي او دَ دے تائید حدیث دَ عمار بن یاسر، عمران بن حصین او ابوذر رضی الله عنهم دے۔
او ابن جریر دے قول ته اولی بالصواب وئیلی دي۔ او صاحب اللباب وئیلی دي چه وجه دَ غوره والي ئے دا ده چه حدث اصغر په جمله دَ اوجاء احد منکم من الغائط کښ ذکر

شویدے که دلته هم حدیث اصغر (لمس په لاس سره) مراد شی نو تکرار به راشی - دویم قول دا دے چه دَ دینه مراد لمس دے په لاس سره او خکلولو ته هم شامل دے او دا دَ ابن مسعود او ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل دے۔ او دا قول دَ امام شافعی او امام مالک رحمه الله دے او دَ هغوی په اقوالو کښ هم اختلاف دے (هغه پخپل مناسب ځایونو کښ اوګورئ) - نو بناء په دے قول چه په لاس سره دَ ښځے مسح کول یا خکلولو سره اودس مات شو نو دا دَ حدث اصغر دَ پاره بل سبب دے - دریم قول دا دے چه لمس عام دے که په جماع سره وی یا په لاس وغیره سره او صاحب اللباب دَ دے قول نسبت ابن مسعود، ابن عمر رضی الله عنهم او ابراهیم نخعی ته کړیدے او قرطبی دا قول دَ امام مالک رحمه الله ګرځولے دے - او قرطبی په دیکښ ډیر تفصیل دَ اقوالو ذکر کړیدے۔

فائده :- په دیکښ الله تعالیٰ اول دَ رخصت دوه اسباب ذکر کړیدی چه مرض او سفر دے بیائے دَ اودس او دَ غسل دَ ایجاب ذکر کړیدے - او وجه دَ ترتیب دا ده چه اول ئے تخصیص اوکړو دَ مرض او سفر ځکه چه دا غالب دی په اسبابو دَ رخصت دَ تیمم کښ بیائے تعمیم اوکړو هر هغه چاته چه په هغه باندے تطهیر واجب وی او په اوبو باندے قادر نه وی دَ وجے دَ دشمن یا درندګانو نه یا لوښے دَ اوبو راویستلو ورسره نه وی - یا نور څه اسباب وی لیکن دغه اسباب دَ مرض او سفر پشان ډیر واقع کیدونکی نه دی - بیائے هغه ذکر کړو چه سبب دَ تطهیر اکبر وی چه هغه جنابت دے او په اوبو باندے نه وی قادر نو دا دَ مخکښ نه هم ډیر کم واقع کیدونکے دے یعنی په دے ترتیب کښ ترقی ده دَ اقل نه اکثر ته ځکه چه حالت دَ مرض اقل دے دَ سفر نه په باره دَ نه موندلو دَ اوبو کښ بیا حالت دَ سفر اقل دے دَ حال دَ قضاء حاجت نه ځکه

چه قضاء حاجت په سفر او حضر دواړو کښې واقع کیږي. بیا
حال دَ قضاء حاجت اقل دے دَ لمس دَ شیځے نه (لیکن دا په
هغه معنیٰ سره چه لمس نه مراد په لاس سره مسح کوی)
(کشاف، بحر المحیط).
فائده ۲ :- دَ دے څلورو (مرض، سفر، قضاء حاجت او لمس)
په مینځ کښې حرف دَ اَوْ دَ منع دَ خلو دَپاره دے او جمع دَ دے
څلورو واړو جائز ده - بیا اول دواړه اسباب دَ رخصت دَ تیمم
دی او روستو دواړه اسباب دَحدث او دَجنابت دی چه حدث
او جنابت ضرورت او ګرځی دَپاره دَ تیمم نو په څلورو واړو
څیزونو کښې ما به الاشتراک دا دے چه دا اسباب دی دَپاره
دَ ضرورت تیمم کولو ته.
فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً، قرطبی وئیلی دی چه عدم وجدان (نه
موندل) عام دی یعنی که بالکل معدوم وی یا موجود وی
لیکن رسیدل ورته ګران وی لکه لوښے دَ راویستلو نه وی
(بوقه، رسۍ وغیره) یا دَ دشمن یا درندګانو نه یره وی یا دَ
تندے یره وی او او به ورسره لږے وی. دا رنګ دَ مریض
عدم وجدان دا دے چه دَ زیادت مرض نه یره کوی یا ورسره
بل څوک نه وی چه دغه او به ورله ورکړی او دے ئے بخپله
نشی راخستلے. دا رنګ کله چه یو انسان بندی وی یا او به دومره
په ګران قیمت خرڅیږی چه دے ئے نشی اخستلے یا پکښې
غبن فاحش وی.
فَتَیَمَّمُوْا صَعِیْدًا طَیِّبًا، تَیَمُّم، په لغت کښې قصد کولو ته
وئیلے شی نو شرعًا پدیکښې نیت کول فرض دی. صَعِیْدًا،
په دیکښې ابوحیان ډیر اقوال ذکر کړیدی - ابوعبیده او
فراء بغوی وئیلی دی چه صرف خاورے ته وئیلے شی. لیث
وئیلی دی چه هغه زمکه چه هواره وی او په هغې کښې بوټی
نه وی - خلیل وئیلی دی چه اوچتے زمکے ته وئیلے شی او زجاج
وئیلی دی چه مخ دَ زمکے دے که خاوره وی او که غیر خاوره وی.

# اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا

آیا نه گورې هغه کسانو ته چه ورکړې شوې ده هغوی ته یوه برخه

طیب په معنیٰ دَ پاکے سره دے لکه په سوره نحل سنه ۳۲ کښ لفظ دَ طیبین۔ یا په معنیٰ دَ زرغونه کوونکے دے چه خاوره زمکه ته وی لکه سوره اعراف سنه ۵۸ کښ۔ اول قول دَ امام ابوحنیفه او امام مالک رحمهم الله دے او دویم قول دَ امام شافعی رحمه الله دے۔

فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ وَاَيْدِيْكُمْ، دا دَ تیمم شرعی تفصیل دے که دَ حدث (ربی اودسئ) دَ پاره وی او که دَ جنابت دَ پاره وی دواړه یو شان دی۔ اَيْدِيْكُمْ عام دے که صرف ورغوی تر مروندو پورے وی او که تر څنګلو پورے وی په دے کښ دواړه اقوال شته دے او دا دواړه احادیث صحیح دی اګرچه اصح په کښ اول قسم دے۔

فائده :- په سوره مائده سنه ۶ کښ ئے په لفظ دَ منه سره مقید کړے دے نو دا مطلق حمل دے په هغه مقید باندے او مِنْ دَ تبعیض دَ پاره دے دا زمخشری دَ ټولو اهل لغت دَ عربو نه نقل کړے ده او رد ئے کړے دے په هغه چا چه څوک وائی چه دا من دَ ابتداء دغائے دَ پاره دے۔ نو معلومه شوه چه په تیمم کښ ضروری دا ده چه دَ ممسوح (صعید طیب) نه څه حصه خامخا په لاسونو پورے او نخلی بیا ستنی وهل هم په حدیث سره ثابت دی۔

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُوْرًا ، كَانَ په صفاتو دَ الله تعالیٰ کښ دَ استمرار دَ پاره دے۔ عَفُوّ دَ خطا سره تعلق لری او مغفرت دَ قصد ګناه سره تعلق لری۔ دا رنګ عفو کښ تسهیل (آسانتیا) ته اشاره ده چه په تیمم کښ آسانتیا ده او مغفرت کښ اشاره ده چه طهارت شرعیه سبب دے دَ پاره دَ مغفرت دَ ګناهونو صغیرو نه۔

مِّنَ الْكِتٰبِ يَشْتَرُوْنَ الضَّلٰلَةَ

دَ كتاب نه اخلي گمراهي

وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ تَضِلُّوا السَّبِيْلَ ﴿۴۴﴾

او غواړي چه تاسو واوړئ دَ سمے لارے نه.

۴۴:- دَ دے آیت نه تر ۵۷ پورے دَ دے حصے دریم باب دے په دیکښ زجرونه دی اهل کتابو ته ځکه چه دوی هم په مخکښ ذکرکړی شوے نظام کښ خلل پیدا کوونکی دی اوظلم کوونکی دی دَ منافقانو پشان - او په دے باب کښ دَ دوی اولس قبیح صفات ذکرکوی - دوه په ۴۴ کښ، یو په ۴۵ کښ، اووه په ۴۶ کښ، یو په ۴۹ کښ، یو ۵۰ کښ، دوه په ۵۱ کښ او یو یو په ۵۲، ۵۳ او ۵۴ کښ - اودَ دے قبائحو په مینځ کښ په ۴۷ کښ قرآن کریم طرف ته دَ دوی دعوت ورکول دی - او په ۴۸ کښ دَ دوی په شرک باندے رد دے - او په آخرکښ په ۵۶ کښ تخویف اخروی او په ۵۷ کښ بشارت دے.

ربط ۱ :- هرکله چه دَ منافقانو اویهودیانو په صفاتوکښ ډیر مشابهت وو دَ یوبل سره نو دَ منافقانو دَ حال نه روستو اوس دَ یهودیانو حال ذکرکوی او آیت دَ یا ایها الذین آه جمله معترضه ده.

ربط ۲ :- هرکله چه په مخکښ آیت کښ تحذیر ذکر کړے شو مؤمنانو ته دَ نشے، غفلت او دَ دوام دَ بے اودسئ او جنابت نه (چه دَ دغه یهودیانو اخلاق دی) نو اوس دَ هغوی تفصیلی بد اخلاق ذکرکوی دَ دے دَ پاره چه مؤمنان دَ هغے بداخلاقو نه ځان بچ اوساتی.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا ، رویت بصری (دلیل په سترګو سره) مراد دے او متعدی کړے دے په "الی" سره په معنیٰ دَ الم تنظر الیهم دے - یا رویت علمی مراد

دے او په الی سره ئے متعدي کړیدے ځکه چه متضمن دے معنیٰ دَ انتهاء لره یعنی اَلَمۡ یَنۡتَهِ عِلۡمُكَ اِلَیۡهِمۡ۔ او په دواړه حالاتو کښې مقصد تعجیب دَ مؤمنانو او شهرت دَ یهودیانو دَ قباحتو دے۔

نَصِیۡبًا مِّنَ الۡکِتٰبِ، دَ دینه مراد بعضے علم دَ تورات دے او داسے کسانو ته نیمګړے ملایان وئیلے شی په سوره العمران کښې داسے تیر شویدی۔

یَشۡتَرُوۡنَ الضَّلٰلَةَ، اشتراء په معنیٰ دَ استحباب (غوره کولو) دے یا په معنیٰ دَ استبدال دے۔ په دے روستو معنو باندے بل جانب پټ دے یعنی بالهدی۔ او لفظ دَ ضلالت عام دے کفر کولو ته په قرآن او په آخری رسول صلی الله علیه وسلم باندے او تخویف کول په صفاتو دَ هغه کښې چه په تورات کښې ذکر وو او نور اقسام دَ بے دینۍ۔

او دا مرتبه دَ ضلال ده او وروستے مرتبه دَ اضلال (خلق ګمراه کول) ذکر کوی په وَیُرِیۡدُوۡنَ اَنۡ تَضِلُّوا السَّبِیۡلَ، یعنی دوی پخپله ګمراهۍ باندے اکتفاء نه کوی بلکه دَ دے نبی صلی الله علیه وسلم تکذیب او مخالفت دَ دے دَ پاره کوی چه مؤمنانو لره مرتد کړی لکه په آیت ۸۹ کښې راځی۔ دا رنګ دوی دَ قرآن کریم او دَ دے نبی نه خلق منع کوی او هر کله چه دَ نورو خلقو ګمراه کول دَ دوی په اختیار کښې نه دی دَ دے وجے نه دَ دوی اراده ئے صرف ذکر کړه۔ یا اراده په معنیٰ دَ کوشش کولو ده او دا دلیل دے چه اراده دَ ګناه او دَ ګمراه کولو دَ بل شخص دا هم ګناه کبیره ده۔ په دے آیت کښې دَ دوی دوه صفات قبیحه ذکر شول۔

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاَعْدَآئِكُمْ ۭ وَكَفٰى

او الله تعالىٰ ښهٔ پوهه دے په دشمنانو ستاسو او پوره دے

بِاللّٰهِ وَلِيًّا ۡ وَّكَفٰى بِاللّٰهِ

الله تعالىٰ بچ کوونکے او پوره دے الله تعالىٰ

نَصِيْرًا ﴿۴۵﴾

مددګار

ف ۴۵:- په دیکښې تاکید دے دَ ما قبل مضمون او تحذیر ورکول دي دَ هغوي دَ تابعدارئ او دوستانے کولو ته۔

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ، اَعْلَمُ صیغه دَ تفضیل ده یعني اَعْلَمُ مِنْكُمْ تاسو دَ هغوي په دشمنئ باندے لږ علم لرئ لیکن الله تعالىٰ پوره علم لري۔ یا اعلم په معنیٰ دَ علیم سره دے۔

بِاَعْدَآئِكُمْ، یعني دَ دوي په دشمنئ او دَ مؤمنانو خلاف دَ دوي په مکرونو جوړولو ښهٔ عالم دے۔ یا دَ هغوي په عاقبت باندے ښهٔ پوهه دے۔

وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَلِيًّا، په دیکښې تسلي ورکول دي مؤمنانو ته چه دَ دغه دشمنانو ته یره مه کوئ ځکه چه الله تعالىٰ ستاسو داسے حفاظت کوي چه بل محافظ ته حاجت نشته او دا معنیٰ دَ کفایت ده۔

وَكَفٰى بِاللّٰهِ نَصِيْرًا، یعني که هغوي تاسو سره مقابله کوي او جنګونه کوي نو الله تعالىٰ به ستاسو پوره مدد کوي داسے مدد چه بل مددګار ته حاجت نه راځي۔ لفظ دَ كَفٰى ئے دَ تاکید دَپاره مکرر راوړو او دا تعبیر دے دَ توحید۔ عام اهل علمو وئیلي دي چه حرف دَ باء زیاتي دے دَپاره دَ تاکید دَ کفایت۔ او زجاج وئیلي دي چه معنیٰ دا ده چه كفى الاكتفاء بالله۔ په دے دواړه قولونو باندے باء زیاتي نه ده خو په دے دواړه قولونو باندے ابوحیان رد کړے دے

مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا يُحَرِّفُوْنَ

بعضې د يهوديانو ر داسې خلق دي) چه بدلوي

الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ وَيَقُوْلُوْنَ

کلمې د الله تعالیٰ د ځپلو ځايونو نه او وائي دوي

سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَاسْمَعْ

واوريدو موږ او ته دې منو موږ او واوره ته

غَيْرَ مُسْمَعٍ وَّرَاعِنَا لَيًّا

او آوريدل دِ اونکړيشي تاته، او په راعنا سره تاوهي

بِاَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِي الدِّيْنِ ؕ

ژبې ځپلې او عيب لګوي په دين (اسلام) کښې.

وَلَوْ اَنَّهُمْ قَالُوْا سَمِعْنَا

او که دوي وئيلي وې چه واوريدو موږ

وَاَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا

او خبره منو او واوره ته او اوګوره موږ ته

لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَاَقْوَمَ ۙ

خامخا غوره به وې دوي لره او ښه برابره وې (د شرع سره)

وَلٰكِنْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ

ليکن لعنت کړيدې په دوي باندې الله تعالیٰ په سبب د کفر د دوي

فَلَا يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۴۶﴾

نو ايمان نه راوړي مګر لږ کسان۔

او لفظ د وَلِيًّا او تَصِيْرًا منصوب دے ځکه چه حال دے يا تميز دے۔

ﺳﻪ۴۶ :- په دیکښ دَ یهودیانو دَ نورو صفاتو قبیحو ذکر کوی ـ مخکښ دَ نیمګړو ملایانو ذکر اوکړو اوس دَ هغوی دَ لویو ملایانو ذکر کوی.
او دَ هغوی دا صفتونه دَ هغوی دَ عداوت دلیلونه دی - او په مِنَ الَّذِينَ هَادُوا، کښ په اعتبار دَ اعراب سره ډیر اقوال دی -
دَ سیبویه په نیز دا خبر مقدم دے او قوم یحرفون مبتداء پټه ده.
او دَ فراء بغوی په نیز لفظ دَ مَنْ (موصوله) پټ دے یعنی مَنْ يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ. او دَ بعضو په نیز مبتداء پټه ده هُمْ مِنَ الَّذِينَ هَادُوا - او یحرفون حال دے - (دیکښ نور اقوال هم شته دے).
هَادُوا، په معنیٰ دَ تهودوا دے یعنی یهودیت ئے اختیار کړیدے.
يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَنْ مَوَاضِعِهِ، كَلِمَ اسم جنس دے او کلمة ئے واحد دے - او دلته کلمات دَ تورات مراد دی چه په هغے کښ به ئے کله کله لفظی تحریف کولو لکه په صفاتو دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم کښ چه په تورات کښ ذکر وو - او اکثر به ئے تحریف معنوی کولو یعنی فاسد تاویلات به ئے کول - یا کلمات دَ قرآن او دَ نبی صلی الله علیه وسلم مراد دی چه دوی به واوریدل نو په هغے کښ به ئے تحریف معنوی کولو - عَنْ مَوَاضِعِهِ، ضمیر کلم ته راجع دے ځکه چه هغه جنس دے.
او واحدی وئیلی دی چه هره جمع چه دَ هغے حروف دَ هغے دَ مفرد نه کم وی نو دَ هغے تذکیر جائز دے - دا سے په سورة مائده سـ۱۳ کښ هم دی او په مائده سـ۴۱ کښ من بعد مواضعه راغلے دے - ابوحیان دَ دے فرق ته اشاره کړیده چه من بعد مواضعه په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه استقرار دَ کلماتو په خپل ځائے کښ ثابت او معلوم وی - او عن مواضعه په هغه ځائے کښ استعمالیږی که استقرار په خپلو مواضعو کښ معلوم وی او که نه وی - نو وجه دَ فرق دا ده چه کوم ځائے کښ دَ دوی دَ ډیرے سرکشئ او طغیان ذکر وی (لکه په دے ځائے کښ او مائده سـ۱۳ کښ) نو هلته عن مواضعه راوړی یعنی دوی تحریف اوکړو د اول ځل نه او سبقیت ئے اوکړو تحریف

ته بغیر دَ څه فکر او سوچ نه په دغه کلماتو کښ - او په کوم ځائے کښ چه ډیره سرکشی دَ دوی نه ده ذکر (لکه سوره مائده سلا څکه چه هلته ئے په بعضو فیصلو کښ نبی صلی الله علیه وسلم ته رجوع کړیده) نو هلته ګویا چه دوی تحریف ته سبقیت نه کوی لیکن څه عارض ورته پیښ شوے وی نو تحریف ئے کړے وی -

او امام رازی دَ فرق وجه داسے بیان کړیده چه عن مواضعه هغه ځائے کښ ذکر دے چه تحریف معنوی او باطل تاویلات کوی نو په هغے کښ معنیٰ دَ تجاوز ده دَ دے وجے نه ئے عن ذکر کړیدے - او من بعد مواضعه هغه ځائے کښ ذکر دے چه تحریف لفظی او معنوی دواړه کوی - نو په سوره مائده سلا کښ واقعه دَ رجم ذکر ده چه په هغے کښ دوی تحریف لفظی او معنوی دواړه کړے وو او دلته دَ تحویف نه مراد تاویلات فاسده او شبهات باطله اچول دی او اړول دی دَ الفاظو دَ حق معانیو نه باطل معانیو ته لکه چه په دے زمانه کښ مبتدعین دَهغه آیاتو نو (او احادیثو) سره دا کار کوی چه دَ دوی دَ مسلک نه خلاف وی -

دَ يَقُولُونَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا ، په دیکښ دوه توجیهات دی - اول دا چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم په حضور کښ دوی دَ ډیر عناد دَ وجے نه داسے کلمات وئیل - دویم دا چه امام راغب په مفردات کښ لیکلی دی چه دا عام دے هر هغے خبرے ته چه دَ دوی دَ خواهشاتو نه خلاف وه که دَ دوی په کتاب کښ وه یا په قرآن او سنت کښ وه نو دوی په لسان حال یا قال سره وائی چه سمعنا ، چه مونږ په دے پوهیږو لیکن مونږ دا نه منو -

وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ ، دا په سمعنا باندے عطف دے او دَ یقولون دَ لاندے داخل دے او دا قول لسانی دے په مخامخ دَ نبی صلی الله علیه وسلم - غَيْرَ ، حال دے او دا دَ دوی دَ

طرف ته په طریقه دَ دُعاء شر (خیرو کولو) سره دے یعنی داوره زمونږ کلام او تا ته دِ آوریدل او نکړیشی یعنی ته دِ کوڼ شے - او محمود کرمانی په غرائب التفسیر کښ وئیلی دی چه دوی به وئیل چه ته غوږ کیده او ته دِ مړ شے ځکه چه مړے هم آوریدل نشی کولے نو دا لفظ (غیر مسمع) به دوی پټ وئیلو - یا غیر مفعول دے دَ اسمع دَپاره او دا کلام دَ دوی احتمال دَ خیر او دَ شر لري - احتمال دَ خیر دا دے چه اسمع غیر مسمع مَکرُوهًا وَلَا اَذَیٰ چه ناکاره او دَ تکلیف کلام دِ تا ته نه آوریدلے کیږي او احتمال دَ شر دا دے چه غَیْرَ مُسْمَعٍ خَیْرًا چه دَ خیر کلام دِ تا ته نه آوریدلے کیږي (زمخشری) -
او دَ حسن او مجاهد نه نقل دے چه غیر مُسْمَعٍ په معنیٰ دَ غیر مقبول او غیر مجاب دے (قرطبی، ابن عطیه)
وَرَاعِنَا، دَ دے تفسیر په سوره بقره ۱۰۴ کښ تیر شویدے -
لَیًّا بِاَلْسِنَتِهِمْ، دا مفعول له دے دَ یقولون دَپاره یا مصدر دے په معنیٰ دَ حال کښ دے یعنی دوی په عصینا، غیر مسمع او راعنا کښ لی اللسان (دَ ژبے اړول) کوی په پټ وئیلو سره یا په ښکاره کولو دَ خیر سره یا په مدّ الف سره په راعنا کښ یا په حذف دَ "یاء" سره په راعنا کښ چه راعینا دے - یا دا مفعول مطلق دے دَ فعل پټ دَپاره یعنی یَلْوُوْنَ لَیًّا او دَ دینه مراد هغه دَ ژبے اړول دی چه په سوره آل عمران ۷۸ کښ ذکر دی -
وَطَعْنًا فِی الدِّیْنِ، په دے کښ هم دغه درے احتمالات دی - مفعول له یا حال دے دَ ما قبل نه یعنی دغه کلمات دوی طعن دَپاره وائی - یا مفعول مطلق دے دَ پټ فعل دَپاره یعنی یطعنون طعنًا یعنی په دین اسلام کښ دَ طعن کولو کوشش کوی -
وَلَوْ اَنَّهُمْ قَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا، په دے کلام کښ دعوت ورکول دی خیر طرف ته یعنی که دوی دَ عصینا په ځائے اطعنا وئیلے او غیر مسمع ئے نه وئیلے او دَ

راعنا په ځائے انظرنا وئیلے نو لکان خیرًا لهم، خیرًا، اسم تفضیل دے او مفضل علیه پټ دے یعنی من قولهم او دا په اعتبار د گمان د دوی سره ځکه چه د دوی په اقوالو کښ هیڅ خیر نشته - یا خیر په معنیٰ د جید او فاضل دے معنیٰ تفضلی پکښ نشته۔

واقوم، په معنیٰ د عدل او دا سم (سیده برابر) دلته هم یا معنیٰ تفضیلی مراد ده په اعتبار د گمان د هغوی سره یا صرف فعلی معنیٰ ده بغیر د تفضیل نه - آلوسی وئیلی دی چه د خیرًا نه مراد بنیه نفع ورکوونکے دے دوی لره او اقوم معنی اعدل فی نفسه - او هر کله چه انسان او خصوصًا یهودیان د نفعے ډیر خواهش لری د دے وجے نه خیرًا ئے مخکښ ذکر کړو۔

ولکن لعنهم الله بکفرهم، دلته اقامت د مسبب دے په ځائے د سبب یا ئے یعنی لم یقولوا الا نفع والا قوم (دوی فائده مند او د عدل قول نه دے کړے) او دا سبب د لعنت دے - او بکفرهم نه مراد د دوی سابق کفر دے چه هغه کفر عنادی دے او دغه کفر سبب دے د پاره د ترک د خیر او اقوم - او دغه ترک سبب دے د پاره د لعنت په دوی باندے۔

فلا یؤمنون الا قلیلا، په دے استثناء کښ درے اقوال دی - اول دا استثناء ده د مفعول د لعنهم نه - دویم دا استثناء ده د ضمیر د فلا یؤمنون نه - په دے روستو قول باندے اعتراض دے چه دا کلام غیر موجب دے یعنی نفی ده نو په دیکښ په مستثنیٰ باندے رفع (رپیښ) پکار دے بنا په بدلیت سره - دریم قول دا چه صفت د موصوف پټ دے یعنی الا ایمانًا قلیلًا - او قلت خو یا په معنیٰ د عدم سره دے چه بالکل ئے ایمان نشته یا د دے نه مراد ایمان لغوی دے په بعضے ایمانیاتو باندے او هغه خو ایمان شرعی نه دے۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ

اے کتاب والو !

اٰمِنُوْا بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا

ایمان راوړئ په هغه کتاب چه نازل کړیدے موږ رشتنے کوونکے دے

لِّمَا مَعَكُمْ مِّنْ قَبْلِ

دَ هغه کتاب چه تاسو سره دے مخکښ دَ دے نه

اَنْ نَّطْمِسَ وُجُوْهًا فَنَرُدَّهَا

چه وران به کړو مخونه نو اوبه کرځوو هغه

عَلٰٓى اَدْبَارِهَآ اَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا

په شاګانو دَ هغوی یا به لعنت اوکړو په دوی لکه چه

لَعَنَّآ اَصْحٰبَ السَّبْتِ ؕ وَكَانَ

لعنت کړیدے موږ په خالی والو، او دے

اَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا ﴿۴۷﴾

حکم دَ الله تعالیٰ پوره کړے شوے۔

۴۷ په دے آیت کښ دَ دوی اووه صفات قبیح ذکر شول۔

ربط له :- هرکله چه ولو انهم قالوا کښ دعوت وو صحیح اقولو ته نو اوس دعوت ورکوی ایمان ته په ټول قرآن باندے او دعوت سره یے لوے وعید او تخویف ذکر کړے دے دَ زیات تاثیر دَپاره۔ او دَ هغے نه روستو یے تخویف ورکړو دَ شرک نه او دَ تزکیے کولو نه دَ ځیلو ځانونو۔

ربط ۲ :- هرکله چه دَ دوی کفریات او قبائح یے ذکر کړل نو اوس دَ هغے نه دَ بچاؤ دَپاره طریقه ذکر کوی چه هغه ایمان کامل دے په قرآن کریم باندے۔

يَآأَيُّهَا الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ ، لفظ دَ اوتوا الكتٰب دواړه ډلو ته شامل دے که هغه اوتو نصيبًا من الكتب والا دی او که پوره کتاب والا دی - یا دَ دیته مراد دَ دوی لوے لوے علماء دی ځکه چه نور واړه ملایان او عوام خو دَ دوی تقلید کوونکی دی نو دَ دوی إصلاح اول ضروری ده۔

اٰمِنُوْا بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ ، دَ تنزیل او تصدیق ذکر دَ زیات ترغیب دَپاره دے او دَ تصدیق معنیٰ په سوره بقره کښ ذکر کړے شویده۔

مِنْ قَبْلِ أَنْ نَّطْمِسَ وُجُوْهًا ، طمس په لغت کښ محو کیدلو (ورانیدلو) ته وئیلے شی لازمی او متعدی دواړه راځی لکه په (لَطَمَسْنَا عَلٰى أَعْيُنِهِمْ) یٰس ۶۶ کښ او (فَإِذَا النُّجُوْمُ طُمِسَتْ) مرسلات ۸ کښ - دلته دَ ورانولو دَ مخونو نه مراد دا دے چه الله تعالیٰ دَ انسانانو په مخونو کښ دَ روزونه نون او دَ سترګو نه صاد او دَ پوزے نه الف او دَ خُلے نه میم جوړ کړیدے نو دا به وران کړی نو دَ اوښ دَ خپړے یا دَ اس دَ سوے پشان به اوګرځی - دا روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه آلوسی نقل کړیدے او فراء بغوی وغیره وئیلی دی چه په مخونو ویښته را اوبهٔ کوی پشان دَ مخونو دَ شادوګانو - او بل قول دا دے چه دَ وجوه نه مراد دَ دنیا سرداران او محترم خلق دی۔

فَنَرُدَّهَا عَلٰى أَدْبَارِهَا ، دا دَ طمس تفصیل دے یعنی او به ګرځوو (دا مخونه دَ دوی) پشان دَ سټونو چه په هغے کښ سترګے وغیره نشته او دا قول دَ ویختو ځائے دے - او دَ ابن عطیه قول دا دے چه سترګے به ورله په سټونو کښ جوړے کړو - او چه دَ وجوه نه مراد سرداران شی نو دَ دے جملے مطلب بیا دا دے چه دَ دوی وجاهت او عزت به ختم کړو او په ذلت کښ به ئے اخته کړو۔

أَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّا أَصْحٰبَ السَّبْتِ ، دَ هُمْ ، ضمیر الذین

اوتوا الکتاب ته راجع دے یا وجوه ته راجع دے او دَ لعن نه مراد مسخ دَ دوی ده پشان دَ شادوګانو اوخنزیرانو - اودا قول دَضحاک اوحسن بصری وغیره دے او دلیل په دے بانـدے تشبیه ده په لفظ دَ کما لعنا اصحاب السبت سره - یا دَ دینه مراد زائل کول دی دَ اخلاقو دَ انسانیت او په خسیس او بد اخلاقو کښ اخته کول دی پشان دَ اخلاقو دَ شادوګانو اوخنزیرانو - اوحرف دَ اَوْ دَ منع دَ خلو دَپاره دے او جمع ددوارو عذابونو هم جائز ده -

سوال :- دلته الله تعالیٰ دوی له دَ دے دوه عذابونه تخویف ورکړیدے په وخت دَعدم ایمان دَ دوی کښ او ایمان خو ئے راوړے نه دے نو دا عذابونه ولے په دوی بانـدے نازل نه شول ؟

جواب ۱ :- دلته شرط دَ عذاب دَ ټولو ایمان نه راوړل وو لیکن بعضے کسانو په زمانه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم کښ او بعضو روستو ایمان راوړیدے نو دَ دوی نه عذاب رفـع شـو او دَ منکرینو عذاب به په آخرت کښ وی۔

جواب ۲ :- دَ دے عذابونو وخت الله تعالیٰ نه دے مقرر کړے نو روستو به الله تعالیٰ په دوی بانـدے داسے عذابونه دَ طمس او مسخ راولی لکه چه په بعضے احادیثو کښ ثابته ده - پـه مشکوٰة باب القدر کښ دی چه داسے عذابونه به الله تعالیٰ په منکرینو دَ تقدیر بانـدے راولی او اکثر یهودیان اول مکذبین دَ تقدیر دی۔

جواب ۳ :- دلته دوه عذابونه ذکر دی طمس یا لعن او دَ لعن دوه معنے دی (لکه چه مخکښ ذکر شویدی) نو لعن په یو معنیٰ په دوی بانـدے راغلے دے لکه چه په سـورة بقره ۱۵۹ ، ۱۶۱ کښ ذکر دی او دغه آیاتونه اول دَیهودیانو په باره کښ نازل شویدی۔

جواب ۴ :- داعذابونه په دوی بانـدے په ورځ دَ قیامت

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ
یقینًا الله تعالیٰ نه بخي چه شرک اوکړے شي دَ هغه سره
وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ
او بخي هغه ګناهونه چه کم وي دَ دینه هغه چا لره
يَّشَآءُ ۚ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدِ
چه اوغواړي او چاچه شرک اوکړو دَ الله تعالیٰ سره نو یقینًا
افْتَرٰٓى إِثْمًا عَظِيْمًا ﴿٤٨﴾
جوړه کړه دَه ګناه لویه .

دی په دلیل دَ سوره یٰس ۶۶ ، ۶۷ سره .
جواب ۵ :- دَ طمس دَ وجوه او رد علی الادبار مخکښ معنیٰ کنائي ذکر شوه چه مشران او مخوریز خلق دَ دوی په ذلیل او رسوا کړیشي. او دغه عذاب په واقعه دَ بنو نضیر او بنو قریظه کښ په دوی باندے واقع شویدے هغه دَ ضربت علیهم الذلة والمسکنة په تفسیر کښ ذکر شویدی۔
وَكَانَ أَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا ، دَ أَمْرُ اللّٰهِ نه مراد دَ هغه وعیدونه دی یا هغه چه الله تعالیٰ په هغے باندے قضا کړے وی۔ او مفعول په معنیٰ دَ نافذ (پوره کیدونکے او جاری کیدونکے) دے او واقع کیدونکے په زمانه حال یا زمانه استقبال کښ۔ او دا رنګ په تیر شوے زمانه کښ چه الله تعالیٰ دَ سابقینو انبیاؤ سره دَ هغوی په قومونو باندے عذابونه فیصلے کړے وے نو هغه ټولے واقع شویدی - او کانَ دلته دَ استمرار (همیشوالی) دَ پاره دے -
۴۸ : ربط ۱ :- هر کله چه مخکښ آیت کښ ئے اهل کتابو ته په عذاب سره تخویف ذکر کړو او ورسره ئے دَ ایمان ترغیب ذکر کړو نو اوس په دے آیت کښ دَ هغے علت ذکر کوی

چه ایمان (توحید) سبب دَ مغفرت دے او مغفرت دفعے دَعذاب دنیوی ته هم شامل دے - بناء په دے ان الله دَ ماقبل علت دے -
ربط ۲ :- هر کله چه یهودیانو دَ ایمان دعوی کوله او دَ نجات دعوی یئے کوله او حال دا چه په هغوی کښ شرک موجود وو نو په دے آیت کښ دَ استیناف په طور سره ذکر کوی چه شرک ورسره ګډ وی نو هغه ایمان فائده نه ورکوی -
اِنَّ اللّٰهَ لَا یَغْفِرُ اَنْ یُّشْرَکَ بِهٖ ، دلته سوال پیدا کیږی چه شرک یئے ذکر کړے دے او کفر یئے نه دے ذکر کړے؟ نو جواب کښ آلوسی وئیلی دی چه دَ شرک دوه معنے دی - اوله معنیٰ ، دا عقیده ساتل چه دَ الله تعالیٰ سره په ربوبیت یا الوهیت کښ برخه والا شته دے - دویمه معنیٰ ، دا چه شرک په معنیٰ دَ کفر دے - او دلته هم دا معنیٰ مراد ده او ابوحیان دَ زجاج نه نقل کړیدی چه هر کافر مشرک دے ځکه چه یو تن دَ یو نبی نه انکار اوکړی نو دَ هغه ګمان دا وی چه دغه آیات چه دِ نبی راوړیدی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نهٔ دی - نو کوم څیز چه دَ الله تعالیٰ دَ پاره وو نو ده دَ هغے نسبت اوکړو غیر الله ته نو مشرک شو - او زهٔ وایم چه هر کافر دَ خپل خواهش نه اله جوړ کړیدے یعنی خواهش یئے دَ الله تعالیٰ سره شریک کړیدے نو ځکه هر کافر مشرک دے - نو دَ دے جملے مقصد دا دے چه الله تعالیٰ هیڅ قسم شرک او کفر نه معاف کوی -
تنبیه :- ابوحیان ، امام رازی او آلوسی رحمهم الله وئیلی دی چه دا آیات دلالت کوی چه دَ شرع په تیز یهودیان مشرکان دی او دَ هغے دوه وجے دی - اوله وجه دا چه دا آیت دَ یهودیانو په رد کښ نازل شویدے نو په هغوی کښ شرک نه وے نو دا سے یئے ولے اوفرمائیل چه اَنْ یُّشْرَکَ بِهٖ - دویمه وجه دا ده چه په دویمه جمله کښ واضح ده چه دَ شرک نه علاوه الله تعالیٰ ټول ګناهونه - بخی (رچه او غواړی) نو که یهودیت شرک

نه وي نو بخنه به یې کیدله او دا خو دَ اجماع نه خلاف ده - او آلوسي وئیلي دي چه شرعی تصریح کړیده چه اهل کتاب مشرکان دي - او دغه علماؤ مفسرینو وئیلي دي چه په کوم آیاتونو کښې یې عطف دَ مشرکینو په اهل کتابو باندې کړیدې او عطف خو مغائرت غواړي نو جواب یې کړیدې چه مغائرت په اعتبار دَ معنیٰ لغوي سره دې او اتحاد په معنیٰ شرعي سره دې -

سوال :- په سورة زمر ۵۳ کښې دي چه ان الله یغفر الذنوب جمیعًا نو هغه خو شرک ته هم شامل دې ؟

جواب ۱ :- هلته مغفرت په اعتبار دَ توبه کولو سره دې په دلیل دَ انیبو سره او دلته بغیر دَ توبې نه مراد دې ؟

جواب ۲ :- هلته صرف مؤمنانو ته خطاب دې او مؤمنانو خو شرک نه وي کړې نو هلته دَ الذنوب نه مراد سیوا دَ شرک او کفر نه نور گناهونه دي -

وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَاۤءُ ، دُوْنَ ، په معنیٰ دَ اَدْون (کوز او ښکته) سره دې یعنی هغه گناهونه چه دَ شرک او کفر نه ښکته دي نو هغه باقي کبائر او صغائر دي - الله تعالیٰ دَ هغې بخنه کوي بغیر دَ توبې کولو نه کله چه او غواړي او په توبې سره هم مغفرت کوي - لیکن په هغې کښې بناء په غوره قول سره دا ده چه مشیت دَ الله تعالیٰ شرط دې یعنی چه الله تعالیٰ او غواړي نو په توبې سره یا بغیر دَ توبې نه گناهونه معاف کوي -

فائده :- ابن عطیه ذکر کړیدي چه انسانان څلور قسمه دي - اول قسم کافر چه پخپل کفر باندې مړشي نو دې به همیشه په اور دَ جهنم کښې وي په اتفاق او اجماع سره او ډیر آیتونه په دې باندې دلیل دي - دویم قسم مؤمن محسن چه چرې یې گناه نه وي کړې او په دغسې پاک حال باندې وفات شي نو دې به دَ ابتداء نه په جنت کښې وي - هغه

آیتونه دَ بشارت دَ جنت چه دَ کامل مؤمنانو په باره کښ دی دَ دے
دلیل دے۔ دریم قسم مؤمن ګنهګار او بیا دَ ګناهونو توبه اوکړی او
وفات شی نو داسے شخص دَ قول اهل سنت په نیز دَ دویم قسم
سره ملحق دے ۔لیکن دَ متکلمینو په نیز دے هم موقوف
دے په مشیت دَ الله تعالیٰ باندے ۔ په دے باندے دَ توبے
آیتونه دلائل دی لکه سوره طه ۸۲، سوره فرقان ۷۰، ۷۱
څلورم قسم مؤمن ګنهګار دے چه توبه یئے نه وی کړے او
وفات شی نو دَده په باره کښ اختلاف دے ۔ دَ اهل سنت
والجماعت په نیز دَ دے جملے ( ویغفر ما دون ذالك لمن
یشاء) مصداق دا قسم دے ۔ که دَ الله تعالیٰ خوښه شی نو دَهٔ
ته به بخنه اوکړی او که نه نو عقوبت به ورله ورکړی او بیا به یئے
جنت ته داخل کړی ۔ مرجئه وائی چه دا شخص جنتی دے او
ګناهونه ورته هیڅ ضرر نه ورکوی او دَ وعید آیاتونه دَ دوی په
نیز په کافرانو پورے خاص دی او دَ وعد آیاتونه دَ ټولو مؤمنانو
دَپاره دی ۔ او معتزله وائی چه چا کبیره ګناه کړے وی او توبه
یئے نه وی ویستلے نو دے به همیشه په جهنم کښ وی ۔ او خوارج
وائی چه داسے شخص کافر دے او همیشه به په جهنم کښ وی۔
خو په دے باب کښ دَ اهل سنت والجماعت دلائل حق او
درست دی او دَ نورو ډلو دلائل باطل دی ۔ او دَ دے وجه
نه قرطبی وئیلی دی چه دَ دے آیت اوله جمله محکم ده او
دویمه جمله متشابه ده یعنی دَ دے اختلاف دَ وجے نه ۔
وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدِ افْتَرٰٓى اِثْمًا عَظِيْمًا ، دا دَ اولے جملے
دَپاره علت دے او دَ شرك ډیر قباحت ذکر کوی ۔ افتری،
دَ فری نه دے په لغت کښ قطع ته وئیلے شی او قطع اکثر دَ فساد
دَ خیز دَپاره مستلزم وی نو فساد ته هم وئیلے شی او دا په قرآن
کښ په معنیٰ دَ دروغو ، شرك او ظلم سره استعمالیږی ۔ او امام
راغب وئیلی دی چه افتراء ارتکاب دَ داسے قول او عمل
دے چه دَ هغے کول مناسب نه وی نو اطلاق یئے کیږی په

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُزَكُّونَ

آیا نه گورې هغه کسانو ته چه ستاینې کوي

أَنفُسَهُم ۚ بَلِ اللَّهُ يُزَكِّي

د ځانونو خپلو، بلکه الله تعالی پاکوي

مَن يَشَاءُ وَلَا يُظْلَمُونَ

چاله چه اوغواړي او ظلم به نشي کیږي په دوی

فَتِيلًا (٤٩)

په قدر د تار د هډوکي د کجورې۔

جوړولو د دروغو او ارتکاب د گناه پاتې دے۔ نو اشاره شوه چه
شرک کول گناه عظیم دے سره د افتراء نه او هر کله چه
مشرک د خپل شرک د جواز نسبت الله تعالی ته کوي او ثواب
ئې گڼړي د دے وجے نه ئې دیته افتراء او وئیله۔
سوال:- دا سے په دے سورت ۱۱۶ کښې هم راغلي دي لیکن
هلته ئې ومن یشرک بالله فقد ضل ضلالا بعیدا۔ فرمائیلي
دي نو د فرق وجه ئې څه ده؟
جواب:- دا آیت د یهودیانو په باره کښې دے او هغه د عوامو
په باره کښې دے۔ او کتابیان د گناه کولو د پاره د ځان نه
دلیلونه جوړوي ځکه ئې دیته افتراء او وئیله او عوام
خلق د گناهونو د پاره دلیلونه نه جوړوي بلکه هسے گناهونه
کوي نو د هغوي د پاره ئې ضلال بعید ذکر کړو۔

۴۹:- أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنفُسَهُم، په دے آیت
کښې د دوي بل قباحت ذکر کوي یعنې سره د شرک او کفر کولو
نه د ځان صفتونه کوي چه مونږ جنتیان یو او مونږ د الله
تعالی ځامن او دوستان یو۔ تزکیه، پاکول دے د قبیح نه
په قول او فعل سره په فعل سره تزکیې ته رغبت ورکړے

شویدے په ډیرو آیتونو کښ لکه (قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَکّٰی، قَدْ اَفْلَحَ مَنْ زَکّٰهَا۔ اَلَّذِیْ یُؤْتِیْ مَالَهٗ یَتَزَکّٰی، خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَکِّیْهِمْ بِهَا)، او په قول سره دَ خپل ځان تزکیه منع ده لکه په سورة نجم ۳۲ کښ دی لَا تُزَکُّوْا اَنْفُسَکُمْ، بلکه دَ بل شخص تزکیه هم منع ده مګر په خاص الفاظو چه په حدیث کښ ذکر دی چه دَ چا صفتونه او صفائی کوی نو داسے وائی چه لَا اُزَکِّیْ عَلَی اللّٰهِ اَحَدًا یا اَنَا اَحْسِبُهٗ وَاللّٰهُ حَسِیْبُهٗ۔ او وجه دا ده چه تزکیه دَ بل چا په اصل کښ اخبار دے دَ باطن دَ هغه نه او په باطن خو عالم الله تعالی دے۔

بَلِ اللّٰهُ یُزَکِّیْ مَنْ یَّشَآءُ، بل، دَ پاره دَ اضراب دلالت کوی چه اعتبار دَ تزکیے دَ الله تعالی دے۔ او دَ الله تعالی تزکیه هغه پاکول او بچ ساتل دی دَ ګناهونو نه او توفیق ورکول دی دَ طاعاتو۔ او دَ یَشَآءُ مفعول پټ دے یعنی تزکیته او هغه خوک دی چه لائق دَ تزکیے دی په نیز دَ الله تعالی او هغے ته اشاره ده په سورة نجم ۳۲ (هُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقٰی) کښ۔

وَلَا یُظْلَمُوْنَ فَتِیْلًا، دَ ضمیر په مرجع کښ دوه اقوال دی۔ اول دا چه الذین یزکون ته راجع دے نو دا تخویف دے یعنی دوی له چه په دغه تزکیه سره کوم عذاب ورکیدیشی په هغے کښ به هیڅ کمے نه کیږی۔ دویم دا راجع دے یزکی من یشاء ته او بشارت دے یعنی کوم کسانو چه الله تعالی په دنیا کښ مدحه او تزکیه کړیده دَ هغوی په ثواب کښ هیڅ کمے نه کیږی۔ فَتِیْلًا، دا په اصل کښ دَ فتل نه اخستلے شویدے دَ پړی او دَ مزی غځتلو ته وئیلے شی او دَ عربو په عرف کښ (په یو قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما او دَ عطاء او مجاهد په نیز) هغه تار ته وئیلے شی چه دَ کجورے دَ هډوکی په چود کښ وی۔ او په بل قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما او دَ ابو مالک او سدی په نیز هغه خیرے دے چه په ګوتو مخلو سره دَ ورغوو په مینځ کښ پیدا کیږی۔ او دَ حسن

بصری په تیز صرف چوډ دَ هډوکی ته وئیلے شی۔ او په ټولو
اقوالو سره داکنایه ده دَ ډیر لږ څیز نه۔

فائده ۱ :۔ صاحب اللباب وئیلی دی چه دَکم مقدار دَپاره
عرب څلور الفاظ استعمالوی اول لفظ دَ فتیل دویم نقیر
(دَکجورے دَ هډوکی په شا طرف کښ وړوکے غوټ نے
ډوله ځائے) دریم لفظ قطمیر (هغه نرے پوستکے چه دَ
کجورے دَ هډوکی چاپیره وی) دا دریواړه الفاظ په قرآن
کریم کښ ذکر دی او څلورم لفظ دَ ثفروق دے (هغه څیز
چه دَ کجورے په سر پورے وړوکے غوټے وی)۔

فائده ۲ :۔ لفظ فتیل په قرآن کریم کښ په دے آیت کښ
او په دے سورت (وَلَا تُظْلَمُونَ فَتِيلًا ۷۷) کښ او سورة
اسراء (يَوْمَ نَدْعُو كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ فَمَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ
بِيَمِينِهِ فَأُولَٰئِكَ يَقْرَءُونَ كِتَابَهُمْ وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا ۷۱)
کښ ذکر دے۔ روستو دواړه آیاتونه په مقام دَ ثواب او بشارت
کښ دی نو معلومه شوه چه په دے آیت کښ هم توجیه دَ
بشارت راجح ده۔ او تار دَ هډوکی دَکجورے دَ دواړو (هډوکی
او کجورے) په مینځ کښ مضبوط ربط دے نو دا دَ بشارت سره
ښه مناسب دے۔ او نقیر لفظ په قرآن کریم کښ په دے
سورت (أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُونَ النَّاسَ
نَقِيرًا ۵۳) کښ دَ بخل په مثال کښ راغلے دی ځکه چه په
مال خرچ کولو کښ انسان دَ خپل مال نه دَ څه حصے کنستل
کوی نو هغے سره نقیر مناسب دے او دا رنګ په دے سورت
(وَمَن يَعْمَلْ مِنَ الصَّالِحَاتِ مِن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ وَهُوَ
مُؤْمِنٌ فَأُولَٰئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُونَ نَقِيرًا ۱۲۴)
کښ هم دَ جنتیانو په باره کښ ذکر دے نو اشاره ده چه په
جنت کښ دَ جنتیانو دَ نعمتونو نه هیڅ حصّه نه کنستلے کیږی۔
نو هغے سره هم نقیر مناسب دے او لفظ دَ قطمیر په سورة
فاطر (وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ مَا يَمْلِكُونَ مِن قِطْمِيرٍ ۱۳)

اُنْظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ

اوګورئ څنګه جوړوي دوي په الله تعالیٰ باندې

الْكَذِبَ ۖ وَكَفٰى بِهٖٓ اِثْمًا مُّبِيْنًا ﴿۵۰﴾

دروغ ، او بوره دی دا دروغ ګناه ښکاره .

ع ۸

کښې په نفی دَ ملك دَ معبود من دون الله کښې ذکر دے ـ یعنې لکه چه په قطمیر کښې دَ کجورے هډوکے انغختلے شوی دے نو دا رنګ دے مشرکانو خپل معبودان بتان او قبرونه وغیره په غلافونو کښې انغختلي دي لیکن هغه معبودان دَ دے غلافونو ملکیت او اختیار نه لري نو دا رنګ هیڅوک طاقت نه لري چه دغه پوستکے روغ او سالم دَ دغه هډوکی نه راجدا کړي او دغه طاقت دَ دوی دا معبودان هم نه لري نو دا اشاره ده یو تمثیل ته په باره دَ شرک فی التصرف کښې. (والله اعلم بحکم کتابه).

ف۵ ـ په دے آیت کښې دَ یهودیانو بل قباحت ذکر کوی یعنی هرکله چه دوی دَ خپل ځانونو تزکیه کوی نو دغه دعوی کښې دوی په الله تعالیٰ باندے دروغ جوړوی نو په دے آیت کښې دَ هغوی دَعوے دَ تزکیے تکذیب دے.

اُنْظُرْ كَيْفَ ، دا خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم او هر اهل دَ خطاب ته دَ پاره دَ تعجب ورکولو دَ دوی دَ دروغو نه.

يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ، مخکښې معنیٰ دَ افتراء ذکر شوی ده یعنې دوی چه په تزکیه کښې وائی چه مونږ دَ الله ځامن او محبوب یو نو دا دروغ دي ځکه چه دَ حقیقت نه خلاف دی او الله تعالیٰ ته نسبت کول هم افتراء ده نو دا په اصل کښې دوه ګناهونه دي. الْكَذِبَ ، جاحظ وئیلي دي چه کذب خبر ورکول دي په خلاف دَ حقیقت خوچه قائل عالم او پوهه وي په دے مخالفت باندے ـ لیکن په دے آیت کښې په جاحظ باندے رد دے ځکه چه یهودیانو په خپل علم کښې دَ ځان دَ پاره دا تزکیه حقه ګنړله نو معلومه شوه چه که قائل په دے مخالفت دَ حقیقت

باندے عالم وی او که نه وی خو هغے ته کذب وئیلے شی۔
وَكَفٰى بِهٖٓ اِثْمًا مُّبِيْنًا، بِهٖ، ضمیر کذب ته راجع دے یعنی دروغ
خوځان له هم گناه ده نو چه افتراء ورسره یوځائے کوی نو دا
دَ گناه دَ پاسه بله گناه ده۔ یا ضمیر په افتراء ته راجع دے۔
اِثْمًا مُّبِيْنًا، کذب او افتراء په بل چا باندے دَ ټولو عقل
والو په نیز یاندے ډیر بد کار دے۔
۵۱:۔ په دے آیت کښ دَ هغوی بل قسم قبائح ذکر کوی۔
اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ، دا هغه
خلق دی چه په آیت ۴۴ کښ ذکر شویدی یا دَ هغوی نه
علاوه نور کسان دی۔ مفسرینو لیکلی دی چه دَ مدینے دَ اهل
کتابو نه څه کسان مکے مکرمے ته راغلل نو دَ مکے دَ مشرکانو سره
ئے معاهده اوکړه په مخالفت کولو دَ نبی صلی الله علیه وسلم
باندے۔ بیا مشرکان مکه دَ هغه اهل کتابو نه تپوس اوکړو
چه مونږ دَ حاجیانو دَ پاره اوبه حلالوو او په هغوی باندے
یئ څښکوو او دَ بیت الله تعمیر کوو او طوافونه کوو او دَ خپلو

مشرانو په دین باندے یو او محمد صلی اللہ علیه وسلم دَ مشرانو دین پریښودلے دے او موږ سره ئے خپلولی پریکړیده او دَ زوړ دین نه جدا شویدے او نوے دین ئے راوړیدے نو په موږ دواړو کښ کوم یو په صحیح هدایت باندے دے نو دغه کتابیانو فتوی (حکم) ورکړه چه تاسو پوره هدایت والا یئ۔ او بل روایت کښ دی چه دَ مشرکانو بتانو ته ئے سجده هم اوکړه نو دا آیت دَ دے په باره کښ نازل شویدے۔

يُؤْمِنُوْنَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوْتِ، اهل لغت وئیلی دی چه جبت په اصل کښ جبس وو توسین ئے په تا بدل کړیدے او جبس هم رذیل او بے خیره خیز ته وئیلے شی۔ او دَ طَاغُوْتِ، لغوی معنی په سوره بقره کښ تیره شویده او دَ دے په مصداقاتو کښ ډیر اقوال دی۔

عـ۱ :- دَ عکرمه قول دا دے چه دا دَ مشرکان مکه دوه بتان وو۔

عـ۲ :- ابن عباس رضی اللہ عنهما قول دے چه حی بن اخطب او طاغوت کعب بن اشرف وو او دا دواړه دَ یهودیانو غټ ملایان وو۔

عـ۳ :- دَ مجاهد او شعبی قول دا دے چه جبت ساحر او منترکے او طاغوت شیطان دے۔

عـ۴ :- دَ عمر رضی اللہ عنه قول دا دے چه جبت ساحر دے او طاغوت شیطان دے۔

عـ۵ :- دَ سعید بن جبیر قول دے چه جبت ساحر دے او طاغوت کاهن دے۔ (او دَ دے په عکس باندے هم قول شته)۔

عـ۶ :- او دَ قتاده قول دے چه جبت شیطان او طاغوت کاهن دے۔

عـ۷ :- امام مالک رحمه اللہ قول دے چه جبت بتان دی او طاغوت هر معبود من دون اللہ دے او دا قول قرطبی غوره کړے دے۔

عـ۸ :- دَ آلوسی یو قول دا دے چه جبت بتان دی او طاغوت

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ ۖ
دغه کسان دي چه لعنت کړيدے پدوي باندے الله تعالیٰ
وَمَن يَلْعَنِ اللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُ
او هغه څوک چه لعنت اوکړي الله تعالیٰ په هغه نو چرے اوبه نه مومے هغه له
نَصِيرًا ﴿٥٢﴾
مددګار -

دَ هغے منجوران دي چه دَ هغوی نه په دے خلقو تعبير کوو په دروغو سره دَ دے دَپاره چه خلق ګمراه کړي-
ع۹ :- قرطبي او ابوحيان وئيلي دي چه په حديث دَ ابوداؤد کښ راغلي دي چه طرق، طيره او عيافت جبت دے - طرق شړل دَ مارغانو سره فال معلومول او عيافت دَ خط په ذريعه غيب معلومول دي يعني څوک چه دَ علم غيب دعوے کوي نو هغه جبت دي-
ع۱۰ بعضے مفسرينو وئيلي دي چه جبت بتان دي او طاغوت شيطانان دي چه کله به ئے دَ بتانو نه دَ دوي سره خبرے کولے نو دوي به خيال کووچه دے فلاني بُت مونږ سره خبرے اوکړے - په دے ټولو اقوالو کښ يو بل ته نزديکت دے چه دوي (جبت او طاغوت) باندے عقيده ساتل او سجدے ورته کول دا ټول شرک او کفر دے نو دا ښکاره دليل دے چه يهوديانو دغه وخت دَ اميانو مشرکانو پښان شرک کولو-
وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ هَٰؤُلَاءِ أَهْدَىٰ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا سَبِيلًا،
لِلَّذِينَ، کښ "لام" دَ خطاب دَپاره نه دے بلکه دپته "لام" تبليغ وئيلے شي يا په معنیٰ دَ فی شانهم دے - هٰؤُلَاءِ ، اشاره ده مشرکان مکه ته أَهْدَىٰ، کښ معنیٰ دَ غوره والي نه ده مراد ځکه چه دوي دَ مؤمنانو دَپاره هيڅ قسم هدايت نه مني-او دا قول دَ دوي په ديرحسد او عناد باندے بنا دے-
ع۵۲:- دا تخويف دے او نتيجه ده دَ دغه قبيح صفتونو ځکه

أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا

آیا شته دوی لره برخه دَ بادشاهۍ نه نو دغه وخت (که وی دَ دوی برخه)

لَا يُؤْتُونَ النَّاسَ نَقِيرًا ﴿٥٣﴾

ورکوي به نکړي خلقوته په قدر دَ داغ دَ هډوکي دَ کجورې۔

چه اولئك په دغه صفتونو باندې دلالت کوي او په دوی باندې عام لعنت په سوره احزاب ۷۱ کښې ذکر دے۔

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ وَمَن يَلْعَنِ اللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُ نَصِيرًا، په دے جمله کښې ډیر تاکیدات دی من دَ عموم دَپاره دے او کلمه دَ لَنْ، تَجِدَ و نَصِيرًا نکره ذکر کول دا ټول تاکیدات دی او په دیکښې اشاره ده چه دوی مشرکان مکه لره په دغه قول سره رضا کوي لیکن هغوی دَ دوی سره هیڅ امداد نشی کولے۔

۵۳:۔ په دیکښې بل قبیح صفت ذکر کوي۔ بَلْ، دیته بل منقطعه وائي په دے کښې انتقال دے دَ یو کلام نه بل کلام ته او استفهام انکاری دے۔ دا دَ عامو نحویانو قول دے او ابن قتیبه وئیلی دی چه ام پخپله دَ ابتداء دَ استفهام دَپاره راځي۔ او په دے جمله کښې رد دے په قول دَ یهودیانو باندے چه دوی به خپلو مقتدیانو ته تسلی ورکوله چه نیزدے ده چه بادشاهي به زمونږ لاس ته راشي، نو مراد دَ ملك نه دنیوی بادشاهي ده۔ یا دوی به دعوی کوله چه دَ الله تعالیٰ دَ خزانو اختیارات مونږ له راکړے شویدی لکه په سوره اسراء ۱۰۰ کښې دی یا دَ ملك نه مراد نبوت دے۔ نو معلومه شوه چه دَ دوی دَپاره هیڅ قسم ملك نشته۔

أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُونَ النَّاسَ نَقِيرًا، په دیکښې دَ دوی دَ بخل صفت ذکر دے او النَّاسَ نه مراد عام خلق دی یا ترینه مراد صحابه کرام او تابعداران دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دی۔ او س هم هغه خلق

چه دَ يهوديت په طريقه باندے چليږي په هغوي کښ دا صفت دَ بخل شته دے۔

فائده :- صاحب اللباب وئيلي دي چه الله تعالىٰ دَ دوي بخل دَ دوي دَ ملك دَ حصول نه مانع گرځولے دے نو دا دليل دے چه بخل او ملك دواړه نه جمع کيږي ځکه چه انقياد دَ بل شخص په سبب دَ احسان دَ هغه سره حاصليږي لکه چه وئيلے شوے دے بِالْبِرِّ يُسْتَعْبَدُ الْحُرُّ ( په احسان سره آزاد سړے مريئے گرځي ) نو هر کله چه دَچا سره مالي احسان نه کيږي نو هغه انقياد نه کوي - بيا ملك درے قسمه دے يو ملك ظاهري دا دَ بادشاهانو دَپاره دے بل ملك باطني دا دَ علماؤ دَپاره دے او بل ملك ظاهري او باطني دواړه دا دَ انبياء عليهم السلام دَپاره دے دَ دے وجے نه په انبياء عليهم السلام کښ صفات دَ سخاوت او شفقت په طريقه دَ کمال سره موجود وو او په خاتم النبيين صلى الله عليه وسلم کښ خو دا صفات اکمله طريقے سره موجود وو۔

سے۵۴ : - پہ یکبس بل صفت قبیحہ ذکر کوی - ام لفظ سرہ انتقال دے دَ یو صفت قبیحہ نہ چہ بخل دے بل دیر قبیح صفت تہ چہ حسد دے - ھغہ بخکہ دیر بد دے چہ پہ ھغے کبس تمنا دَ زوال دَ نعمت دَ اللہ تعالیٰ دہ دَ بل چا نہ او دَ دے تفصیل پہ سورہ بقرہ کبس تیر شویدے او پہ سورہ فلق کبس ھم ان شاء اللہ ذکر کیبدی -

آمۡ یَحۡسُدُوۡنَ النَّاسَ عَلٰی مَاۤ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنۡ فَضۡلِهٖ ، دلتہ قرطبی دَ حسد بعضے قباحات ذکر کریدی دَ ھغے نہ بعضے دا دی چہ حسد مذموم دے او صاحب ئے مغموم دے - حسد نیک اعمال داسے خوری لکہ چہ اور وچ خاشاک خوری (الحدیث) -

حسن بصری وئیلی دی چہ ما نہ دے لیدلے ظالم چہ زیات مشابہ دے دَ مظلوم سرہ پہ نسبت دَ حاسد - ھمیشہ اسویلی کول دَ حاسد کار دے - غم لازمیدل ، ھمیشہ او بنکے بہیدل دَ حسد نتیجہ دہ - بیائے وئیلی دی چہ حسد اول گناہ دے چہ پہ آسمان کبس شویدے یعنی ابلیس دَ آدم علیہ السلام سرہ او اول گناہ دہ چہ پہ زمکہ کبس شویدہ یعنی قابیل دَ ھابیل سرہ حسد کرے وو - النَّاسَ نہ مراد نبی صلی اللہ علیہ وسلم دے او دَ فضل نہ مراد ختم نبوت دے دَ ھغہ او دیر کمالات او فضائل بشریہ چہ ھغہ پہ قرآن او سنت کبس ذکر دی او پہ ھغے کبس تحلیل دَ دیرو بیبیا نو ھم داخل دے - یا دَ الناس نہ مراد دَ نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم سرہ صحابہ کرام او بیا دَ ھغہ تابعداران دی چہ ھغوی لہ اللہ تعالیٰ دیر فضیلتونہ او خطاب ورکریدے پہ اُمةً وسطًا او خیر امةٍ سرہ - یا دَ الناس نہ مراد عرب دی چہ اللہ تعالیٰ پہ ھغوی کبس آخری نبی صلی اللہ علیہ وسلم را اولیبلو او نبوت ئے دَ بنی اسرائیلو نہ بنی اسماعیلو تہ نقل کرو -

فَقَدۡ اٰتَیۡنَاۤ اٰلَ اِبۡرٰهِیۡمَ الۡكِتٰبَ وَالۡحِكۡمَةَ ، فاء ، فصیحہ تعلیلہ دہ پہ شرط پټ باندے دلالت کوی یعنی کہ چرے

فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ بِهٖ وَمِنْهُمْ

نو بعضې د دوینه هغه څوک دي چه ایمان ئې راوړے دے او بعضې

مَّنْ صَدَّ عَنْهُ ؕ وَكَفٰى بِجَهَنَّمَ

هغه دي چه مخ ئې گرځولے دے د دے نه ، او بوره دے جهنم

سَعِيْرًا ﴿۵۵﴾

اور بل کړے شوے۔

دوی حسد کوی تو ډیر په خطائی کښ دی۔ آل ابراهیم کښ موسیٰ، داؤد، عیسیٰ او نور انبیاء علیهم السلام د بنی اسرائیلو ټول داخل دی چه هغوی له الله تعالیٰ تورات، زبور او انجیل کتابونه او نورے صحیفے ورکړیدی۔ او حکمه نه مراد نبوت دے یا علم دے د اسرارو د کتاب د الله تعالیٰ چه هغې ته احادیث وئیلے شی۔

وَاٰتَيْنٰهُمْ مُّلْكًا عَظِيْمًا ، اشاره ده ملك د یوسف علیه السلام او د داؤد او سلیمان علیهما السلام ته او دا رنگ الله تعالیٰ دوی لره ډیرے بیبیانے هم حلالے کړے وے۔ حاصل دا دے چه تاسو د آخری نبی او د هغه د صحابه کرامو سره ولے حسد کوئ د دے قسم فضیلتونه خو ستاسو مشرانو ته هم ورکړے شویدی۔ یا دا چه دا نعمتونه ستاسو په نیز د حسد کولو اسباب دی نو بیا خو د خپلو مشرانو (پیغمبرانو) سره هم حسد اوکړئ۔

۵۵ :- په دیکښ د دوی د مشرانو د احوالو ذکر دے په طریقه د الزام سره په کشرانو باندے یعنی که په دغه نعمتونو باندے حسد کول ښه کار وے نو ستاسو بعضے مشرانو په هغه مخکنو انبیاؤ باندے ولے ایمان راوړید ے۔

فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ بِهٖ ، بِهٖ ، ضمیر هغې ته راجع دے چه ورکړے شو آل ابراهیم ته دارنگ په دے آیت کښ آخری نبی صلی الله

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا

يقيناً هغه کسان چه کفر ئې کړيدے په آياتونو زمونږ

سَوْفَ نُصْلِيهِمْ نَارًا ط كُلَّمَا

زر دے چه داخل به کړو هغوی اور ته، هر وخت

عليه وسلّم ته تسلی ورکول مقصد دے چه دَ آل ابراهيم دَ نعمتونو په باره کښې خلق دوه ډلے شويدی ليکن دَ هغوی (آل ابراهيم) شان ته نقصان نه دے رسيدلے نو دا رنګ اے نبی صلی الله عليه وسلم ستا په باره کښې دا خلق دوه ډلے شويدی خو تا ته هيڅ نقصان نشی درکولے بلکه څوک چه مخالفت کوی نو دَ هغوی دَ پاره په جهنم سره تخويف ذکر کوی۔

وَمِنْهُمْ مَّنْ صَدَّ عَنْهُ، صَدَّ لازمی راځی يعنی مخ ګرځول او متعدی هم راځی لکه منع کول نورو خلقو لره دَ ايمان نه۔ دلته دَ مخکښې اٰمن په مقابله کښې اوله معنٰی غوره ده۔

وَكَفٰى بِجَهَنَّمَ سَعِيْرًا، سَعِيْر، په اصل کښې لمبے کولو، سوځولو او اور بلولو ته وئيلے شی۔ دلته په معنٰی دَ مفعول سره دے يعنی جهنم مسعر يا په معنٰی مصدری سره دے په حذف دَ مضاف سره يعنی كفٰى بسعير جهنم۔ او سعير تميز دے او لفظ دَ كفٰى کښې اشاره ده که چرے دَ دے خلقو ته دَ دنيا بعضے عذاب وانړولے شی نو اور دَ جهنم ورله کافی عذاب دے۔

فائده :- ماده دَ سعر (س، ع، ر) په قرآن کريم کښې تورلس کرته په دريے طريقو سره ذکر دے اول طريقه فعل سعرت (تكوير ۱۲)۔ دويمه طريقه لفظ السعير معرفه او سعير نكره او په ديکښې دا نوم دَ جهنم او صفت دَ اور ذکر دے۔ دريمه طريقه لفظ سُعُرٍ چه جمع ده يا مصدر دے (قمر ۲۴، ۴۷)۔

حَكِيْمًا ﴿۵۶﴾

حکمتونو والا دے۔

۵۶ :- دا تخویف اخروی دے روستو دَ زجر او دَ قبائحو ذکر کولو دَ یهودیانو نه۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا ، صاحب اللباب وئیلی دی چه لفظ ایات کښ هر هغه څیز داخل دے چه هغه دلالت کوی په ذات ، صفاتو ، افعالو او اسماؤ دَ الله تعالىٰ او ملائک او کتابونه نازل کړے شوی او رسولان۔ او کفر عام دے که په طریقه دَ انکار سره وی یا په نظر او فکر نه کولو سره وی یا په شکونو او شبهاتو اچولو سره وی او انکار که په طریقه دَ حسد او عناد سره وی۔

سَوْفَ ، سیبویه وئیلی دی چه سَوْفَ دَ تهدید او تخویف دَ پاره ذکر کیږی او حرف سین کله کله دَ هغے نه نائب وی لکه ساصلیه سقر۔ یعنی په دیکښ دَ تیز دیوالی او لرے والی فرق ملحوظ نه وی۔ او دا رنګ دا دواړه کلمات په وعده او ثواب کښ هم استعمالیږی لکه (وَلَسَوْفَ يُعْطِيْكَ رَبُّكَ فَتَرْضٰى ۵) ، (سَاَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّيْ اِنَّهٗ كَانَ بِيْ حَفِيًّا سوره مریم ۴۷) ، (قَالَ سَوْفَ اَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّيْ اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ یوسف ۹۸) هلته په دیکښ معنیٰ دَ تیز دیوالی او لرے والی اراده کیدیشی

په هر ځائے کښې په مناسب وجے سره (نُصْلِیْهِمْ)، صلی او اصلا کښې د دخول سره سره معنیٰ د سوځولو او وریتولو هم ماخوذ وی۔
نَارًا كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُوْدُهُمْ بَدَّلْنٰهُمْ جُلُوْدًا غَيْرَهَا، آلوسی وئیلی دی چه معنیٰ دا ده چه د هرے سوځیدلے څرمنے په ځائے به بله څرمن ورکړو لیکن دا به په صورت کښې د هغے نه بدله وی خو اصل ماده به ئے یوه وی ځکه چه لفظ د تبدیل او تغیر یو ځیز کښې ذکر شی نو په هغے کښې دلالت وی په تبدیل صفتی باندے او ماده من وجه باقی پاتے وی۔ او دا تحقیق په تفسیر د (فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ قَوْلًا) آه اعراف ۱۶۲، کښې ذکر شوید ے۔
سوال:۔ الله تعالیٰ خو قادر دے په همیشه عذاب ورکولو باندے بغیر د بدلولو د څرمنو نه نو په دیکښې څه حکمت دے؟
جواب ۱:۔ په دیکښې اشاره ده یو قسم د قدرت د الله تعالیٰ ته۔
جواب ۲:۔ څرمن چه اوسوځی او بله د هغے په ځائے راښکاره شی نو هغه تره او تنکئ وی د هغے سوزش ډیر او ډیر محسوسیږی۔
سوال:۔ دغه نوے څرمن خو ګناه نه دے کړے نو دا ولے سوځی؟
جواب ۱:۔ مخکښې ذکر شوه چه اصل څرمن خو باقی پاتے ده لیکن صرف صفت او صورت ئے بدل شوید ے۔
جواب ۲:۔ مستحق د عذاب هغه بدن د انسان دے چه په څرمن کښې دننه پروت دے او څرمن صرف د عذاب د رسیدلو سبب دے د دے وجے نه ئے لِيَذُوْقُوا الْعَذَابَ جمله وئیلے ده او مراد تری نه اهل د جلود دی که جلود مراد وی نو لتذوق وئیل پکار وو۔ او دا قول فراء بغوی او امام رازی او نورو مفسرینو هم ذکر کړے دے۔
لِيَذُوْقُوا الْعَذَابَ، او د ذوق نه مراد صرف څکل په اول ځل نه دی بلکه دوام د ذوق مراد دے او په لفظ ذوق کښې اشاره ده چه په دے عذاب کښې سره د سختوالی نه تریخوالے هم شته او هغه د مذوقاتو نه دے۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

اوهغه کسان چه ایمان ئې راوړے او عمل ئې کړے په طریقه دَنبی صلی الله علیه وسلم

سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ

زر دے داخل به کړو مونږ جنتونو ته چه بهیږی به

مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِیْنَ

لاندے دَ هغې نه ولے همیشه به وی

فِیْهَآ اَبَدًا ؕ لَهُمْ فِیْهَآ اَزْوَاجٌ

په هغې کښ همیشه ، دوی دَپاره به هغې کښ بیبیانے وی

مُّطَهَّرَةٌ ز وَّنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا

پاکے او داخل به کړو دوی سوری

ظَلِیْلًا ﴿۵۷﴾

همیشه ته -

اِنَّ اللّٰهَ کَانَ عَزِیْزًا حَکِیْمًا ، دا دَ ماقبل دَپاره علت دے یعنی په داسے طریقے سره په عذاب ورکولو باندے قادر او غالب دے - او لفظ دَ حَکِیْمًا دَ دفعے دَ یو تعجب دَپاره دے یعنی که څوک دَ الله تعالیٰ دَ صفت کریم او رحیم نه تعجب اوکړی چه کمزوری بنده لره ولے داسے عذاب ورکوی نو جواب اوشو چه سره دَ رحم او کرم نه حکیم هم دے نو هغه کار کوی چه په هغې کښ حکمت وی او اعتراض وریاندے نشی کیدے -

۵۷:- په دیکښ ایمان والو ته بشارت اخرویه دے او هر کله چه مقصود بشارت کامله دے نو دَ هغې دَپاره دَ ایمان سره دَ عمل صالح ذکر کړے شوید ے - ( دَ دے نوره تشریح په سوره بقره کښ تیره شویده )-

سَنُدۡخِلُهُمۡ، حرف سین یې دَ تاکید دَ نزدیکت دَ جنت دَپاره ذکر کړے دے۔
خٰلِدِیۡنَ فِیۡهَآ اَبَدًا، لفظ دَ تابید ابدًا یې دَ تاکید دَ خلود دَپاره دَ دے وجې نه ذکر کړیدلے چه څوک دَ خلود نه مکث طویل (ډیره زمانه) مراد نه کړی او صاحب اللباب وئیلی دی چه دا رد دے په جهمیه باندے چه هغوی وائی چه جنت او دَ هغې نعمتونه همیشه نه دی۔
وَنُدۡخِلُهُمۡ ظِلًّا ظَلِیۡلًا، دا تاکید دے په ذکر دَ همیشه آرام او سکون سره په جنت کښې۔ ظَلِیۡلًا په تاکید دَ ظل کښې مبالغه ده په صفت کښې یې په معنیٰ دَ فاعل یا مفعول سره نه دے۔ مفسرینو وئیلی دی چه ظلیل هغه سوری ته وئیلے شی چه دَ نمر رنړا هغې لره نشی ختمولے او په هغې کښې یخنی او ګرمی څه تکلیف نه ورکوی او دا سے سورے دَ جنت دَ خصوصیاتو نه دے۔ دا رنګ ظلیل دلالت کوی په دوام دَ سوری باندے لکه چه په سوره رعد ۳۵ کښې دی۔
سوال:۔ په دنیا کښې چه کوم ځاے دا سې سورے وی نو دَ هغې ځاے هوا فاسده وی۔ دا رنګ چه په جنت کښې نمر نشته نو سورے هم نشته نو دَ سوری څه فائده ده؟
جواب ۱:۔ امام رازی وئیلی دی چه هر کله اکثر بلاد دَ حجاز عرب ګرم دی او سورے دَ هغوی په نیز لوے سبب دَ راحت دے دَ دے وجې نه سورے کنایه ده دَ همیش راحت نه۔
جواب ۲:۔ دَ جنت نعمتونه په دنیا باندے نشی قیاس کیدلے نو الله تعالیٰ قادر دے چه په جنت کښې بغیر دَ نمر نه سورے پیدا کړی او په هغې کښې نا اشنا نعمتونه او راحتونه کیږدی۔ (الله تعالیٰ دِ مونږ دَ دے بشارت اهل او ګرځوی اللهم آمین)

إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا

یقینًا الله تعالیٰ حکم کوی تاسو ته چه ادا کوئ

الْأَمٰنٰتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا ۙ وَإِذَا حَكَمْتُمْ

حقونه حقدارو دَ هغے ته او کله چه فیصله کوئ

بَيْنَ النَّاسِ أَنْ تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ ۚ

په مینځ دَ خلقو کښ نو فیصله کوئ په انصاف سره،

إِنَّ اللّٰهَ نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهٖ ۗ

یقینًا الله تعالیٰ ډیر ښه وعظ درکوی تاسو ته دَ دے،

إِنَّ اللّٰهَ كَانَ سَمِيعًا بَصِيرًا ﴿٥٨﴾

یقینًا الله تعالیٰ اوریدونکے لیدونکے دے۔

س۵۸: خلاصه :- دَ دے آیت نه دَ سورت دویمه حصه شروع کیږی چه هغه تر آیت س۱۳۵ پورے ده - په دے حصه کښ هغه امور سیاسیه ذکر کوی چه هغه دَ تحکیم دَ عدل او دَ نظام دَ فوج سره تعلق لری او دغه امور نهه دی - په دے حصه کښ درے بابونه دی اول باب تر س۸۶ پورے دے - او په دے باب کښ اول امر سیاسی ذکر کوی چه هغه امانتونه او ذمه داری سپارل دی هغے کسانو ته چه دَ هغے اهل وی او حکم کول دی په عدل باندے یعنی کتاب الله او سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم - دا په س۵۸ کښ او ورپسے واجب کول دَ اطاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم او دَ امراؤ دی په س۵۹ کښ - بیا زجرونه دی منافقانو ته په ذکر دَ پنځه قباحتونو دَ هغوی سره او دغه قباحات دَ مخکښ سره متعلق دی - بیا ترغیبات دی اتباع دَ رسول صلی الله علیه وسلم ته په مختلفو وجوهو سره۔ اوله وجه دا چه مقصد دَ رسالت اطاعت دَ هغه دے چه هغه سبب دَ مغفرت دَ ے په س۶۴ کښ - دویمه وجه، ایمان نه

حاصلیږی بغیر دَ تحکیم دَ رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم نه او رضا کیدل په فیصلو دَ هغه پاندے په ۶۵ کښ. دریمه وجه، اطاعت دَ رسول اکرم صلی اللّٰه علیه وسلم سبب دے دَ پاره دَ حصول دَ پنځه فضائلو. خیریت او مضبوطوالے په ایمان پاندے په ۶۶ کښ، اجرعظیم په ۶۷ کښ، هدایت دَ صراط مستقیم په ۶۸ کښ او ملګرتیا په جنت کښ دَ منعم علیهم سره چه هغوی څلور صفتونو والا دی. دَ دینه روستو دویم امر سیاسی (نظام عسکری) ذکر کوی چه هغه دَ قتال آلات تیارول دی او قصد کول دَ قتال فی سبیل اللّٰه دَ پاره په ۷۱ کښ. بیا زجر دے منافقانو ته چه هغوی مډ اهنت کوی په دغه حکم کښ په ۷۲ ۷۳ کښ. بیا دریم امر سیاسی (نظام عسکری) ذکر کوی چه هغه دَ قتال فی سبیل اللّٰه دَ پاره دَ مخلصانو زاهدانو اشخاصو تیارول دی په ۷۴ کښ. بیا دَ قتال اسباب ذکر کوی په ۷۵ ۷۶ کښ.

ربط ۱ :- هر کله چه دَ اهل کتابو قباحت ذکر شو چه هغوی حق پټ کړے وو په دے خبره کښ چه هٰٓؤُلَاۤءِ اَهۡدٰی مِنَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا سَبِیۡلًا - او حسد ئے کوو دَ نبی صلی اللّٰه علیه وسلم او مؤمنانو سره - او دا ټول دَ خیانت انواع دی. نو اوس دلته دَ عاموامانتونو په باره کښ حکم کوی دَ هغے دَ ادا کولو دَ خیانت نه دَ بچکیدلو (قرطبی، صاحب اللباب).

ربط ۲ :- دا رنګ هر کله چه اللّٰه تعالیٰ دَ ایمان سره اعمال صالحه ذکر کړل دَ پاره دَ حصول دَ بشارت تامه. نو اوس تقسیم کوی دَ اعمال صالحه دوه قسمونو ته - اول هغه چه دَ یو انسان او دَ یل چا په مینځ کښ وی او هغے ته امانات ویلے شی. دویم قسم هغه یو انسان چه دَ نورو دوو انسانانو په مینځ کښ کوی چه هغے ته فیصله په عدل سره ویلے شی - او دا دواړه قسمونه په دے آیت کښ په ترغیب سره موجود دی (ابوحیان).

ربط ۳ :- مهائمی ویلی دی چه هر کله دَ دخول دَ جنت نه

بعضے اسباب ادا دَ اماناتو نو او اقامت دَ عدل دے نو اوس دهغے ذکر کوی۔

اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمٰنٰتِ اِلٰٓى اَهْلِهَا وَاِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ اَنْ تَحْكُمُوْا بِالْعَدْلِ اِنَّ اللّٰهَ نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهٖ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ سَمِيْعًا بَصِيْرًا (۵۸) يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاُولِى الْاَمْرِ مِنْكُمْ فَاِنْ تَنَازَعْتُمْ فِيْ شَيْءٍ فَرُدُّوْهُ اِلَى اللّٰهِ وَالرَّسُوْلِ اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّاَحْسَنُ تَاْوِيْلًا (۵۹)

اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ، په دے جمله کښں ډیر تاکیدات دی۔ اول کلمه دَ اِنَّ، دویم تصریح په نوم دَ الله تعالیٰ سره، دریم لفظ دَ امر ذکر کول۔ دَ دے خطاب دَپاره اګر چه مفسرینو خاص سبب ذکر کړیدے چه دا دَ عثمان بن طلحه بن ابی طلحه په باره کښں نازل شویدے چه دَ فتح مکه په موقعه باندے نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ هغه نه دَ کعبے شریفے چابی طلب کړه او دروازه دَ کعبے ئے پرانستله بیا نبی صلی الله علیه وسلم هغه ته واپس ورکړه او تراوسه پورے چابیانے دَ کعبے شریفے دَ هغه په اولاد کښں دی۔ بعضے روایاتو کښں ذکر وو چه هغه دغه وخت کښں کافر وو نو علی رضی الله عنه ترینه چابی په زور سره واخستله بیا دا آیت نازل شو نو هغه ته ئے هغه چابی واپس کړه نو هغه ایمان راوړو۔ لیکن ابن کثیر ذکر کړیدی چه دغه عثمان بن طلحه حدیبیه په وخت کښں ایمان راوړے وو او دا رنګ آلوسی په دغه روایت باندے په درے طریقو سره رد کړیدے اګرچه دا سبب دَ نزول خاص دے لیکن حکم ئے په اتفاق دَ مفسرینو سره عام دے۔ اوبل قول دا دے چه دا خطاب عام دے په اعتبار دَ نزول سره او دریم قول دا دے چه دا خاص دے امراؤ دَ مؤمنانو ته لیکن اول قول اصح دے۔

اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمٰنٰتِ اِلٰٓى اَهْلِهَا ، آلوسی وئیلی دی چه امٰنٰت جمع
دَ امانت ده مصدر مبنی للمفعول دے - عام دے ټولو هغه
حقوقو ته چه متعلق دی په ذمه دَ انسانانو بانديکه حقوق
الله وی اوکه حقوق العباد وی فعلی وی اوکه قولی وی
یا اعتقادی وی - او ابن کثیر وئیلی دی چه دا شامل دے
هغه ټولو امانتو ته چه واجب دی په انسان باندےکه هغه
حقوق الله وی لکه مونځ ، زکوٰة ، روژه ، کفالت اونذرونه
وغیره یا حقوق العباد وی په یو بل باندے لکه امانتونه وغیره.
او صاحب اللباب په تعمیم دَ امانانو کښ ذکر کړیدے چه
امانت دَ ژبے دا دے چه دَ دروغو ، غیبت ، کنځلو ، چغل
خورئ او دَ کفر و بدعت او فحش کلامُ نه ځان اوساتی -
او دَ سترګو امانت دا دے چه حرامو ته په نظر نه کوی اودَ
غوږونو امانت دا دے چه ملاهی او مناهی او فحش خبرے
ګانے بجانے وغیره او دروغو ته به غوږ نه ږدی - دغه شان
دَ ټولو اندامونو امانتونه دی - او په تول او پیمانه کښ نقصان
نه کول - او عدل دَ امراؤ په خپل رعیت کښ او عدل دَ علماؤ
په عوامو کښ چه هغوی ته په هدایت کوی دَ صحیح اعتقاداتو
او اعمالو دَ خیر او دَ تعصباتو باطلو نه به ئے بچ ساتی - او دَ
ښځے امانت دا دے چه حفاظت به کوی دَ خپل فرْج او دَ مال
دَ خاوند او عدت تیریدلو کښ په رښتیا وائی - او آلوسی
وئیلی دی چه امانت په ذمه دَ امراؤ کښ دا دے چه دَ
رعیت حفاظت به کوی او دین او شریعت به ورته ښائی او دا
رنګ عهدے به حقدارو دَ هغے ته ورکوی -
وَاِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ اَنْ تَحْكُمُوْا بِالْعَدْلِ ، واو ، دَ
عطف دَ پاره دے او اِذا ، صرف دَ ظرف دَ پاره دے متعلق
دے په روستو ان تحکموا پورے - او دَ ابوحیان په نیز دا
متعلق دے په پټ فعل پورے چه هغه هم ان تحکموا دے -
بِالْعَدْلِ ، عدل په لغت کښ برابروالی ته وئیلے شی لکه په

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ

| اے | ایمان | والو ! | حکم منئ | دَ الله تعالیٰ |
|---|---|---|---|---|

سورة انعام سره کښ - بیا په عرف کښ عدل مقابل دَ جور وظلم ته ویلے شي یعنې حق ورکول حقدار ته او مظلوم دَ ظلم نه خلاصول - او عدل وسط دے په مینځ دَ طرف دَ افراط کښ (دَ حق نه زیات ورکول) او په تفریط کښ (دَ حق کمول دَ خپل مقدار نه) او دے دواړو طرفونو (زیاتے کمے) ته جور ویلے شي - او تعین دَ دے عدل بغیر دَ قانون شرعي نه نشي معلومیدلے نو عدل عبارت دے دَ کتاب الله او سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم نه - او قرطبي وئیلي دي چه عالم او حاکم په دیکښ داخل دي چه هر کله فتوی کوي نو جدائي به کوي دَ حلال وحرام او فرض ومستحب او صحیح وفاسد دا قول امانت او عدل دے -

اِنَّ اللّٰهَ نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهٖ ، دا دَ ماقبل دَ پاره علت دے دَ تیزئ ورکولو دَ پاره په منلو دَ تیر شوي امر دَ الله تعالیٰ کښ - نِعِمَّا په اصل کښ نعم ما دے نو میم په میم کښ مدغم کړے شویدے او دا فعل په مدح پورے خاص دے - وعظ ، تذکیر دَ نصیحت دے سره دَ زجر وتخویف نه -

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ سَمِيْعًاۢ بَصِيْرًا ، دا صفات حقیقتًا دَ الله تعالیٰ دَ پاره ثابت دي بغیر دَ تمثیل او تشبیه نه دَ مخلوق سره او بغیر دَ تاویل او تحریف نه - قرطبي وئیلي دي که الله تعالیٰ نه دا صفات نفي شي نو دَ دے نقیضونه به ضرور الله تعالیٰ لره ثابت شي چه هغه ړوند والے او کوڼ والے دے او الله تعالیٰ خود دَ هر قسم نقائصو او عیبونو نه پاک دے -

(سبحان ربك رب العزت عما یصفون)

وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَ اُولِي الْاَمْرِ

او حکم منئ د رسول (صلی الله علیه وسلم) او حاکمانو

مِنْكُمْ ۚ فَاِنْ تَنَازَعْتُمْ فِيْ شَيْءٍ

ستاسو نه، نو که اختلاف اوکړو تاسو په یو څیز کښ

فَرُدُّوْهُ اِلَى اللّٰهِ وَالرَّسُوْلِ

نو ورګرځوئ (فیصله د هغې) الله او رسول د هغه ته

اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ

که تاسو ایمان لرئ په الله تعالیٰ

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ ذٰلِكَ خَيْرٌ

او په ورځ د قیامت دا کار غوره

وَّ اَحْسَنُ تَاْوِيْلًا ﴿۵۹﴾

او خائسته انجام والا دے۔

۵۹:- ربط:- هر کله چه الله تعالیٰ والیانو او امراؤ ته امر اوکړو په عدل کولو سره نو اوس رعیت ته حکم ورکوی چه د هغوی اطاعت کوئ۔
یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا، په دے نداء کښ تاکید دے چه راتلونکے حکم د ایمان تقاضا ده۔
اَطِیْعُوا اللّٰهَ وَاَطِیْعُوا الرَّسُوْلَ، اطاعت په نیز د اهل سنت بانددے موافقت د امر ته وئیلے شی او دا امر د ایجاب د پاره دے په دلیل د روستو جملے سره چه ان کنتم تؤمنون بالله آه۔
سوال:- اطاعت د رسول خو اطاعت د الله تعالیٰ دے په دلیل د ومن یطع الرسول فقد اطاع الله سره نو دا عطف ئے ولے کړے دے؟

جواب :- امام رازی وئیلی دی چه فائده په دیکښ بیان دَ دوه دلالتونو او دلیلونو دے یعنی کتاب الله دلالت کوی په امر دَ الله تعالیٰ بانَدے او امر دَ رسول ترینه لازمًا معلومیږی- او سنت دلالت کوی په امر دَ رسول بانَدے او امر دَ الله تعالیٰ ترینه التزامًا معلومیږی نو دا جمله صراحتًا دلالت کوی چه متابعت دَ کتاب الله او سنت دواړه واجب دے نو اطیعوا الله کښ مراد وحی جلی (متلو) ده او اطیعوا الرسول کښ مراد وحی خفی (غیر متلو) ده او دواړه په شریعت کښ مستقل دلیلونه دی او دَ دے وجے نه ئے اطیعوا مکرر ذکر کړیدے-
وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ، په دیکښ دَ صحابه او تابعینو نه دوه اقوال نقل دی- اول قول دَ ابن عباس او جابر رضی الله عنه او حسن بصری، ضحاک او مجاهد رحمهم الله دے چه دَ دینه مراد فقهاء او علماء دی چه هغوی خلقو ته دَ دین تعلیم ورکوی او امر نه مراد علم دَ دین دے یعنی کتاب او سنت سره دَ اطاعت دَ هغے نه. دویم قول دَ ابوهریره رضی الله عنه نه نقل دے چه دَ دینه مراد امراء او والیان دی او دَ امر نه مراد اختیار دَ حکومت دے- او دَ علی رضی الله عنه روایت دے چه حق دے په امام بانَدے چه حکم به کوی په ما انزل الله سره او امانت به ادا کوی- نو هر کله چه هغه داسے کار کوی نو په رعیت بانَدے حق دے چه هغوی به دَ هغه سمع او اطاعت کوی (امام رازی، اللباب) - زۀ وایم چه په دے دواړو اقوالو کښ تضاد نشته بلکه په زمانه دَ سلف صالحین کښ به امراء او والیان دِ دَ کتاب او سنت عالمان وی- او دَ مؤمنانو دَ امیر په اطاعت کښ ډیر احادیث وارد دی چه ابن کثیر، ابن جریر او صاحب اللباب هغه ذکر کړیدی-
سوال:- په دے کښ ئے اطیعوا ولے ذکر نه کړو؟
جواب:- هر کله چه دَ اولوالامر اطاعت مستقل او مطلق نه دے بلکه دَ هغه اطاعت مقید دے په دے شرط چه

دَ هغه قول او عمل په دَ اطاعت دَ الله او دَ رسول صلی الله علیه وسلم دَ لاندے وی په دلیل دَ حدیث دَ بخاری ومسلم سره چه په هغے کښ دی چه (مَا لَمْ يُؤْمَرْ بِمَعْصِيَةٍ فَإِذَا أُمِرَ بِمَعْصِيَةٍ فَلَا سَمْعَ وَلَا طَاعَةَ) (بخاری کتاب الاحکام مسلم کتاب الامارة)- او دا رنګ په دلیل دَ روستو جملے سره چه په وخت دَ تنازع کښ کتاب وسنت ته رجوع کول واجب دی- او دا رنګ لفظ منکم صریح دلیل دے چه اولی الامر به کامل مؤمن (مسلمان) وی- کافر شخص امیر نشی کیدے او فاسق چه واجب العزل دے- ابن حجر په شرح بخاری کښ وئیلی دی چه په تکرار دَ اطیعوا کښ نکته دا ده چه هغه څیز چه مونږ په هغے باندے مکلف یو قرآن او سنت دواړه دی نو معنیٰ دا ده چه اطاعت دَ الله تعالیٰ کوئ چه په قرآن کښ نازل کړے وی او اطاعت دَ رسول صلی الله علیه وسلم کوئ چه دَ قرآن بیان ئے په سنت سره کړیدے- طیبی وئیلی دی چه اطیعوا الرسول کښ اشاره ده چه رسول په اطاعت کښ مستقل دے او دَ اولی الامر سره ئے اطیعوا نه دے ذکر کړے نو اشاره ده چه اولی الامر کښ داسے هم کیدے شی چه اطاعت ئے واجب نه وی فان تنازعتم کښ هغے ته اشاره ده-

فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ، تَنَازُع دَ نزع نه اخستلے شویدے راښکل او راښیولو ته وئیلے شی بیا په عرف کښ دَ تنازع اطلاق په سخت اختلاف باندے کیږی ځکه چه دَ سخت اختلاف په وخت کښ هر یو جانب حق ځان طرف ته راکاږی- په دے خطاب کښ صحیح قول دا دے چه دا عام دے لکه چه ابن جریر وئیلی دی چه معنیٰ دا ده چه اے مؤمنانو ستاسو اختلاف راشی په کوم څیز کښ یا دَ اولوالامر (امیرانو یا علماؤ) سره- او ابن کثیر هم وئیلی دی چه دا امر دے دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه چه هر هغه څیز چه خلق په هغے کښ تنازع کوی که هغه دَ دین اصول دی

اوکه فروع وی نو کتاب الله وسنت رسول صلی الله علیه وسلم ته به رجوع کیدیشی - بیا ئے وئیلی دی چه ټول خصومات اوجهالات دَ الله تعالیٰ کتاب اوسنت رسول صلی الله علیه وسلم ته راوړئ - بیا ئے وئیلی دی چه دا آیت دلیل دے چه څوک په محل نزاع کښ کتاب اوسنت ته رجوع نه کوی نو هغه مؤمن بالله والیوم الاخر نه دے - اوآلوسی وئیلی دی چه خطاب په دیکښ عام دے ټولو مؤمنانو ته اوشئ خاص دے په امر دَ دین پورے اومعنیٰ دا ده چه ستاسو تنازعه راشی دَ اولوالامر سره په یو کار دَ دین کښ - اوابن عطیه په المحرر الوجیز کښ وئیلی دی چه معنیٰ دا ده چه ستاسو تنازعه راشی په کورنئ کښ یا دَ اولوالامر سره - ابن عاشور وئیلی دی چه دا خطاب عام دے ټولو مؤمنانو ته ماسیوا دَ رسول نه ځکه چه دَ رسول صلی الله علیه وسلم سره مؤمنان نزاع نشی کولے یعنی دَ مؤمنانو چه په کورنئ کښ تنازع وی یا دَ اولوالامر سره وی یا دَ اولوالامر په کورنئ کښ تنازع وی یا دَ رعیت دَ خپل امیر سره تنازعه وی یا دَ علماؤ په کورنئ کښ دَ دین په یو مسئله کښ تنازعه وی - دا رنګ لفظ دَ شئ عام دے ټولو اقسامو دَ تنازع ته شامل دے -

سوال :- بعضے مفسرینو یو قول ذکر کړیدے چه دا خطاب خاص دے په رعیت پورے چه امراؤ سره اختلاف راشی - او اختلاف دَ عوامو او دَ علماؤ ترمینځ ته نه دے شامل ځکه چه مقلد دَ مجتهد سره تنازع نشی کولے ؟

جواب :- الفاظ دَ آیت اواقوال دَ محققینو مفسرینو صریح دلالت کوی چه خطاب عام دے - او هرچه مقلد دے نو په هغه باندے الله تعالیٰ دَ مسئلے او دلیل تحقیق کول واجب کړیدی په دلیل دَ دے آیت سره چه (فَسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ) ، ځکه چه علم مسئله ده سره دَ دلیل شرعی نه - نو هرکله چه مقلد علم دَ دلیل حاصلوی نو دغه وخت کښ کله تنازعه دَ مجتهد سره پیدا کیږی -

سوال :- ابن کثیر دَ امام بخاری روایت ذکر کړیدے چه دا آیت په باره دَ واقعے دَ عبدالله بن حذافه رضی الله عنه کښې نازل شوید ے چه هغه غضب یا دَ مزاح دَ وجے نه خپل رعیت ته (چه سریه وه) امر اوکړو چه خشاک راجمع کړئ او په هغې سره اور بل کړئ نو هغوی داسے اوکړل بیا ئې اوئیل چه اوس اور ته ټوپ کړئ نو هغوی انکار اوکړو- نو په دے کښې خو تنازع دَ رعیت ده دَ خپل امیر سره ؟

جواب :- دا مشهور او صحیح قول دے چه دَ سبب نزول خصوص ته اعتبار نه دی بلکه عموم دَ الفاظو ته اعتبار وی او الفاظ دَ دے آیت عام دی-

فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ ، قرطبی وئیلی دی چه اوګرځوی دغه حکم کتاب الله یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په تپوس کولو سره په ژوند دَ هغه کښې او په نظر کولو سره په سنت دَ هغه کښې روستو دَ وفات دَ هغه نه - دا قول دَ مجاهد، اعمش او قتاده دے او دا صحیح دے - دلته بل قول دا دے چه داسے اووائی چه الله ورسوله اعلم لیکن دا قول صحیح نه دے - او دَ دے جملے نه چا دلیل نیولے دے دَ اثبات دَ قیاس او چا استدلال کړیدے دَ پاره دَ رد دَ قیاس- دویم قول غوره دے ځکه چه الله تعالیٰ ردوه الی الله والرسول وئیلی دی رَدُّ إِلَى الْمِثْلِ وَالنَّظِيْرِ ئې نه دے وئیلے-

إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ، دا دَ تاکید او تهدید او زورنے دَ پاره دے لکه چه سوره بقره ۲۲۸ ، ۲۳۲ کښې تیر شویدی-

ذَٰلِكَ خَيْرٌ ، ذَٰلِكَ اشاره ده ما قبل اطاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم ته او رد الی الله والرسول ته په وخت دَ تنازع دَ یو ځیز کښې - خیر، غوره دالی په اعتبار دَ منافعو د نیویو سره دے او خیر کښې معنیٰ تفصیلی نه ده

اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِيۡنَ يَزۡعُمُوۡنَ
آیا نه گورې هغه کسانو ته چه چه دعوی کوی
اَنَّهُمۡ اٰمَنُوۡا بِمَاۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ
چه دوی ایمان راوړیدے په هغه څه چه نازل کړے شوی دے تا ته

مراد ځکه چه په تنازع کښ هیڅ نفع نیشته۔
وَاَحۡسَنُ تَاۡوِيۡلًا، تاویل په معنیٰ دَعاقبت او مال دے لکه چه سدی وئیلی دی یا په معنیٰ دَ جزاء دے لکه مجاهد وئیلی دی۔ او زجاج وئیلی دی چه کتاب او سنت ته رجوع کول خائسته ده ستاسو دَ تاویلاتو نه۔ نودَتاویل مطلب بیان دَ مراد دَ لفظ دے لیکن چه ظاهر نه وی اګرچه حقیقت وی۔ دَ تاویل معانی په سورة آلعمران کښ ذکر شوی دی۔
**فائده:**۔ بعضے مقلدینو په دے آیت سره دلیل نیولے دے دَ تقلید دَ اثبات دَ پاره۔ وئیلی ئے دی چه په دے آیت کښ امر دے په اطاعت دَ اولی الامر او هغه علماء مجتهدین دی۔ لیکن دا استدلال ئے ډیر کمزورے دے دَ ډیرو وجو نه۔ اوله وجه دا چه اطاعت غیر دے دَ تقلید نه او په دے کښ ذکر دَ اطاعت دے۔ دویمه وجه مخکښ ذکر شول چه دَ اولوا الامر اطاعت ئے مستقل نه دے ذکر کړے بلکه دَ هغوی اطاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم دَ اطاعت دَ لاندے داخل دے یعنی چه اولی الامر په دلیل دَ قرآن وسنت سره قول او عمل کړے وے نو هله به دَ هغه اطاعت کیږی او دا خو تقلید نه دے، دریمه وجه اطاعت دَ اولوا الامر ئے مشروط کړیدے چه په وخت دَ تنازع کښ قرآن وسنت ته رجوع لازم ده او دا خلاف دے دَ معنیٰ دَ تقلید نه۔

وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيْدُوْنَ

او په هغه کتابونو چه نازل کړے شوی دی مخکښ ستا نه غواړی

اَنْ يَّتَحَاكَمُوْآ اِلَى الطَّاغُوْتِ

چه فیصلے یوسی طاغوت (غیر الله) ته

وَقَدْ اُمِرُوْآ اَنْ يَّكْفُرُوْا بِهٖ ؕ

او یقینًا حکم کړے شوید ے چه دوی د انکار کوی دَ فیصلے دَ هغه نه.

وَيُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّضِلَّهُمْ

او غواړی شیطان چه گمراه کړی دوی

ضَلٰلًاۢ بَعِيْدًا ﴿۶۰﴾

لرہ په گمراهئ لرے سره۔

ت۶ : ربط :۔ هرکله چه مخکښ آیت کښ اطاعت دَ الله تعالی اودَ رسول صلی الله علیه وسلم او واپس کول دَ حکم په وخت دَ اختلاف کښ کتاب الله او سنت رسول ته واجب کړے شول نو اوس زجر ورکوی هغه چا ته چه دَ دے حکم خلاف کوی او فیصلے دَ کتاب او سنت نه سیوا بل چا ته اوړی سره دَ دعوے دَ ایمان نه۔ او دا منافقان دی او دَ دوی قبائح ذکر کوی۔

دَ دے آیت په سبب نزول کښ مختلف روایات دی لیکن مشهور روایت دَ ثعلبی او دَ ابن ابی حاتم دے چه دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه ئے روایت ذکر کړید ے چه یو منافق چه نوم ئے بشر وو دَ یو یهودی سره تنازعه وه نو منافق وئیل چه کعب بن اشرف (چه دَ یهودیانو مشر وو) ته فیصله اوړو او هغه یهودی وئیل چه محمد صلی الله علیه وسلم ته فیصله اوړو ځکه چه یهودی یقین وو چه محمد صلی الله علیه وسلم رشوت نه اخلی او حقه فیصله کوی۔ نو دوی خپله معامله نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته یوړه

نو چه فيصله اوشوه نو منافق په هغې رضا نه وو او وئيل چه اوس فيصله (ابوبکر رضي الله عنه ته اوړو بيا دَ هغه په فيصله باندے هم رضا نه وو، قرطبي) بيا ئې فيصله عمر رضي الله عنه ته يوړه نو يهودي هغه ته اوئيل چه دا سړے دَ محمد صلى الله عليه وسلم او دَ ابوبکر صديق رضي الله عنه په فيصله رضا نه دے نو اوس ئې تاسو ته فيصله راوړه نو عمر رضي الله عنه دَ منافق سړي نه تپوس اوکړو چه واقعي دا سے ده نو هغه اوئيل چه هاؤ- نو عمر رضي الله عنه کور ته داخل شو او توره ئې راوړه او دَ هغه منافق سټ ئې اووهو ر دا دَ دے وجے نه چه هغه مرتد شو او دَ مرتد سزا قتل ده) بيا نورو منافقانو دَ مقتول په باره کښ دَ قصاص او ديت مطالبه اوکړه او عذر ئې پيش کړو چه دَ هغه مقصد خو دَ عمر رضي الله عنه په فيصله کښ جوړخ او اصلاح کول وو-
نو دا آيتونه دَ دے باره کښ نازل شويدي- اَلَمْ تَرَ، دا دَ تعجب دَ پاره ذکر دے-

اِلَى الَّذِيْنَ يَزْعُمُوْنَ، زعم په باطل، کذب او حق دريواړو کښ استعمالیږي- ابن دريد وئيلي دي چه دَ دے اکثر استعمال په باطل قول کښ دے - حديث کښ راغلي دي (بِئْسَ مَطِيَّةُ الرَّجُلِ) (ناکاره سورلي دَ يو سړي لفظ دَ زعموا دے) صاحب اللباب وئيلي دي چه زعم کله په معنیٰ دَ ظن سره وي او کله په معنیٰ دَ کفل سره وي لکه (وَاَنَا بِهٖ زَعِيْمٌ- ذمه وار)-

اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا بِمَا اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَا اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ، دلته ئې په دعوٰي دَ منافق کښ ايمان په کتابونو الهيو باندے ذکر کړو ځکه چه مقام دَ تحاکم (فيصلو) دے او دَ فيصلو مرجع کتب الهيه دي-

يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّتَحَاكَمُوْٓا اِلَى الطَّاغُوْتِ، دا اراده په معنیٰ دَ عزم سره ده ليکن په دے لفظ کښ اشاره ده چه اراده

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ
او کله چه اوئیلے شو دوی ته راشئ هغه کتاب ته
مَا أَنزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ
چه نازل کړیدے الله تعالیٰ او رسول ته

دَ تحاکم الی الطاغوت گناه ده نو تحاکم خو یقیناً گناه ده (ابوالسعود) - طاغوت، ابن کثیر وئیلی دی چه آیت عام دے دَ هر هغه چا پهٔ ذکر کوی چه دَ کتاب الله او دَ سنت نه عدول کوی او خپلے فیصلے دَ دے دواړو نه ما سیوا هر باطل ته اوړی - او په دے ځائے کښ په طاغوت سره دغه مراد دے -

وَقَدْ أُمِرُوا أَن يَكْفُرُوا بِهِ ، په دیکښ تاکید دے دَ ځکښ تعجیب دَ پاره - امام رازی وئیلی دی چه لفظ دَ يَكْفُرُوا بِهِ دلالت کوی چه تحاکم الی الطاغوت ایمان راوړل دی په هغه باندے او ایمان په طاغوت باندے یقیناً کفر بالله دے لکه چه کفر بالطاغوت یقیناً ایمان بالله دے - قاسمی دلته فرع ذکر کړیده چه دوه کسان په یو کارکښ تحاکم کوی نو یو رضا شی په فیصله دَ مسلمان حاکم باندے او بل انکار اوکړی او هغه فیصله دَ غیر دینو طلب کوی (لکه دَ انګریزانو قانون) نو دا کفر دے ځکه چه په دیکښ رضا ده په شعار دَ کافرانو باندے)۔

وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ، الشَّيْطَانُ دلته طاغوت انسی (مثلاً کعب بن اشرف) او جنی دواړو ته شامل دے - بنا په اول معنیٰ باندے چه دوی طاغوت ته فیصلے اوړی او حال دا دے چه هغه دَ دوی دَ گمراه کولو کوشش کوی نو دا هم سبب دَ تعجب دے - او بنا په دویم باندے معنیٰ دا ده چه په تحاکم الی الطاغوت سره شیطان جنی دَ دوی دَ گمراه کولو اراده لری - ضَلَالًا ، دا مفعول مطلق دے دَ

رَاَيْتَ الْمُنٰفِقِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْكَ

| ستا نه | اوړي | چه | منافقان | نو وينې ته |
|---|---|---|---|---|

صُدُوْدًا ﴿٦١﴾

| په آوړيدلو - |
|---|

يضلهم دپاره پشان دَ اَنْبَتَ اللّٰهُ نَبَاتًا - یا بل فعل پټ دے یعنی فَيَضِلُّوْنَ ضِلٰلًا او بعيدا تاکيد دے دَ ضلال دپاره یعنی داسے گمراهي چه دَحق نه لرے ده یعنی کفر او شرک.

سلا :- په دیکښ ترقي ده په حال دَ منافقينو کښ یعنی مخکښ ئې دَ دوی رغبت ذکر کړو تحاکم الی الطاغوت ته نو اوس ذکر کوی نفرت دَ دوی دَ تحاکم الی الرسول نه.

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ، دَ تعميم دَ دے وصف دپاره لفظ دَ اِذَا او صيغه دَ مجهول (قيل) ئې ذکر کړه - او لفظ دَ تعالوا دلالت کوی چه دعوت ورکوی اوچت او اعلیٰ صفت ته -

رَاَيْتَ الْمُنٰفِقِيْنَ ، اسم ظاهر ئې په ځائے دَ ضمير کښ ذکر کړو اشاره ده علت دَ اعراض او حکم دَ اعراض ته.

يَصُدُّوْنَ عَنْكَ صُدُوْدًا ، صُدُوْد مصدر دے دپاره دَ تاکيد او فعل دَ دے صد لازمي دے - او صد مصدر دَ فعل متعدي دپاره راځي لکه (فصدهم عن السبيل - نمل سلا) ابن کثير وئيلي دي چه دا دَ (وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا) پشان دے.

فائده :- په دے آيت کښ ښکاره رد دے په هغه مقلدينو باندے چه هغوی ته دعوت دَ قرآن او دَ صحيح حديث ورکړے شي او دَ دوی دَ مذهب نه خلاف وي نو دوی هم مخ اوګرځوي. نو دا حال دَ منافقانو دے -

فَكَيْفَ إِذَآ أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌۢ

پس څنګه حال به وي كله چه اورسيږي دوى ته څه مصيبت

بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ثُمَّ

په وجه دَ هغه عملونو چه مخكښ ليږلي دي لاسونو دَ دوى بيا

جَآءُوكَ يَحْلِفُونَ بِٱللَّهِ

راشي دوى . تا ته قسم كوى په الله تعالىٰ

إِنْ أَرَدْنَآ إِلَّآ إِحْسَانًا وَتَوْفِيقًا ﴿٦٢﴾

چه مونږ اراده نه ده كړې مګر دَ نيكئ او دَ جوړښت ( په مينځ دَ دواړو كښ )۔

سلا :۔ فَكَيْفَ إِذَآ أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌۢ ، په ديكښ دَ منافقانو دَ نورو قباحاتو ذكر دے او په دے جمله كښ دوه اقوال دي۔ اول قول دا چه دا معترضه ده او ثم جاؤك عطف دے په يصدون عنك صدودًا باندے ۔ يعنى په اول وخت دَ غيبوبت كښ ستا نه ځي او كرځوى بيا روستو تا ته حاضر شي نو په دروغه قسمونه كوى چه زمونږ مقصد په دے رستا دَ فيصلو نه مخ اړولو) كښ احسان او توفيق دے نو په مينځ كښ دَ دوى په دے عمل باندے دوبته تخويف ذكر كړے شو چه هر كله په دوى باندے څه مصيبت يا عذاب راشي نو بيا به څه كوى۔ دويم قول دا دے چه دا مسلسل يو كلام دے ۔ يعنى دوى خو نبي صلى الله عليه وسلم ته دَ حاضريدلو (او فيصلے كولو ) نه نفرت كوى په حال دَ سلامتيا كښ ليكن دَ سخت غم او تكليف په وخت كښ به څه كوى بلكه بيا خو مجبورًا رسول الله صلى الله عليه وسلم ته حاضريږى دَ باطل عذرونو دَ پاره نو په دروغه قسمونه كوى چه زمونږ مقصد خو خير او مصلحت وو۔ مُّصِيبَةٌۢ ، دَ اكثر مفسرينو په نيز دَ دے نه مراد قتل كول دَ عمر رضى الله عنه دغه منافق لره ۔ او ابو مسلم وئيلى

دی چه په دیکښ مقصد تخویف ورکول دی په مختلف عذابونو او مصیبتونو سره په سبب دَ نفرت کولو دَ حکم دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه او په دغه مصیبتونوکښ دوی مجبوره شي چه دروغ قسمونه کوی دَ خپلے تزکیے اوصفایئ دَ پاره۔

بِمَا قَدَّمَتْ اَیْدِیْهِمْ، اشاره ده چه اعراض کول دَ تحاکم الی الله والرسول نه (داسے بد عمل دے) چه سبب دے دَ عذاب دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه اوسبب دے دَ قتل دَ وجے دَ مرتد کیدلو نه - نو بنا په اول قول سره ثُمَّ جَآءُوْكَ، عطف دے په یصدون باندے او بنا په دویم قول عطف دے په اصابتهم باندے -

یَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ، دا حال دے دَ ضمیر دَ جآؤك نه اودَ دے نه مراد په دروغه قسم کول دی - او دا صفت (په دروغه قسمونه کول) دَ منافقانو په سورة توبه ۴۲، ۵۶، ۶۲، ۷۴، ۹۵ او ۹۶ کښ او په سورة مجادله ۱۴ کښ ذکر دے۔

دَ احسان او دَ توفیق په معنو کښ مختلف وجوه دی - اوله وجه دا ده چه دوی وائی چه مونږ نه ده اراده کړے په فیصلے اولو سره غیر رسول صلی الله علیه وسلم نه مګر احسان کول دَ مدعی علیه سره او اتفاق او جوړخ پیدا کول په مینځ دَ مدعی او مدعا علیه کښ - دویمه وجه دا ده چه دوی وائی چه نبی صلی الله علیه وسلم خو صرف په حق سره فیصله کوی او مونږ اراده اوکړه چه احسان اوکړیشی دَ دواړو طرفونو سره اودَ دوی په مینځ کښ موافقت او مصالحت راشی - دریمه وجه دا ده چه دوی روستو راغلل او دیت ئے طلب کوو دَ عمر رضی الله عنه نه - نو او وئیل ئے چه زمونږ یل مراد نه دے سیوا دَ دینه چه په ادا کولو دَ دیت سره احسان اوشی دَ ولی دَ مقتول سره او دَ دوی او دَ عمر رضی الله عنه په مینځ کښ آینده دَ پاره موافقت پیدا شی - څلورمه وجه، ابن کیسان وئیلی دی چه احسان او توفیق نه مراد حق او عدل دے -

أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَعْلَمُ اللّٰهُ

دا هغه کسان دي چه پوهه دے الله تعالىٰ

مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ فَأَعْرِضْ

په هغه څه چه په زړونو د دوی کښ دي نو مخ واړوه

عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ وَقُلْ لَّهُمْ

د دوی نه او وعظ کوه دوی ته او وايه دوی ته

فِيْٓ أَنْفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيْغًا ﴿۶۳﴾

په باره د ځانونو د دوی کښ وينا اثر ناکه -

پنځمه وجه ، کلبي وئيلي دي چه احسان په قول سره او توفيق درست عمل ته وئيلے شي -

۶۳:- په ديکښ رد دے د دوی د دغه قول (قسم کولو) او تفريع ده په تير شوے قيا تحو يانت ے په ذکر د استعمال د آدابو د دوی سره -

مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ ، د دينه مراد د دوی نفاق ، غصه ، دشمني او دروغ دي - او اول آدب دا دے چه فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ ، يو معنیٰ دا چه د دوی عذرونه مه قبلوه - دويمه دا چه اعراض اوکړه د دوی د زړونو د رازونو ښکاره کولو نه يعني نفاق وغيره ځکه چه د هغوی د نفاق اظهار کله د ډير شر د پاره سبب اوګرځي او په ضد او عناد باندے پاخه شي (صاحب اللباب) دويم ادب دا چه وَعِظْهُمْ ، موعظه کښ معنیٰ د زجر او تخويف وي يعني د نفاق ، مکرونو ، حسد کولو او دروغو وئيلو نه ئے منع کړه او د الله تعالىٰ عذاب ورته ذکر کړه - دريم آدب (وَقُلْ لَّهُمْ فِيْٓ أَنْفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيْغًا ، فِيْٓ أَنْفُسِهِمْ کښ درے توجيهات دي اول دا چه په يوازے والي پورے لګه چه د نوح عليه السلام په دعوت کښ دوه طريقے وے (ثُمَّ إِنِّيْٓ أَعْلَنْتُ لَهُمْ

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ
او نه دے لیږلے مونږ هیڅ رسول
اِلَّا لِیُطَاعَ بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَلَوْ اَنَّهُمْ
مګر د پاره د دے چه تابعداری اوکړے شی د هغه په حکم د الله تعالیٰ. او که دا خلق
اِذْ ظَّلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ جَآءُوْكَ
کله چه ظلم اوکړو دوی په ځانونو خپلو راغلی دے تا ته
فَاسْتَغْفَرُوا اللّٰهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ
او بخنه یے غوښتے وے د الله تعالیٰ نه او بخنه غوښتے وے دوی لره
الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوا اللّٰهَ تَوَّابًا
رسول (صلی الله علیه وسلم) نو خامخا موندلے به وو دوی الله تعالیٰ لره توبه قبلوونکے
رَّحِیْمًا ﴿۶۴﴾
رحم کوونکے۔

وَاَسْرَرْتُ لَهُمْ اِسْرَارًا، نوح) دویمه توجیه دا چه فی انفسهم د دوی د نفسونو په باره کښ دے چه په هغے کښ نفاق پټ ساتلے دے۔ دریمه دا چه فی انفسهم په بلیغًا پورے متعلق دے یعنی چه اثر کوونکے وی په زړونو د دوی کښ راو دا ترکیب د کوفیانو په نیز جائز دے۔ بلیغ، معنیٰ انتها ته رسیدونکے دے (قرطبی) نو هغه یره ورکول دی په قتل کولو سره که چرے دوی توبه نه اوباسی۔ یا داسے قول چه د فصاحت و بلاغت نه ډک وی چه ښه تاثیر اوکړی۔ او په دے آدابو سره د ټولو منافقانو سره معامله پکار ده۔

ملا۔ د زجر د منافقانو نه روستو رچه په سبب د پریخودلو د اطاعت د رسول وو) اوس ترغیبات ذکر کوی اطاعت د رسول صلی الله علیه وسلم ته په دے قول سره چه

وَمَآ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا لِيُطَاعَ بِاِذۡنِ اللّٰهِ ، په ديكښ اول ترغيب دے ـ يعنی د رسول د رالیږلو مقصد صرف د هغه اطاعت كول دي او دیته استثناء مفرغ وئیلے شي یعنی وَمَآ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ رَّسُوۡلٍ لِشَیۡءٍ مِّنَ الۡاَشۡيَآءِ اِلَّا لِيُطَاعَ ـ اشاره ده چه څوک د رسول اطاعت نه كوي نو گويا چه د هغه رسالت مهمل گنړي ـ بِاِذۡنِ اللّٰهِ ، باء ، سببيه ده او اذن په معنیٰ د امر سره دے يعنی په سبب د امر د الله تعالیٰ او په اطاعت د هغه سره ـ

سوال :- ليطاع دلالت كوي په اراده بانديے د اطاعت د رسول او حال دا چه ډير خلق د رسول اطاعت نه كوي نو دا خو د الله تعالیٰ د ارادے نه خلاف لازميږي او دا خو د معتزلو د مذهب تائيد دے ؟

جواب لـه :- ابوحيان وئيلي دي چه يطاع صيغه د مجهول ده نو فاعل محذوف خاص مراد دے يعنی لِيُطِيۡعَهٗ مَنۡ اَرَادَ اللّٰهُ طَاعَتَهٗ ـ

جواب ـلـه :- اذن دلته په معنیٰ د ارادے سره دے يعنی بارادة الله يا په معنیٰ د توفيق او اعانت سره دے ـ

فائده :- صاحب اللباب وئيلي دي چه دا آيت دليل دے چه انبياء عليه السلام د گناهونو نه پاك دي ځكه چه په ديكښ دليل دے مطلقاً په وجوب د طاعت د هغوي بانديے نو كه بالفرض دوي په يو گناه بانديے راتلل كوي نو په هغے كښ په هم په مونږ بانديے اقتداء كول واجب شي ـ او گناه كيدل د يو كار دليل دے په حرمت د هغے بانديے او واجب كيدل دے په وجوب د هغے بانديے نو د حل او حرمت اجتماع په يو څيز كښ لازميږي او دا محال ده ـ

وَلَوۡ اَنَّهُمۡ اِذۡ ظَّلَمُوۡٓا اَنۡفُسَهُمۡ ، روستو د ذكر د مقصد رسالت نه (چه اطاعت دے) ادب ذكر كوي د هغه د اطاعت ترك كوونكو د پاره ـ ظَلَمُوۡٓا ، د ظلم نه مراد د رسول صلی الله

علیه وسلّم دَ تحاکم او اطاعت نه ځ کرځول دی لکه چه دغه وخت کښ منافقانو داسے کار کړے وو۔ جَآءُوْكَ، دَ دینه مراد حاضریدل دی رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته په اراده دَ پښیمانتیا او توبه کولو سره۔
فَاسْتَغْفَرُوا اللهَ، دَ رسول صلی الله علیه وسلم په تحاکم او طاعت پریخودلو سره دَ الله تعالیٰ نه عصیان لازمیږی ځکه الله تعالیٰ په مخکښ جمله کښ دَ هغه اطاعت واجب کړیدے نو اول استغفار کول دَ الله تعالیٰ ته واجب دی۔
وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ، دا وسیله نیول دی الله تعالیٰ ته په دعا طلب کولو دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم سره په ژوندانه او په حضور دَ هغه کښ او دا وسیله شرعیه ده۔
سوال :- جاءوك صیغه دَ خطاب وه نو استغفرت ئے صیغه دَ خطاب ولے ذکر نه کړه ؟
جواب :- په عدول (نقل کیدلو) دَ حال دَ خطاب نه غائب والی ته او تصریح کول په وصف دَ رسالت دَ هغه کښ اوچتوالے دَ شان دَ هغه او عظمت دَ دُعا دَ هغه دے۔
لَوَجَدُوا اللهَ، دا خبر دے دَ اِنَّ او اذ ظلموا متعلق دے په روستو جاءوك پورے۔ وجدوا نه مراد وجدان علمی دے نو متعدی دے دوه مفعولونو ته نو دویم مفعول تَوَّابًا رَّحِیْمًا دے۔ یا وجدان په معنیٰ موندلو دے او توابا حال دے او موندلو کښ اشاره ده چه دَ معصیت کولو په وخت کښ دَ انسان نه الله تعالیٰ داسے دے لکه چه ورک شوے او هیر شوے وی نو دَ توبے په وخت کښ ئے بیا او موندلو۔
تَوَّابًا، ډیر توبه قبلوونکے او توبے کولو طریقه خودونکے۔
رَّحِیْمًا، رحم کوونکے په بخ کولو دَ هغه سره دَ گناهونو ته په راتلونکی وخت کښ۔
سوال :- دَ معصیت په مقام کښ دَ الله تعالیٰ نه استغفار پوره وو نو دلته استغفار دَ رسول ئے دَ څه حکمت دَ پاره ذکر کړو؟

جواب ۱۵ :- دَ رسول دَ اطاعت په پرېښودلو کښې دَ هغه خفه کول لازمېږي نو دَ دغه خفګان لرے کولو دَ پاره هغه ته اظهار دَ عذر پکار دے۔
جواب ۱۶ :- دلته ګناه دَ رسول دَ حکم په پرېښودلو سره وو نو په قبولیت دَ توبه کښې هغه عمل کول لازم دي چه دَ هغے پرېښودل سبب دَ ګناه ګرځیدلے وي۔
فائده :- مبتدعینو دَ دے آیت نه دلیل نیولے دے چه دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم دَ وفات نه روستو دَ هغه قبر مبارک ته تلل او دَ هغه نه دعا طلب کول که دَ هر مقصد دَ پاره وي او خصوصًا دَ ګناهونو دَ مغفرت طلب کولو دَ پاره جائز دي بلکه بیا وائي چه دَ اولیاء کرامو دَ قبرونو نه هم دَ دُعا طلب کول جائز دي۔
دَ دے اول جواب دا دے چه دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم یا دَ اولیاؤ دَ قبرونو دَ زیارت په وخت کښې دَ هغوی نه دَ دعا طلب کول په هیڅ صحیح حدیث سره نه دي ثابت او دا رنګ صحابه کرامو دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم دَ وفات نه روستو هیچرے دَ هغه دَ قبر دَ زیارت په وخت کښې دَ هغه دَ دُعا طلب نه دے کړے (الصارم المنکی صفحه ۲۷۳)
نو دَ صحابه کرامو اجماع دا ده چه هغوی دَ قبر والا نه دُعا نه ده کړے۔
دویم جواب دا دے چه په دے آیت کښې تخصیص دے په ژوند دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم پورے او دَ تخصیص دلیل دا ضمیرونه دي (ظلموا، انفسهم، فاستغفروا الله، واستغفر لهم الرسول، لوجدوا) ځکه چه ضمیر دلالت کوي په ذات یا ندے په طریقه دَ تعین او تخصیص سره۔ لیکن کله چه بله قرینه دَ عموم موجود شي خو دلته بله قرینه دَ عموم نشته۔
دریم جواب په دیکښې لفظ دَ جاءوك دے او جاءوا الی قبرك په دے یا ندے نشي قیاس کیدے او په قبر کښې اګر چه

ژوند دَ نبی صلی اللّٰه علیه وسلم لره ثابت دے لیکن هغه برزخیه ژوند دے په هغے بانـدے دنیوی آثار نه مرتب کیږی۔

څلورم جواب هر کله چه دَ دے آیت په تفسیر کښ دَ صحابه کرامو نه تعمیم نه دے نقل یعنی روستو دَ وفات نه نه دے شامل۔ نو روستو چاله جائز نه دی چه صحابه کرامو نه خلاف دَ آیت بل تفسیر دَ ځان نه اوکړی۔ (الصارم المنکی صفحه ۴۲۷) بانـدے لیکلی دی۔ وَلَا یَجُوْزُ اِحْدَاثُ تَاْوِیْلٍ فِیْ اٰیَةٍ اَوْ سُنَّةٍ لَمْ یَکُنْ عَلٰی عَهْدِ السَّلَفِ وَلَا عَرَفُوْهُ وَلَا بَیَّنُوْهُ لِلْاُمَّةِ، (جائز نه دے پیدا کول دَ تاویل په یو آیت یا حدیث کښ چه هغه په زمانه دَ سلفو کښ نه وو او نه هغوی پیژندلو او نه ئے امت ته بیان کړے وے)۔

پنځم جواب، دلته ئے چاؤکه فرمائیلی دے تا دوکه (چه آواز اوکړی تا ته) ئے نه دے وئیلی دی او حال دا چه طلب دَ دعا دَ صاحب قبر نه په اتفاق دَ سلفو صالحینو سره جائز نه دے الصارم المنکی صفحه ۱۱۳ کښ لیکلی چه سلف ټول په دے خبره متفق دی چه دَ قبر زیارت کوونکے به قبر والا نه هیڅ سوال نه کوی او دَ هغه نه به هغه څیز نه غواړی کوم چه په ژوند کښ غوښتلے کیږی یا په قیامت کښ غوښتلے کیږی یعنی نه به استغفار غواړی او نه به شفاعت غواړی، دارنګ آلوسی په خپل تفسیر شپږم جلد صفحه ۱۲۵ دَ وسیلے دَ آیت دَلاندے لیکلی دی اَمَّا اِذَا کَانَ الْمَطْلُوْبُ مِنْهُ مَیِّتًا اَوْ غَائِبًا فَلَا یَسْتَرِیْبُ عَالِمٌ اَنَّهُ (طَلَبُ الدُّعَاءِ) غَیْرُ جَائِزٍ وَاَنَّهُ مِنَ الْبِدَعِ الَّتِیْ لَمْ یَفْعَلْهَا اَحَدٌ مِنَ السَّلَفِ، (هر کله چه هغه څوک چه دعا ترینه طلب کیدیشی مړوی یا لرے وی نو شک نه کوی هیڅ عالم چه دا ناجائز دے او دَ هغه بدعاتو نه دے چه دَ سلفو نه هیچا نه دے نقل کړے)۔

فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى

پس داسے نه ده قسم دے ستا په رب پاندے نشي مؤمنان کیدے دوی ترڅو پورے

يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ

چه فیصله اوکړي په تا باندې په هغه معامله کښ چه پیدا شوې وي په مینځ د دوی کښ

ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ

بیا نه موړی په خپلو زړونو کښ

شپږم جواب، د صاحب قبر نه دعا غوښتل په مسئله د سماع (اوریدو د مړي) باندے موقوف ده او په قرآن کریم کښ صریح نصوص دی په دے خبره باندے چه اصحاب القبور (انبیاء وی که اولیاء وی) د دعا کوونکو دعا بالکل نه اوری (که نورے خبرے اوری که نه اوری د هغے په خپل ځائے کښ تفصیل راځي) لکه سوره یونس ۲۸، ۲۹، سوره فاطر ۱۴، سوره احقاف ۵، ۶۔

سوال:۔ دلته قرطبی، ابن کثیر او نورو مفسرینو د اعرابی حدیث ذکر کړے دے چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د وفات نه روستو هغه د نبی صلی الله علیه وسلم د قبر مبارک نه استغفار غوښتلے وو او دا آیت ئے لوستلے وو او خوب کښ ورته معلومه شوه چه هغه ته بخنه اوکړے شوه؟

جواب:۔ د دے تفصیلی جواب په تفسیر د سوره مائده د وسیلے په آیت کښ ذکر کیږی هغه هلته اوګورئ۔ او د قرطبی په حاشیه کښ لیکلی دی چه د دے په سند کښ انقطاع او ارسال دے۔ د ابوصادق ازدی کوفی د علی رضی الله عنه سره ملاقات نه دے ثابت۔ او ابن کثیر او ابوحیان هم دا حدیث بغیر د سند نه ذکر کړیدے او د حدیث د پاره سند ذکر کول بالاتفاق ضروری دی۔ او په نورستن باندے تفصیلی کلام په تفسیر د سوره مائده کښ اوګورئ۔

حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوْا

خفګان دَ هغې فيصلې نه چه تا کړے وی او اومنی ستا فيصله

تَسْلِيْمًا ﴿٦٥﴾

په هميشه منلو سره -

ف۶۵ :- په دے آيت کښ ترغيب دے اطاعت دَ رسول ته په بله طريقه - هغه دا دے چه اطاعت دَ رسول سره دَ شرطونو نه چه په دے آيت کښ ذکر دی دَ ايمان دَپاره موقوف عليه دے - او دَ دے آيت په سبب نزول کښ دوه اقوال دی - اول هغه تيره شوے واقعه چه دَ منافق او يهودی په مينځ کښ وه او آخری فيصله ئے عمر رضی الله عنه اوکړه - دويم قول حديث دَ امام بخاری رحمه الله دے چه په کتاب التفسير وغيره کښ راوړيدے چه دَ زبير رضی الله عنه دَ يو انصاری سره دَ اوبو په لختی کښ جګړه وه نو اول خو نبی کريم صلی الله عليه وسلم دَ مصالحت په طريقه فيصله اوکړه بيا دَ انصاری دَ خفګان دَ وجے نه هغه پوره فيصله اوکړه (ليکن چا چه وئيلی دی چه دغه انصاری خاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه وؤ نو دا قول په صحيح سند متصل سره ثابت نه دے) که سبب نزول هر يو وی خو حکم دَ آيت عام دے -

فَلَا وَرَبِّكَ ، په ديکښ تاکيدات په ذکر دَ حرف لا او قسم دَ الله تعالیٰ په خپل ربوبيت باندے او اضافت دَ ربوبيت ذات دَ نبی صلی الله عليه وسلم ته په طريقه دَ خطاب سره پدے وصف کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ په دے حکم کښ دَ خپل ربوبيت اظهار کوی او دا رنګ دَ خپل نبی دَ شان حفاظت کوی - فلا کښ ډير اقوال دی - او قول دَ ابن جرير دے چه دا رد دے دَ پټ کلام دَپاره چه مخکښ کلام نه دلالةً معلوميږی يعنی نه ده خبره دا سے لکه چه منافقان ګمان

کوی چه په خله باندے دَ ایمان اقرار کوی او دَ تحاکم دَ رسول صلی الله علیه وسلم په خلاف کوی. نو وقف دے په لا باندے او وریك سره نوے کلام شروع کړے. دویم قول دا دے چه دا لا، یئے مخکښ کړے دے په قسم باندے دَ نفی دَ اهتمام دَپاره بیا تکرار شوے دے دَ لا دَ نفی دَ تاکید دَپاره. نو په اول "لا" کښ معنیٰ دَ اهتمام دَ نفی ده او په دویم کښ تاکید دَ نفی دے. دریم قول، اول "لا" حرف نفی دے داخل دے په یؤمنون باندے او دویم "لا" زیاتی دے او ربك په مینځ کښ جمله معترضه ده. څلورم قول دَ زمخشری دے چه اول "لا" زیاتی دے دَپاره دَ تاکید او دویم په خپل ځائے دے. او دا سے اقوال په لا اقسم (سوره واقعه ۷۵، سوره قیامة ۱، سوره الحاقه ۳۸، سوره انشقاق ۱۶، سوره تکویر ۱۵ او سوره بلد ۱) کښ هم دی. لیکن په دیکښ اول قول راجح دے.

لَا يُؤْمِنُوْنَ، قاسمی وئیلی دی چه دَ دینه مراد ایمان کامل دے.

حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ، امام رازی وئیلی دی چه الله تعالیٰ په قسم سره دَ صفت دَ ایمان دَپاره درے شرطونه ذکر کړی دی.

اول شرط: په هر اختلاف او معامله کښ په رسول صلی الله علیه وسلم (یعنی په قرآن او صحیح احادیثو) فیصله کول. دا عمل دے لیکن علامت دے دَ قلبی ایمان دَپاره. شَجَرَ، دا ماده دلالت کوی په اختلاط او اختلاف باندے لکه چه دَ ونے څانګے چه په یو بل کښ ننوتلے وی نو دا رنګ کلام دَ خلقو دَ اختلاف په وخت کښ په یو بل کښ ننوځی. او دا هر قسم اختلاف ته شامل دے که اختلاف دَ عوامو وی او که دَ علماؤ وی که په دنیوی امورو کښ وی او که په دینی امورو کښ وی.

دویم شرط دا دے چه ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِيْ اَنْفُسِهِمْ حَرَجًا

مِمَّا قَضَيْتَ)، په دیکښې مراد حصول دَ یقین دے په زړه کښې چه فیصله دَ رسول صلی الله علیه وسلم بالکل حقه او صحیح ده یعنی دغه عمل دَ تحکیم سره ایمان قلبی ملګرے دے نو معلومه شوه چه صرف په تحکیم رسول سره ایمان نه حاصلیږی په غیر دَ تصدیق قلبی نه.
اَنْفُسِهِمْ، دَ دے نه مراد زړونه دی. حَرَجًا، زجاج وئیلی دی چه حرج په معنیٰ دَ تتګسیا (خفګان) دے. مجاهد وئیلی دی چه په معنیٰ دَ شک کولو دے. مِمَّا قَضَيْتَ، قاسمی وئیلی دی چه دا لفظ هر صحیح حدیث ته شامل دے نو په هر مؤمن باندے لازم ده چه صحیح حدیث لره ظاهرًا او باطنًا قبول کړی او دَ هغے دَ رد دَپاره حیلے او تاویلونه نه لټوی دَ تقلید او دَ مذهبی تعصب دَ وجے نه دَ مذهبی تعصب دَ وجے نه لکه چه دا حال دَ متعصبینو مقلدینو دے چه دَ حدیثو او اهل حدیثو دشمنان دی نو هغوی هم دَ دے آیت په وعید کښې داخل دی.
دریم شرط: وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا، دے یعنی هغه شخص چه په زړه کښې ئے په یو حکم باندے یقین راشی لیکن بیا هم دَ ضد او عناد دَ وجے نه دَ هغے نه خلاف کوی نو په دے شرط سره ئے ثابته کړه چه ظاهر به دَ باطن سره موافق کرځوی.
ابن کثیر وئیلی دی چه هر کله دوی په تا باندے فیصله اوکړی نو په باطن کښې هم اطاعت کوی او دَ هغے په کلی طور سره تسلیم کوی بغیر دَ ممانعت، مدافعت او منازعے نه. آلوسی وئیلی دی چه دا آیت دَ نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه پورے خاص نه دے بلکه دَ هغه قضا دَ هغه ټول شریعت دے. او دَ جعفر صادق رحمه الله نه روایت دے که چرے یو قوم دَ الله تعالیٰ عبادت کوی مونځونه، روژے حج او زکوٰة ادا کوی لیکن چه یو کار نبی صلی الله علیه وسلم

وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنِ
اوکه چرې فرض کړې وې مونږ په دوی باندې (په اطاعت دَ رسول کښې) چه
اقْتُلُوٓا أَنفُسَكُمْ أَوِ اخْرُجُوا
او وژنئ ځانونه خپل او او ځئ
مِن دِيَارِكُم مَّا فَعَلُوهُ إِلَّا
دَ کورونو خپلو نه ، نه به وو کړې دا کار مګر
قَلِيلٌ مِّنْهُمْ ۖ وَلَوْ أَنَّهُمْ
لږ کسانو دَ دوی نه ، او که چرې دوی
فَعَلُوا مَا يُوعَظُونَ بِهِ
کړې وې هغه کار چه وعظ کیږی دوی ته په هغې سره

کړې وی او دا قوم یا اشخاص په هغه کار باندې اعتراض کوی چه دے نه خلاف کارئے ولے نه کوو یا په زړه کښې په هغې باندې خفه وی نو دغه شخص مشرک دے۔
سوال :- دَ دے آیت نه خو دَ خوارجو مذهب سره موافقت معلومیږی چه چا شرعی فیصله اونکړه نو هغه کافر دے؟
جواب :- په دیکښې دَ نفی دَ ایمان دَ پاره درے شرطونه ذکر کړیدی (چه هغه مخکښې ذکر شو) چه په هغې کښې دویم شرط تصدیق قلبی دے او په نفی دَ تصدیق قلبی خامخا کفر لازمیږی۔
فائده :- صاحب اللباب وئیلی دی چه دا آیت دلیل دے په عصمت دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندے دَ هر قسم ګناه نه ځکه چه الله تعالی په مونږ باندے دَ هغه دَ هر حکم انقیاد باطنی او ظاهری واجب کړیدے نو دا دلیل دے چه دَ هغه په اعمالو کښې دَ ګناه عمل نشته۔

لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَأَشَدَّ

خامخا وو به غوره دوی لره او ښه

تَثْبِيتًا (۶۶)

کلکوونکی (د ایمان)

ف ۶۶:- د دے آیت په اول کښ زجر دے منافقانو ته او روستو ترغیب دے اطاعت د رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په ښلے طریقے سره۔

وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ، آلوسی وئیلی دی چه د دینه مخکښ کلام پټ دے یعنی مونږ په دوی باندے فرض کړے دے اطاعت د رسول الله صلی الله علیه وسلم چه هغه آسان کار دے نو دوی دِ هغه قبول کړی، ځکه که چرے مونږ په دوی باندے په تابعدارئ د رسول کښ دا فرض کړو چه أَنِ اقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ، لکه چه په بنی اسرائیلو باندے د توبے په وخت کښ دا فرض کړے شوے وو او دغه شان (أَوِ اخْرُجُوا مِن) مِن دِيَارِكُم، لکه چه په بنی اسرائیلو باندے د موسیٰ علیه السلام په تابعدارئ کښ د مصر نه هجرت کول فرض شوی وو نو مَّا فَعَلُوهُ إِلَّا قَلِيلٌ مِّنْهُمْ، په ضمیر د عَلَيْهِمْ کښ (چه كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ کښ ذکر ده) دوه اقوال دی اول دا چه مؤمنان او منافقان دواړو ته عام دے نو دلته په قلیل کښ مخلصان مؤمنان مراد دی چه هغوی د نبی صلی الله علیه وسلم په اتباع کښ قتال او هجرت دواړه کړیدی۔ دویم قول دا چه ضمیر صرف منافقانو ته راجع دے نو قلیل کښ هم منافقان مراد دی چه د ریا او سمعت د وجے نه ئے قتال یا هجرت کړیدے۔ قَلِيلٌ باندے پیښ دے بنا په بدلیت سره د فاعل د ما فعلوا نه ځکه چه دا کلام غیر موجب (منفی) دے۔

وَلَوْ أَنَّهُمْ فَعَلُوا مَا يُوعَظُونَ بِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ، په دے جمله کښ ترغیب دے اطاعت د رسول ته په ذکر د دوه

وَّاِذًا لَّاٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ لَّدُنَّآ

اود غه وخت خامخا ورکړے به وو مونږ دوی ته د خپل طرف نه

اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۶۷﴾ وَّلَهَدَيْنٰهُمْ

ثواب لوے۔ او خامخا راخه کړے به وُ مونږ دوی له

صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿۶۸﴾

په لار نیغه باندے۔

فائده د هغه د اطاعت سره۔ د مَا يُوْعَظُوْنَ بِهٖ نه مراد د رسول الله صلی الله علیه وسلّم اتباع، اطاعت او انقیاد دے په ټولو اوامرو او نواهیو کښې او هغې ته مواعظ وئیلے شي ځکه چه مشتمل دی په وعد او وعید باندے۔ خَيْرًا لَّهُمْ يعني په دنیا او آخرت کښې به ډیره فائده مند وی۔

وَاَشَدَّ تَثْبِيْتًا، د دینه مراد پخول د ایمان دی په زړه کښې یعنی اتباع د رسول سبب دے د پاره د کلکوالی د ایمان۔ او د تثبیت نه مراد بقاء او ثبات دے یعنی انسان اول خیرغواړي او بیا بقاء د هغه خیرغواړي۔

۶۷، ۶۸ :- په دیکښې د اطاعت رسول نورے دوه فائدے ذکر کوي (اجرعظیم او هدایت د صراط مستقیم)۔

وَاِذًا لَّاٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ لَّدُنَّآ اَجْرًا عَظِيْمًا، جواب دے د یو سوال چه د تثبیت نه روستو څه حاصلیږي۔ اَجْرًا عَظِيْمًا یې دواړه نکرے ذکر کړیدی اشاره ده چه د دغه اجر اندازه مخلوق ته نه ده معلوم او نسبت الله تعالی ته په لفظ د اٰتَيْنَا او مِنْ لَّدُنَّا کښې په ډیر عظمت د اجر باندے دلالت کوي۔

صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا، ابن عطیه وئیلی دی چه د دینه مراد هغه ایمان دے چه جنت ته رسوونکے دے او چا وئیلی دی چه هغه لار چه جنت ته رسوونکے ده او چا وئیلی دی چه اعمال

وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ

او چا چه تابعداري اوكړه د الله تعالىٰ او د رسول

فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ

پس دغه خلق به ملګري وي د هغه كسانو سره چه انعام كړيدے

اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ

الله تعالىٰ په هغوي باندے چه پيغمبران دي ،

وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ

او ډير رشتني دي او شهيدان دي او نيكان دي

وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ﴿۶۹﴾

او ښه دي دوي په ملګرتيا كښ .

صالحه مراد دي۔
سوال :- هدايت د صراط مستقيم خو د نورو فائدو نه مخكښ د نوولے ئے روستو ذكر كړو ؟
جواب :- ابن عطيه جواب كښ وئيلي دي چه دلته مقصد صرف د نعمتونو شمارل دي ترتيب مقصد نه دے۔ ليكن په قول د ابوحيان او صاحب اللباب غور ره دا ده چه د دينه مراد د جنت لار او نيك اعمال دي نو ترتيب صحيح دے۔ او په دے نعمتونو كښ ښائسته ترتيب دے چه اول د يو كار په خيريت او غور ره والي باندے نظر وي روستو په هغے باندے زړه تسلي او بقاء مقصد وي بيا ورپسے په هغے سره ثواب حاصلول بيا ورپسے نورے فائدے او جنت ته رسيدل مقصد دي۔
۶۹ :- په ديكښ ترغيب دے اطاعت د رسول ته په ډير لوے نعمت سره چه هغه حصول د ملګرتيا د منعم عليهم خلقو دے په جنت او په برزخ كښ او دا تفصيل د اجر عظيم دے چه مخكښ ذكر شويدے۔

وَمَنْ يُطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ ، اطاعت دَ اوامرو او نواهيو چه په قرآن كريم كښ دے اطاعت دَ الله تعالىٰ دے او اطاعت دَ اوامرو او نواهيو چه په احاديثو كښ دے هغه اطاعت رسول دے او اطاعت دَ رسول صلى الله عليه وسلم اطاعت دَ الله تعالىٰ دے دَ دے وجے نه والرسول سره ئے جدا اطاعت نه دے ذكر كړے - امام رازى او صاحب اللباب ذكر كړيدى چه مراد دا دے چه چا اطاعت اوكړو دَ الله په ادا دَ فرائضو كښ او اطاعت دَ رسول صلى الله عليه وسلم ئے اوكړو په ادا دَ سنن كښ -

فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ، دَ معيت نه مراد ملګرتيا دَ ارواحو دَ هغوى سره ده په عالم برزخ كښ په دليل دَ قول دَ نبى صلى الله عليه وسلم چه دَ هغه دَ جسد مبارك نه دَ هغه دَ روح مبارك دَ جدائى په وخت كښ فرمائيل چه (مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ) - او په بل روايت كښ دى اَللّٰهُمَّ الرَّفِيْقَ الْاَعْلٰى - دا دويم دَ اول دَ پاره تفسير دے - قرطبى وثيلى دى چه دا مراد دے او دا سے حديث او مضمون ابن كثير هم دَ دے آيت په تفسير كښ ذكر كړيدے - دا رنګ مرافقت په جنت كښ مراد دے او دَ دے دَ پاره ابن جرير او ابن كثير ډير روايات ذكر كړيدى - او قرطبى وئيلى دى چه دوى به دَ هغوى سره په ځائے كښ او په يو قسم نعمتونو كښ وى دَ هغوى سره به ملاقات كوى دَ هغوى په مجلس كښ به حاضريږى اګرچه دَ دوى په درجاتو كښ به فرق وى ليكن دوى به ځان ادنى نه ګڼړى او دَ دوى دَ زړونو نه به غل اوځى - ابن عاشور وئيلى دى چه دَ معيت نه مراد معيت دَ درجے دے په جنت كښ اګرچه په درجاتو كښ به تفاوت ډير وى -

مِنَ النَّبِيّٖنَ ، دا دَ الذين انعم الله عليهم بيان دے او دا صحيح قول دے او دلته لفظ دَ النبيّين تولو رسولانو او

پیغمبرانو ته شامل دے او الف لام پکښ د استغراق دپاره دی نو خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم ته هم شامل دے۔
وَالصِّدِّيقِيْنَ ، په صدیق سره مراد هغه څوک دی چه د نبی تصدیق ئے د اول وخت نه کړے وی لکه د دے امت حواریون او سابقون الاولون او د دے مصداق په دے امت کښ ابوبکر صدیق رضی الله عنه دے او د هغه ایمان د نورو لوبو صحابه کرامو د ایمان سبب اوګرځیدلو قرطبی وئیلی دی چه صدیق هغه دے چه د قول د زړے تاکید کوی په عمل خپل سره او ابوحیان وئیلی دی چه صدیق هغه څوک دے چه د هغه په ایمان کښ هیڅ محل د شک نه وی لکه سوره حدید ۱۹۔ دا رنګ کثیر الصدق ته هم وئیلے شی۔
وَالشُّهَدَاءِ ، د دینه مراد شهداء فی سبیل الله دی لکه شهیدان د بدر او احد وغیره ۔ دا رنګ عمر، عثمان او علی رضی الله عنهم هغوی هم د الله تعالیٰ د دین دپاره شهیدان شوی وو۔ یا د دینه مراد شهادت کوونکی دی د صحت د دین د الله تعالیٰ په دعوت او بیان سره او په تورے او جهاد کولو سره ۔ نو شهداء هغه دی چه قائم وی په قسط باندے لکه په آلعمران ۱۸ کښ دی۔ امام رازی وئیلی دی چه دا شهداء حکمیه ته هم عام دے
وَالصّٰلِحِيْنَ ، د دینه مراد هغه څوک دی چه ظاهر او باطن ئے دواړه صالح وی او د مخکنو دریواړو ډلو په طریقه باندے روان وی او د دے مصداق تبول صحابه کرام ؓ لکه چه د عکرمه قول هم داسے دے۔
فائده ۱۰:- په دے څلورو صفاتو کښ دوه اقوال دی۔ اول قول دا دے چه دا صفات د یو موصوف دپاره دی یعنی انبیاء علیهم السلام چه په هغوی کښ وصف د نبوت دے او ورسره صدیقیت هم شته لکه چه سوره مریم ۴۱، ۵۶ کښ دا صفت د ابراهیم او ادریس علیهما السلام دے او په سوره یوسف ۴۶ کښ د یوسف علیه السلام دے دا رنګ د هر نبی دپاره صفت د

شهادت هم شته لکه په سورۃ نساء سلا، ۱۵۹، سورۃ بقره ۱۴۳
سورۃ مائده ۱۱۷، سورۃ نحل ۸۹، سورۃ حج ۷۸ او سورۃ
قصص ۸۵ کښ۔ او دَ صالحیت صفت هم دَ هر نبي دَ پاره
دے لکه سورۃ مریم ۱۰، سورۃ بقره ۱۳۰، سورۃ آلعمران
۳۹، ۴۶، سورۃ انعام ۸۵، سورۃ انبیاء ۷۲، ۸۶، سورۃ
عنکبوت ۲۷ او سورۃ قلم ۵۰۔ نو بنا په دے توجیه سره
الذین انعم الله علیهم یو جماعت دے چه هغه انبیاء
علیهم السلام دی او دَ دے تائید په سوره مریم ۵۸، سورۃ
یوسف ۶ او سورۃ مائده ۱۱۰ کښ دے۔ دویم قول دا دے
چه دا صفات دَ جدا جدا ذواتو دی یعنی څلور جماعات دی
اول جماعت دَ انبیاء علیهم السلام دے دویم دَ صدیقینو
لکه ابوبکر رضی الله عنه دریم دَ شهداؤ لکه عمر، عثمان
او علی رضی الله عنهم۔ څلورم جماعت دَ صالحینو لکه باقی
صحابه کرام۔ دا قول فراء بغوی دَ عکرمه نه نقل کړیدے
یعنی منعم علیهم انبیاء علیهم السلام او صحابه کرام دی۔
او دا سے تفصیل په سورۃ فاتحه انعمت علیهم کښ ذکر
شویدے۔ نو په دے دواړو اقوالو سره هغه سوال دفع
شو که څوک وهم کوی چه څوک دَ الله تعالیٰ او دَ رسول
اطاعت کوی نو هغه به په مرتبه دَ صدیقیت او شهادت
کښ نه وی لیکن په مرتبه دَ صالحیت کښ به وی نو دَ
هغوی سره دَ معیت څه معنیٰ نشته۔ حاصل جواب دا شو
چه په دے آیت کښ اطاعت کوونکی دَ الله تعالیٰ او دَ رسول
صلی الله علیه وسلم عام مراد دی او منعم علیهم خاص
مراد دی چه هغه انبیاء کرام او صحابه عظام دی۔
سوال:۔ دَ دے آیت نه مرزا غلام احمد قادیانی دلیل
نیولے دے دَ اجراء دَ نبوت دَ پاره او دَ استدلال طریقه ئے
دا ده چه مع دَ اشتراک دَ صفت دَ پاره دے یعنی چا چه دَ
الله تعالیٰ او دَ رسول اطاعت اوکړو نو هغه په صفت دَ نبوت

کښې دَ انبیاؤ سره شریک شو یا په صدیقیت کښې دَ صدیقینو سره یا په شهادت کښې دَ شهداؤ سره او یا په صالحیت کښې دَ صالحینو سره شریک شو. نو څوک چه په صفت دَ نبوت کښې شریک شي نو هغه نبي اوګرځي؟

جواب ۱ :- دا داسې تفسیر دے چه دَ سلفو صالحینو او دَ مؤمنانو مفسرینو نه نقل نه دے نو دیته تحریف معنوي وئیلې شي او دا عین کفر دے.

جواب ۲ :- الزامي طور سره وئیلې شي چه داسې خو په آیت محمد رسول الله والذین معه اشداء علی الکفار ........ آه کښې هم معه لفظ شته نو لازم دا شوه چه صحابه کرام دِ هم انبیاء شي ځکه چه په دغه آیت کښې یقینًا صحابه کرام مراد دي.

جواب ۳ :- په تفسیر دَ سوره بقره کښې موتږ دَ مع معاني ذکر کړے دے چه دا یو مشترک لفظ دے نو دَ مشترک نه داسې معنیٰ اخستل واجب دي چه دَ نورو آیت محکماتو سره موافق وي. نو که معنیٰ دَ شرکت فی الصفت ترینه مراد شي نو دَ ختم نبوت دَ آیت او نورو نصوصو صریحو سره مخالفت راځي او دا دَ اهل زیغو عمل دے.

جواب ۴ :- وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيقًا، دا صریح دے چه دَ معیت نه مراد رفاقت دے او رفاقت په مجلس او مکان کښې استعمالیږي په صفت کښې نه استعمالیږي. اخفش وئیلي دي چه رفیقًا حال یا تمیز دے نو مفرد په معنیٰ دَ جمع سره دے لکه ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا کښې.

فائده ۱ :- قرطبي وئیلي دي چه په نبیین پسې ئې دویمه درجه دَ صدیقینو ذکر کړه. او اجماع دَ مسلمانانو ده چه هغه ابوبکر صدیق رضی الله عنه وو نو معلومه شوه چه هغه په اسلام کښې اول حق خلیفه وو.

ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ ۚ

| دا | فضل | دے | دَ اللہ تعالٰی دَ طرف نه |
|---|---|---|---|

وَكَفٰى بِاللّٰهِ عَلِيْمًا ﴿٧٠﴾

| او پوره دے | اللہ تعالٰی | پوهه په هرڅه پانڼے۔ |
|---|---|---|

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا خُذُوْا

| اے | ایمان | والو ! | تیار اوساتئ |
|---|---|---|---|

حِذْرَكُمْ فَانْفِرُوْا ثُبَاتٍ

| سامان دَ بچاؤ خپل | پس | اوځئ | ډلے ډلے |
|---|---|---|---|

اَوِ انْفِرُوْا جَمِيْعًا ﴿٧١﴾

| یا | اوځئ | په یو ځائے۔ |
|---|---|---|

سئ :۔ په دے آیت کښ جواب دَ سوال دے چه دَ اللہ تعالٰی او دَ رسول عام اطاعت کوونکی خو په عمل کښ دَ انبیاء علیهم السلام او صحابه کرامو نه کم دی نو دوی به څه رنګ دَ هغوی سره یو ځائے کیږی په جنت کښ ۔ حاصل جواب دا دے چه دا دَ هغوی دَ عمل دَ وجے نه نه دہ بلکه دا دَ اللہ تعالٰی خالص فضل دے۔

ذٰلِكَ اشاره دہ هغه معیت او رفاقت ته چه په مخکښ آیت کښ ذکر شو۔

وَكَفٰى بِاللّٰهِ عَلِيْمًا ، یعنی دَ اللہ تعالٰی علم پوره دے په ثواب دَ اطاعت او په مقادیر دَ فضل او په مستحقینو دَ هغے پانڼے۔ یا علم دَ اللہ تعالٰی په عصیان کوونکو او اطاعت کوونکو او منافقینو او مخلصینو او په هغه چاچه اهل دَ رفاقت دی پوره دے۔

سئ :۔ په دے آیت کښ دَ امورو سیاسیه دویم قانون دے چه دَ قانونِ عدل دَ اجراء نه روستو دَ قتال فی سبیل اللہ اهتمام ذکر کوی او تیاری کول دَ هغے دَ پاره۔

ربط :۔ قرطبی وئیلی دی چه هر کله دَ اللہ تعالٰی او دَ رسول دَ

هغه دَ اطاعت ذکر یئے اوکړو نو اوس حکم کوی اهل اطاعت ته دَ احیاء دَ دین او دَ اوچتوالی دَ دین (چه هغه په قتال سره کیږی) لیکن اول امر کوی چه په جهالت او عجلت سره په دشمن باندے حمله مهٔ کوئ بلکه دَ حملے دَپاره پوره تیاری اوکړئ او دَ منافقانو دَ دهوکو او چلونو ته ځان بچ اوساتئ۔

یَآاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا، خطاب مخلصانو مؤمنانو ته دے۔

خُذُوْا حِذْرَکُمْ، حذر، په زور دَ حاء سره او په زیر دَ حاء سره منقول دے لیکن دلته په زیر سره دے۔ واحدی وئیلی دی چه دلته دوه اقوال دی اول دا چه دَ حِذر نه مراد دَ هغے آله ده یعنی توره ټوپک وغیره نو معنیٰ دا ده چه اونیسئ وسلے خپلے۔ دویم قول دا دے چه اخذ دلته په معنیٰ دَ عمل کولو دے چه خذ العفو کښ دے یعنی اِحْذَرُوْا عَدُوَّکُمْ زیره اوکړئ او ځان بچ ساتئ دَ دشمن نه) او په دے معنیٰ کښ هم دَ وسلو تیارولو ته اشاره ده او دَ هغے دَ استعمال طریقه ایزده کولو او دَ هغے دَپاره عسکری تربیت حاصلولو ته۔ قاسمی وئیلی دی چه عرب کله بیداروی او دَ یرے دَ څیز نه ځان ساتی نو وائی اخذ حذره۔ دا رنګ حذر هغه څیز ته وئیلے شی چه په هغے سره ساتنه کیږی لکه وسله۔ قرطبی او صاحب اللباب وئیلی دی چه آیت کښ دا دلیل نشته چه په حذر سره دَ تقدیر مقابله کید لیشی بلکه وسله ساتل هم په تقدیر کښ داخل دی یعنی مونږ په دَ اسباب شرعی استعمال کوو ځکه چه مونږ په هغے مکلف یو او ورسره په عقیده لرو چه تدبیر دَ تقدیر مقابله نشی کولے ځکه چه مونږ په ایمان بالتقدیر او اسباب شرعیه دواړو باندے مکلف یو۔

فَانْفِرُوْا ثُبَاتٍ، دَ فَانْفِرُوْا اصل دَ نفور او نفار ته دے نفرت کولو او بد ګڼړلو ته وئیلے شی لیکن استعمالیږی په بهر وتلو باندے دَپاره دَ مقابلے دَ دشمن یا دَ علم دَپاره۔ او په دے لفظ کښ اشاره ده چه دَ جهاد فی سبیل الله په

# وَاِنَّ مِنۡكُمۡ لَمَنۡ لَّيُبَطِّئَنَّ ۚ

او يقيناً بعضے ستاسو نه خامخا هغه دی چه روستو كيږی

# فَاِنۡ اَصَابَتۡكُمۡ مُّصِيۡبَةٌ قَالَ

نو كه اورسيږی تاسو ته څه مصيبت نو دے وائی

# قَدۡ اَنۡعَمَ اللّٰهُ عَلَىَّ اِذۡ لَمۡ

يقيناً انعام كړے دے الله تعالىٰ په ما باندی كله چه نه

وخت كښ دَ كور كلی او اهل وعيال نه داسے اوځئ لكه چه دَ هغوی سره نفرت كوونكی يئ يعنی دَ هغوی محبت تاسو لره دَ قتال دَ سفر نه مانع او نه كړځی - ثُبَاتٍ ، دَ دے مفرد ثُبَةٌ دے دَ خلقو ګلګے ډلے ته وئيلے شی او داسے ډلے ته سر په هم وئيلے شی يعنی ډلے ډلے (سرپيے سرپيے) دَ جهاد دَ پاره اوځئ دا په هغه وخت كښ چه قتال كول فرض كفائی وی - او كله چه نظام شرعی موجود وی نو دا سرايا به هم دَ امير المؤمنين په امر سره اوځی -

اَوِ انۡفِرُوۡا جَمِيۡعًا ، دَ دينه مراد غټ لښكر دے دا په هغه وخت كښ چه قتال فرض عين شی نو حرف اَوۡ دلته دَ تنويع دَ پاره دے - او دا په آيت دَ انفروا خفافاً وثقالاً سره منسوخ نه دے ځكه چه دَ هر يو دَ عمل دَ پاره جدا جدا حالت دے دا آيت صريح دليل دے چه قتال فی سبيل الله په ټولو مؤمنانو باندے په خپلو شرعی شرطونو سره فرض دے - ابن عاشور وئيلی دی چه مفسرينو دَ دے آيت دَ پاره هيڅ سبب نزول نه دے ذكر كړے نو معلومه شوه چه دا عام قانون دے او مقصد پكښ تيارى كول وو دَ فتح مكے دَ پاره ځكه چه دا دَ هجرت په شپږم كال نازل شوی دے او فتح مكه دَ دينه روستو په اتم كال باندے اوشوه -

# اَكُنْ مَّعَهُمْ شَهِيْدًا ﴿٧٢﴾

| وم | دَ | دوی | سره | حاضر ۔ |
|---|---|---|---|---|

۷۲ ۔ په دیکښې زجر دے منافقانو ته چه هغوی دَ مخکښې ذکر شوی قانون خلاف کوی ۔
وَاِنَّ مِنْكُمْ لَمَنْ لَّيُبَطِّئَنَّ ، خطاب عام مسلمانانو ته دے لیکن حسن ، مجاهد او قتاده وغیرهم وئیلی دی چه دَ دینه مراد منافقان دی په دلیل دَ دے چه دَ جهاد نه دَ روستو پاتے کیدلو باره کښې وئیلی دی چه قَدْ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَیَّ او دا قول دَ مؤمن دَ شان نه دے ۔ لیبطئن لازمی او متعدی دواړه کیدے شی نو لازمی معنیٰ دا ده چه خامخا روستو کیږی او دروند کیږی دَ وتلو دَ جهاد نه یعنی په انفروا امر باندے عمل نه کوی ۔ او متعدی معنیٰ دا ده چه روستو کوی نورو خلقو لره دَ جهاد نه ۔ قرطبی وئیلی دی چه دلته دواړه معنے جائز دی ځکه چه منافقان دواړه کارونه کوی ۔
فَاِنْ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ ، دلته دَ مصیبت نه مراد هزیمت یا قتل دے ۔
قَالَ قَدْ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَیَّ ، قرطبی وئیلی دی چه دا قول نه صادریږی مگر دَ منافق نه او خصوصًا په زمانه دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښې ۔ او دا رنگ په سوره توبه ۸۱ کښې هم دا منافقان دَ جهاد نه پاتے کیدلو ته انعام وائی او په دے باندے خوشحالی کوی ۔
اِذْ لَمْ اَكُنْ مَّعَهُمْ شَهِيْدًا ، دلته شهادت په معنیٰ دَ حضور سره دے او اذ ظرفیه یا علتیه دے ۔

وَلَئِنْ أَصَابَكُمْ فَضْلٌ مِّنَ

او كه | اورسیږي تاسو ته | فضل | دَ

اللّٰهِ لَيَقُولَنَّ كَأَنْ لَّمْ تَكُنْ

الله تعالى دَطرف نه نوخامخا وائي دے | گويا | كه | نه | وۀ

بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ مَوَدَّةٌ يٰلَيْتَنِي

په مینځ ستاسو | او دَده کښ | دوستانه | هائے ارمان دے

كُنْتُ مَعَهُمْ فَأَفُوزَ فَوْزًا

چه زه وے | دَ دوی سره | نو کامیاب شوے په وے په کامیابۍ

عَظِيمًا ﴿۷۳﴾

لوئے | سره -

پ۷۳ :- دا دَ دوی دويم حال ذكر كوي - وَلَئِنْ أَصَابَكُمْ فَضْلٌ مِّنَ اللّٰهِ ، دَ فَضْلٌ نه مراد فتح او غنيمت دے -
لَيَقُولَنَّ كَأَنْ لَّمْ تَكُنْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ مَوَدَّةٌ ، دَدے جملے په باره کښ دَ مفسرينو مختلف اقوال دي - اول قول ، دا جمله معترضه ده محل دَ اعراب ورله نشته - او په دیکښ دوه احتمالات دي اول دا متعلق دے دَ اذ لم اكن معهم شهيدا سره يعنى دغه قول دَ دے وجے نه كوي چه گويا كه ستاسو او دَده په مينځ كښ هيڅ دوستانه نشته - دا قول دَ زجاج او ماتريدي دے ليكن امام راغب په دے باندے دَ عربيت په لحاظ سره سخت رد كړے دے -
دويم احتمال دا چه دا جمله معترضه ده په مينځ دَ قول او دَ مفعول (مقوله) كښ يعنى يا ليتنى كنت معهم مقوله ده او كان لم تكن جمله معترضه ده - دا قول دَ زمخشري وغيره دے -
دويم قول دا جمله مفعول دے دَ ليقولن دَ پاره نو مقوله دوه جملے دي يو جمله دَ تشبيه او دويمه دَ تمنا

فَلْيُقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

نو جنګ دِ کوي په لار دَ الله تعالیٰ کښ

الَّذِيْنَ يَشْرُوْنَ الْحَيٰوةَ

هغه کسان چه خرڅوي (قربان کوي) ژوند

الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ ط وَمَنْ يُّقَاتِلْ

دنیوي په آخرت باندې او چا چه جنګ اوکړو

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيُقْتَلْ اَوْ

په لار دَ الله تعالیٰ کښ او اووژلے شي یا

او مقصد ئې دا دے چه دا جمله مقوله ده دَ هغه منافقانو چه نور منافقان ئې دَ جهاد نه منع کول او پخپله وتلی وو نو دوی ته ئې وئیل چه ستاسو او دَ دے نبي په مینځ کښ هیڅ مؤدت نه وو چه تاسو ئې دَ غنیمت په وخت کښ پریخودلئ. نو ضمیر دَ بینه نبي صلی الله علیه وسلم ته راجع دے دا قول دَ فارسي او مقاتل دے۔
دریم قول دا دے چه دا جمله په محل دَ نصب کښ حال ده دَ ضمیر دَ لیقولن نه یعنې دوی دا روستو قول کوي په داسے حال کښ چه ګویا که ستاسو او دَ دغه منافق په مینځ کښ معرفت هم نیشته مؤدت خو لرے خبره ده۔ یله توجیه زموتږ شیخ رحمه الله کړیده اګرچه په یل تفسیر کښ زما په نظر نه ده راغلے هغه دا چه دواړه مقولے دَ لیقولن دي اوله مقوله دَ ځان سره پټه ده او بینه په معنیٰ دَ بیني دے او دویمه مقوله ښکاره ده۔
یٰلَیْتَنِیْ کُنْتُ مَعَهُمْ، یا دَ نفس تنبیه دَ پاره ده منادی نه غواړي لکه دا قول دَ فارسي وغیره دے او بعضو وئیلي دي چه منادیٰ پټه ده یا هٰؤُلَآءِ۔

يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا

| زور آور شي نو زر دے چه ورته کړو مونږ هغه ته ثواب |
|---|

عَظِيْمًا ﴿۷۴﴾

| لوئے ۔ |
|---|

فَاَفُوْزَ فَوْزًا عَظِيْمًا ، دَ فوزعظیم نه مراد په غنیمت کښ برخه حاصلول دی او دا دَ منافق دنیا پرستئ ته اشاره ده یعنی جهاد کښ ئے صرف غنیمت مقصد وی۔

سلک :۔ په دے آیت کښ دریم امر سیاسی دے یعنی دَ جهاد دَپاره داسے اشخاص تیارول پکار دی چه دَ هغوی په نیت کښ پوره اخلاص وی او هیڅ دنیا پرستی پکښ نه وی۔

ربط لړ :۔ هر کله چه مخکښ ذکر شوه چه منافقان پخپله هم دَ جهاد نه روستو کیږی او نور خلق هم روستو کوی نو اوس مؤمنانو ته امر کوی چه دَ منافقانو په وسوسو سره دَجهاد نه مه روستو کیږئ۔

ربط ۲ :۔ دا رنګ مخکښ ذکر شوه چه منافقان دَجهاد نه پاتے کیدلو ته دَ الله تعالیٰ انعام وائی نو اوس فرمائی چه په جهاد کښ په هر حالت کښ اجرعظیم ملاویږی نو معلومه شوه چه جهاد ته تلل او جهاد کول انعام الٰهی دے۔

فَلْيُقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ، دَ ماقبل ربط دَ وجے نه دَ "فاء" راوړلو فائده معلومه شوه - دلته ئے مفعول نه دے ذکر کړے دَپاره دَ تعمیم دَ هغه کسانو چه هغوی دَ قتال کولو اهل دی که هغه هر قسم کافر وی۔ دا رنګ په دے ځائے کښ مقصد اهمیت دَ قتال کوونکو دَ اخلاص دے نو ځکه په صرف فاعل ذکر کولو سره ئے اکتفاء کړے ده۔

اَلَّذِيْنَ يَشْرُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ ، دلته دَ مفسرینو دوه اقوال دی۔

اول قول دا دے چه یشرون په معنیٰ دَ یبیعون دے یعنی

خرڅوي او قرباني دَ دنيا ژوند او دَ هغې مزې او خواهشات په آخرت باندې - او دَ انهايت اخلاص نيت ته اشاره ده۔
دويم قول دا دې چه يشرون په معنیٰ دَ اشتراء دې يعني ژوند دنيوي غوره کوي په آخرت باندې يعني دوي منافقان دي نو منافقانو ته ترغيب ورکوي چه منافقت پريږدئ بلکه قتال في سبيل الله اوکړئ - په ديکښ اول قول غوره دې۔

وَمَنْ يُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيُقْتَلْ اَوْ يَغْلِبْ ، په دې جمله کښ ترغيب بليغ دې قتال کولو ته يعني مقاتل دې په دوه خيزونو کښ دَ يو خيز عزم خامخا اوکړي شهادت يا فتح او تخيل دې په زړه کښ نه راولي - هرکله چه شهادت سبب دَ اجر دې نو هغه ئې مخکښ ذکر کړيدې - او يغلب ، ته مراد دَ دشمن قتلول او هغوي له شکست ورکول او غنيمت حاصلول دي۔

فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ، دا سې مضمون په حديث بخاري او مسلم کښ هم ذکر دې چه الله تعالیٰ ذمه داري اخستلې ده دَ هغه چا دَ پاره چه جهاد له اوځي - او ته اوباسي ده لره په لار دَ الله تعالیٰ کښ مگر جهاد او تصديق دَ کلمې دَ هغه نو الله تعالیٰ په دا سې شخص جنت ته داخلوي (په سبب دَ شهادت) يا په ئې خپل کور ته واپس اوگرځوي سره دَ دې چه اجر يا غنيمت په ئې حاصل کړې وي (دلته او دَ مانعت الخلو دَ پاره دې اجر او غنيمت دواړه هم حاصليدې شي) -

فائده - دا آيت او حديث دلالت کوي چه دَ شهادت او غلبې په حال کښ برابري ده ليکن غوره دا ده چه دا برابري په مطلق اجر عظيم کښ ده اگرچه په کيفيت دَ اجر کښ شهادت لوې سبب دې -

وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ

او څه عذر دے ستاسو چه جنګ نه کوئ په لار

اللّٰهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ

دَ الله تعالیٰ کښ (اود پاره دَ خلاصولو) دَ کمزورو دَ نارینو نه

وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِينَ

او زنانه او واړه بچی هغه چه

يَقُولُونَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْ هَٰذِهِ

وائی اے ربه زمونږ اوباسے مونږ دَ دے

الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا ۚ وَاجْعَلْ

کلی نه چه ظالمان دی اوسیدونکی دَ دے او مقرر کړه

لَنَا مِنْ لَدُنْكَ وَلِيًّا ۚ وَاجْعَلْ

مونږ لره دَ خپل طرف نه دوست (بچ کوونکی) او مقرر کړه

لَنَا مِنْ لَدُنْكَ نَصِيرًا ﴿۷۵﴾

مونږ لره دَ خپل طرف نه امدادی۔

۷۵:۔ په دیکښ ذکر دَ ترغیب دے قتال فی سبیل الله ته سره دَ ذکر دَ علتونو دَ قتال نه۔ نو په دے آیت کښ دوه علتونه ذکر کوی اول فی سبیل الله او دویم والمستضعفین وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ، مَا، استفهامیه دے دپاره دَ تیزی ورکولو په معنیٰ دَ انکار سره دے۔ یعنی ستاسو څه عذر نشته په پریخودلو دَ قتال کښ۔ او حال دا دے چه دَ قتال دوه علتونه موجود دی۔

اول علت فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، فِي په معنیٰ دَ لام دے او مضاف پټ دے یعنی اعلاء۔ او سَبِيلِ اللّٰهِ، په معنیٰ دَ کلمه الله دَ

یعنی دَ کلمة الله چه دین دَ توحید دے دَ غالب کولو او اوچتولو دَ پاره۔
دویم علت، وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ، دے په دیکښ دوه مشهور اقوال دی۔
اول قول، دَ ابن شهاب دے چه دا په لفظ الله باندے عطف دے یعنی سبیل المستضعفین۔ او قتال په سبیل دَ دوی کښ دا دے چه هغوی دَ قید و بند و دَ دشمنانو نه اوساتی او دَ هغوی حفاظت اوکړی۔
دویم قول، دَ مبرد او دَ زجاج دے چه مضاف پټ دے یعنی فی خلاص المستضعفین یعنی دَ دشمنانو دَ لاسونو نه خلاصول۔ او مستضعفین هغه کسان دی چه مشرکان دَ هغوی دَ کمزوری کولو هر وخت کوشش او طلب کوی یا په معنیٰ دَ ضعفاء دے او دا دلیل دے چه په قتال فی سبیل الله کښ کله مقصد دا وی چه کمزوری مؤمنان دَ کافرانو دَ تسلط نه بچ کړیشی لکه چه په دے زمانه کښ په کشمیر، فلسطین او چیچنیا وغیره ملکونو کښ دَ اکثرو مسلمانانو حال داسے دے۔ او دا په اصل کښ دفاعی جهاد دے۔
مِنَ الرِّجَالِ، مِنْ دَ بیان دَ پاره دے یعنی دوی درے جنسه اشخاص دی اول دا بالغ تاریه کسان دی لیکن معذوره یا بوډا کان دی۔ دریم وَالنِّسَاءِ، او دریم والولدان دی۔ دَ ولدان نه مراد نابالغه بچی دی لکه په حدیث دَ ابن عباس رضی الله عنهما کښ دی چه زهٔ او زما مور دَ مستضعفین نه وو۔
وَالْوِلْدَانِ، ولدان، جمع دَ ولد ده که مذکر وی او که مؤنث وی یا جمع دَ ولید ده نو مراد تریته مریان او وینزے دی لیکن اول قول غوره دے او په ذکر دَ ولدان کښ دَ دوی زیات ظلم کولو ته اشاره ده چه دا مشرکان په وړو بچو باندے هم ترس نه کوی۔

الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا ، دا صفت دے دَ المستضعفین۔
اَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا ، دَ قریه ، نه مراد مکه مکرمه ده ۔ الظَّالِمِ ، دیته صفت بحال متعلقه وئیلے شي او اَهْلُهَا یئے دَ دوه وجو نه ذکر کړو اول وجه ذکر دَ کلام دَپه حقیقت با ندے ځکه چه ظلم کول دَ اوسیدونکو صفت دے ۔ دویمه وجه ، دا ده چه په نسبت دَ ظلم کښ قریه ته دَ مکے مکرمے توهین لازمیږی ۔ او دَ ظلم نه مراد شرک او کفر کول او مؤمنانو ته قسما قسم تکلیفونه رسول دی ۔ او دَ دے صفت په تعمیم سره دا حکم دَ مکے نه غیر نورو علاقو ته هم شامل دے چه په هغے کښ داسے حالات وی ۔
وَاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا ، دَ وَلِيّ ، نه مراد داسے شخص دے چه دوی لره دَ ظالمانو دَ ظلم نه خلاص کړی او دَ دوی دَ دین او نفسونو حفاظت اوکړی یا دَ دوی دَ پاره دَ هجرت لار اسانه کړی ۔
وَاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ نَصِيْرًا ، نصرت دَ انسانانو دَ یویل سره په معنیٰ دَ مرسته او ډله کولو دے لکه چه دَ عیسیٰ علیه السلام حوارینو وئیلی وو نحن انصار الله ۔ او بعضو مفسرینو وئیلی دی چه ولیا او نصیرا کښ مصدری معنیٰ مراد ده یعنی ولایةً و نصرةً ۔ او الله تعالیٰ دَ دوی دا دُعا قبوله کړه او ورسره دَ نبی صلی الله علیه وسلم دُعا دَ قنوت نازله په طریقه هم یوځاے شوه ځکه چه په حدیث دَ بخاری کښ ذکر دی چه نبی صلی الله علیه وسلم هر کله دَ رکوع نه سر (دَ مونځ په آخر کښ) راپورته کړو نو دَ بعضے سرو (مستضعفین) دَ نجات دَ پاره دُعا غوښتله چه ولید بن الولید ، سلمه بن هشام او عیاش بن ابی ربیعه رضی الله عنهم وو او دَ کافرانو دَ پاره یئے عذاب غوښتلو (کتاب الاذان باب یهوی بالتکبیر حین یسجد) نو دا دُعا ګانے

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ
مؤمنان جنګ کوي په
سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا
لار دَ الله تعالیٰ کښې ، او کافران
يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ الطَّاغُوْتِ
جنګ کوي په لار دَ شيطان کښې
فَقَاتِلُوْٓا اَوْلِيَآءَ الشَّيْطٰنِ ۚ
نو جنګ اوکړئ دَ ملګرو دَ شيطان سره ،
اِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ كَانَ ضَعِيْفًا ﴿٧٦﴾
يقيناً مکر دَ شيطان کمزورے دے (په مقابله دَ مکر دَ الله تعالیٰ کښې).

دا سے قبولے شوے چه مکه مکرمه فتح شوه او دَ هغې والی ئې عتاب بن اسيد رضی الله عنه مقرر کړو او هغه دَ مکې دَ مؤمنانو پوره حفاظت اوکړو او مظلومان ئې بچ کړل.

۷۲ . په دے آيت کښې هم جهاد ته ترغيب دے په ذکر دَ بل علت سره چه هغه مقابله کول دی په اصل مقصد کښې يعنی دَ کافرانو مقصد دَ طاغوت کلمه اوچتول دی او دَ مؤمنانو مقصد کلمه دَ الله پورته کول دی نو مؤمنانو لره ضرور جهاد کول پکار دی.

يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ الطَّاغُوْتِ ، دَ طاغوت ، نه مراد عام دے شيطان جنی او انسی ، معبود من دون الله وی او که حاکم وی او دَ دے سبيل نه مراد هر قسم کفر او شرک او بے دينی ده.

فَقَاتِلُوْٓا اَوْلِيَآءَ الشَّيْطٰنِ ، فاء ، دَ تفريع دَ پاره ده په مخکښې مقابله باندے . اَوْلِيَآءَ ، نه مراد هغه څوک دی چه دَ کفر او شرک او ظلم دَ پاره قتال کوی او دا دليل دے چه دَ سبيل الطاغوت دَ پاره قتال او نصرت کول دا دَ شيطان سره

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ قِيلَ
آیا نه گورې هغه کسانو ته چه أوئیلې شو

لَهُمْ كُفُّوا أَيْدِيَكُمْ وَأَقِيمُوا
هغوی ته بند کړئ لاسونه خپل او پابندي کوئ

الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ ج فَلَمَّا
دَ مانځه او ورکوئ زکواة نو هر کله چه

كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ إِذَا فَرِيقٌ
فرض کړے شو په هغوی باندے جنګ نو دغه وخت یوه ډله

مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ النَّاسَ
دَ هغوی نه یره کوی دَ خلقو نه

كَخَشْيَةِ اللَّهِ أَوْ أَشَدَّ خَشْيَةً ج
پشان دَ یرے دَ الله تعالیٰ نه بلکه زیات دی په یره کښې

دوستانه کول دي۔
إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَٰنِ كَانَ ضَعِيفًا، دا دلیل دے دَ پټ کلام دَپاره یعنی دَ شیطان دَ ملکرو نصیحت یره مه کوئ ځکه چه هغه او دَ هغه دَ ملګري کمزوري دي۔ کَیْد، په اصل کښ کوشش او تدبیر ته وئیلے شي چه دَچا دَ تکلیف ورکولو دَپاره دَ حیلے په طریقه کیږی (امام رازی)۔
سوال:۔ په سوره یوسف ۲۸ کښې فرمائیلے دی چه (إِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيمٌ)۔ نو دَ زنانو کید خو دَ شیطان دَ کید نه زیات شو کیدے؟
جواب:۔ هلته دَ زنانو کید دَ نارینو دَ کید په مقابله کښ مراد دے او هغه لوے دے۔ او دلته په مقابله دَ الله تعالیٰ دَ کید کښ مراد دے یعنی دَ شیطان کید دَ الله تعالیٰ دَ کید په

وَقَالُوْا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا

او وائي چه اے زمونږ ربه ولے فرض کړو تا په مونږ باندې

الْقِتَالَ ۚ لَوْلَآ اَخَّرْتَنَآ اِلٰٓى اَجَلٍ

جنګ ولے نه روستو کولو تا مونږ نیزدې

قَرِيْبٍ ۭ قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا

پورې. او وايه مزې د دنیا

قَلِيْلٌ ۚ وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ

لږې دي او آخرت غوره دے هغه چا له

اتَّقٰى ۣ وَلَا تُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ﴿۷۷﴾

چه یریږي د الله تعالیٰ نه. او ظلم به نشي کیدے په تاسو په قدر د تار د هډوکي د کجورې

مقابله کښ کمزورے دے۔

۷۷:۔ د دے آیت نه تر ۹۱ پورے د دے حصے دویم باب دے په دیکښ د منافقانو زجرونه او د هغوی اته قبائح ذکر کوي چه هغه متعلق دي د مخالفت د رسول صلی الله علیه وسلم سره. دا قبائح تر ۸۳ پورے ذکر کیږي. بیا تشجیع (بهادري ورکول) ده په قتال باندے او د هغے آداب ذکر کوي سره د غایے د قتال نه چه هغه توحید دے تر ۸۷ پورے. بیا د منافقانو تقسیم ذکر کوي څلورو قسمونو ته (د هغه منافقانو چه د دار اسلام ته یهر وي) اول قسم هجرت نه کوونکي، دویم قسم معاهد دریم عاجز د قتال نه څلورم قسم مرکوس (وړنوتلي) په فتنه کښ. د اول او څلورم قسم سره حکم د قتال دے او د دویم او دریم سره د قتال حکم نشته.

ربط:۔ هر کله چه په قتال باندے ترغیبات ذکر شول نو اوس زجر ذکر کوي په پریخودلو د قتال سره۔

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ كُفُّوْٓا اَيْدِيَكُمْ، د دے په

سبب نزول کښې اختلاف دے ۔ بعضو مفسرینو وئیلی دی چه دا د هغه مؤمنانو په باره کښې نازل شوی دے چه د قتال د فرضیت نه روستوئې سستی اوکړه پشان د منافقانو په باره د جهاد کښې. او بعضو وئیلی دی چه دا نازل شوی دے په باره د منافقانو کښې. او دا دویم قول صحیح دے په دلیل د دے چه یَخْشَوْنَ النَّاسَ او لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا الْقِتَالَ ۔ او روستو آیتونو کښې هم د منافقانو بنکاره صفات دی ۔ قِيلَ لَهُمْ كُفُّوٓا اَيْدِيَكُمْ، دا وئیلے شوے وو ټولو مؤمنانو ته په مکه مکرمه کښې دارنګ د مدینے په اول ژوند کښې په هغه وخت چه اسباب او قوت د قتال مؤمنانو ته نه وو حاصل شوے نو په دا سے وخت کښې د دین په نورو فرائضو پابندے پابندئ سره عمل کول پکار دی د دے د پاره چه د قتال د پاره تیارشی نو د دے وجے نه ئے ورپسے ذکر کړے دے چه وَاَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ، اشاره ده چه ترڅو پورے انسان د الله تعالیٰ د حکم په بدن او په مال سره پوره تابع نه وی نو هغه جهاد هم نشی کولے ځکه چه اول جهاد د نفس دے بیا روستو جهاد د کافرانو سره دے ۔

فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ ، د قتال فرضیت مخکښې په سورة بقره کښې او په هغه مدنی سورتونو کښې ذکر دے کوم چه د سورة نساء نه مخکښې نازل شوی دی ۔

اِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُمْ ، اِذَا د مفاجات د پاره دے یعنی د دوی د دعوے د ایمان نه خو دا نه معلومیدله چه دوی به د قتال نه مخ اړوی لیکن ناڅاپه ئے دا کار اوکړو۔ لفظ فَرِيقٌ دلیل دے چه دا حکم د ټولو ایمان والو د پاره نه دے بلکه صرف د منافقانو د پاره دے ۔

يَخْشَوْنَ النَّاسَ ، د خشیت نه مراد خوف دے د قتل نه او النَّاسَ ، نه مراد کافران دی او دا خشیت صرف طبعی نه دے مراد بلکه دا د بزدلئ او منافقت د وجے نه دے نو د دے وجے نه دا یو قبیح صفت دے ۔

كَخَشْيَةِ اللّٰهِ، دَ دينه مراد خشيت دے دَ عذاب دَ الله تعالىٰ نه چه په زړه او طبيعت دَ هر بشر بلكه ټول مخلوق كښ موجود دے چه هغه يره دَ مرګ ګيا دَ نزول دَ عذاب دَ الله تعالىٰ دَ طرف نه - او په عبارت كښ تقدير دے يعنى مِثْلَ خَشْيَتِهِمْ مِّنَ اللّٰهِ - يا دَ دينه مراد خشيت دَ مؤمنانو دے دَ الله تعالىٰ نه او عبارت كښ تقدير دے يعنى مِثْلَ اَهْلِ خَشْيَةِ اللّٰهِ -
اَوْ اَشَدَّ خَشْيَةً، دَ دے تركيب دَ سورۀ بقره ښ۲ پشان دے اَوْ په معنىٰ دَ بل سره دے دَ ترقىٔ دَ پاره دے - يا په معنىٰ دَ واو سره دے يا دَ تنويع دَ پاره دے يعنى بعضے يره كوى پشان دَ يرے دَ الله تعالىٰ نه او بعضے دَ هغے نه زيا ته يره كوى.
وَقَالُوْا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا الْقِتَالَ، قرطبى وئيلى دى چه معاذ الله چه داسے قول دَ يو صحابى نه صادر شى (او ورپسے ئے دَ هغوى صفات حسنه ذكر كړے دى) - نو دا صفت قبيحه دَ منافقانو دے چه په الله تعالىٰ باندے اعتراض كوى -
لَوْلَآ اَخَّرْتَنَآ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ، دا دواړه اقوال دَ دوى مستقل او جدا جدا دى دَ دے وجه نه ئے په عطف سره ذكر نه كړل - او دَ اجل قريب نه مراد نيټه دَ مرګ ده - زمخشرى وئيلى دى چه دَ دے جملے مقصد دَ دوى زياتوالے دے په مدت دَ كف عن القتال او مهلت طلب كول دى دَ فرضيت دَ قتال نه -
قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا قَلِيْلٌ، هر كله چه دَ دوى اعراض دَ قتال نه په سبب دَ محبت دَ دنيا سره دے نو دَ دے وجے نه الله تعالىٰ تحقير دَ دنيا او تقابل دَ دنيا او آخرت ذكر كوى.
مَتَاعُ، نه مراد دَ دنيا ټول هغه څيزونه دى چه په هغے سره دَ دنيا فائدے حاصليږى - قَلِيْلٌ، قلت (كموالے) په اعتبار دَ فنا سره او د زر زائله كيدلو سره دے - قرطبى وئيلى دى چه قليل ورته دَ دے وجے نه اُوئيلو چه بقاء ئے نيشته او داسے په سورۀ توبه ښ۳۸ كښ هم دى -

أَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يُدْرِكْكُمُ

هر ځائے چه یئ تاسو لاندے کوی به تاسو لره

الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِىْ بُرُوْجٍ

مرګ اګر چه یئ تاسو په قلعه ګانو

مُّشَيَّدَةٍ ؕ وَاِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ

مضبوطو کښں او کله چه اورسیږی دوی ته خوشحالی

يَّقُوْلُوْا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۚ

دوی وائی دا دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دہ

وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّقُوْلُوْا

او که اورسیږی دوی ته تکلیف دوی وائی

هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِكَ ؕ قُلْ

دا ستا دَ طرف نه دے ته اُووایه

كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ

دا ټول دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دی،

وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقٰى ، آلوسی وئیلی دی چه دَ آخرت نه مراد ثواب دَ آخرت دے چه هغه په ښه اعمالو سره حاصلیږی او غټ په هغه عملونو کښں قتال فی سبیل الله دے.
خَيْرٌ ، دا په اعتبار دَ بقاء دَ نعمتونو او دَ ذَوق دَ آخرت (جنت) سره دے لکه چه په سورة نحل ۹۶ کښں دی (مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ بَاقٍ) - لِمَنِ اتَّقٰى ، یعنی دَ آخرت نعمتونه خاص په تقوٰی سره حاصلیږی. قرطبی وئیلی دی چه اتقی المعاصی (دَ ټولو ګناهونو نه ځان ساتل) کفر شرک او مخالفت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم نه

فَمَالِ هٰٓؤُلَآءِ الْقَوْمِ لَا
نو څه وجه ده دَ دے قوم چه نه دی
يَكَادُوْنَ يَفْقَهُوْنَ حَدِيْثًا ﴿۷۸﴾
نيز دے چه پوهه شی په څه خبره یا ندے۔

بچکیں لو ته شامل دے۔
وَلَا تُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ، دَ ظلم نه مراد نقصان دَ ثواب دے دَ عملونو یعنی په تقوٰی سره عملونه دَ بربادئ نه بچ پاتے کیږی۔
ف۷۷:۔ دا جمله دَ لَوْلَآ اَخَّرْتَنَا سره متعلق ده یعنی په تاخیر کښ هیڅ فائده نشته ځکه چه دَ مرګ نه خلاصے نشته۔ یا هرکله چه دَ قتال نه دَ اعراض دَپاره دوه وجے دی۔ اول حرص دَ دنیا نو دَ هغے تردید ئے اوکړو په قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا قَلِيْلٌ سره او دویمه وجه ویره دَ مرګ نه نو دَ هغے په باره کښ ئے اوفرمائیل چه (اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يُدْرِكْكُّمُ الْمَوْتُ ، هرکله چه هره وجه مستقله ده دَ دے وجے نه ئے دا دویمه جمله ده عطف کړے په اوله جمله باندے۔ دا رنګ په صحیح حدیث کښ دَ ترک القتال وجه وهن ذکر کړے دے او دَ وهن تفسیر ئے په محبت دَ دنیا او په خوف دَ موت سره ذکر کړے دے۔ په لفظ دَ "اَيْنَمَا" کښ تعمیم دَ مکانونو ذکر دے تعمیم دَ زمان ئے نه دے ذکر کړے۔ ځکه چه تعمیم دَ کون په مکانا تو کښ مستلزم دے تعمیم دَ زمانو لره او تعمیم دَ زمانے تعمیم دَ مکان لره نه دے مستلزم۔ يُدْرِكْكُّمُ، ادراک احاطے کولو او پوره راګیرولو ته وئیلے شی او دَ دے تفسیر په سورة جمعة ف۸ کښ دے۔

وَلَوْ كُنْتُمْ فِيْ بُرُوْجٍ مُّشَيَّدَةٍ ، بُرُوْجٍ ، جمع دَ برج ده په دیکښ معنٰی دَ ظهور پرته ده لکه په دے قول کښ چه (وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْاُوْلٰى ، نو بروج هم هغه قلعه ګانو ته وئیلے شی چه دَ لرے نه ښکاریږی او

دلته په دیکښې ډیر اقوال دی۔
ع۱ قلعه کانی د زمکے ع۲ په آسمانونو کښې ع۳ بروج د آسمانونو۔
ع۴ منازل د سپوږمۍ ع۵ غټ ستوری۔ لیکن اول قول غوره دے۔
مُشَيَّدَةٍ، جوړکړے شوی دی په شید (چونے) سره یا په معنیٰ د ډنګ او اوږدے سره۔ وَلَوْ كُنْتُمْ، لَوْ په معنیٰ د اِنْ سره دے یا وصلیه دے نو د دینه معلومه شوه چه د مرګ راتلل تا سوله بغیر د برجونو نه خو په طریقه اولیٰ سره آسان دی (اللباب)
وَاِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَّقُوْلُوْا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّقُوْلُوْا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِكَ، دا د منافقانو د بل قباحت ذکر کوی۔ حَسَنَةٌ عام دے سلامتیا، امن او فراخ کالی، خوشحالی، فتح، نعمت او غنا ټولو ته شامل دے۔ او سَيِّئَةٌ هم عام دے مرضونو، قحط، یره، ګرانی، غمونه او سختئ او د ملګرو قتل او شکست او فقیری وغیره۔ هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ، الله تعالیٰ ته نسبت په طریقه د شکر سره نه دے بلکه نفی د اثر د اتباع رسول مقصد ده یعنی دوی وائی چه د دے رسول د راتللو او د ده د تابعدارئ کولو په برکت سره دا حسنه نه ده بلکه صرف د الله تعالیٰ د طرف نه ده۔ يَقُوْلُوْا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِكَ، یعنی ستا د سپیره والی د وجے نه ده لکه چه قوم د موسیٰ علیه السلام وئیلی وو چه په سورة اعراف ۱۳۱ کښې ذکر دی او قوم د صالح علیه السلام د غسے وئیلی وو چه په سورة نمل ۴۷ کښې یا مراد دا چه ستا د بے تدبیرئ د وجے نه دے یعنی دوی وئیل چه دا رسول په تدبیر او سیاست باندے نه پوهیږی نو ځکه په موږ باندے شکست او بدحالی راځی۔
قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ، دا رد دے د دوی په باطله عقیده باندے او دا ارشاد کول دی حق خبره ده چه نعمت او مصیبت ټول د الله تعالیٰ د طرف نه په اعتبار د خلق او یا ایجاد سره او په اعتبار د قضاء او قدر سره دی او دا اجمالی جواب دے۔
فَمَالِ هٰٓؤُلَآءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُوْنَ يَفْقَهُوْنَ حَدِيْثًا، په دیکښې هم د منافقانو بل خصلت ذکر کوی۔ دا کلام په

مقام دَ تعجب کښې دے چه نسبت دَ ټولو کارونو الله تعالیٰ ته خو بالکل ښکاره خبره ده او دوی په دے یاندے هم نه پوهیږی دَ ډیر جهل دَ وجے نه - او په دے جمله کښې ډیره مبالغه ده په بیان دَ جهل دَ دوی کښې - اول دا چه نفی دَ نیز دیکت دَ پوهے ځکه کړیده یعنی پوهیدل خو دَ دوی دَ شان نه ډیره لرے خبره ده دوی خو پوهیدلو ته نیزدے هم نه دی یعنی هیڅ استعداد دَ فقاهت پکښې نشته - دویم دا چه فما لهولاء استفهام دَ علت دے او مستلزم دے وجود دَ مقابل لره یعنی دَ نیزدیکت دَ فقاهت دَ دوی هیڅ سبب نشته۔

حدیثاً، اګرچه نکره ده دَ پاره دَ مبالغے لیکن مراد تر ینه خبر دَ دین دے چه نازل شویدے دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه نو قرآن او احادیثو دواړو ته شامل دے - یا دَ دینه مراد دغه مخکښې خبره ده چه هر څه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دی او حوادث دَ زمانے هم دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دی او دوی دَ هغے فاعل حقیقی نه پیژنی - او فقه عمیق فهم ته وئیلی شی چه په هغے سره دَ حکمتونو راویستل کیږی دَ کتاب الله او سنت رسول صلی الله علیه وسلم نه دَ دے وجے نه فقه اجتهاد ته او فقیه مجتهد ته وئیلے شی - او مقصود په دین کښې تفقه ده په دلیل دَ سورۀ توبه ۱۲۲ سره او دا دلیل دے چه منافق شخص کښې ظاهری علم او فهم راتلے شی لیکن تفقه پکښې نه راځی -

فائده له :- نفی دَ فقاهت دَ منافقانو نه په ډیرو آیاتونو کښې ده لکه سورۀ توبه ۸۱، ۸۷، ۱۲۷، سورۀ فتح ۱۵، سورۀ حشر ۱۳، سورۀ منافقون ۷، ۳ - او دا رنګ نفی دَ فقاهت دَ عامو کافرانو نه په سورۀ انعام ۲۵، ۶۵، سورۀ اعراف ۱۷۹، سورۀ انفال ۶۵، سورۀ اسراء ۴۶ او سورۀ کهف ۵۷ - او دَ قرآن کریم دَ آیتونو تفصیل دَ فقاهت دَ حصول دَ پاره دے لکه سورۀ انعام ۹۸ کښې دی -

فائده ۲ :- لفظ حدیث په قرآن کریم کښې ډیر ۲۳ ویشت کرته

مَآ اَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ
هغه چه اورسیده تاته خه خوشحالی

فَمِنَ اللّٰهِ ز وَمَآ اَصَابَكَ مِنْ
نو دا دَ فضل دَ الله نه ده او هغه چه اورسیده تاته خه

سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِكَ ط
خه تکلیف نو دا دَ (روح دَ غلطئ) ستا نه دے،

وَاَرْسَلْنٰكَ لِلنَّاسِ رَسُوْلًا ط
لیږلے یُے موږ، ته خلقو ته رسول

وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا (۷۹)
او پوره دے الله تعالیٰ حاضر ناظر۔

راغلی دے۔ حدیث هغه خبرے ته وئیلے شی چه هغه نقل کړے شویوی۔ نو کله مطلق خبرو ته وئیلے شی لکه په سورة نساء ۱۴۰ اوسورة انعام ۶۸، سورة لقمان ۶ او سورة احزاب ۵۳۔ اوکله قصے ته وئیلے شی لکه سوره طه ۹، سوره ذاریات ۲۴ اوسورة بروج ۱۷ کښ۔ اوکله دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم خبرے ته وئیلے شی لکه سورة تحریم ۳ کښ او اکثر قرآن ته او وحی دَ الله تعالیٰ ته وئیلے شی چه هغه په ډیرو سورتونو کښ ذکر دے لکه سورة اعراف ۱۸۵، سورة کهف ۶، سورة زمر ۲۳، سوره جاثیه ۶، سورة نجم ۵۹، سورة واقعه ۸۱، سورة مرسلات ۵۰، سورة نساء ۸۷ اوسورة یوسف ۱۱۱ او احادیث په صیغه دَ جمع سره پنځه کرته ذکر دی۔

۷۹:۔ په دے خطاب کښ دوه اقوال دی اول دا چه دا خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته لیکن مراد تری امت دے او دا سے په ډیرو آیاتونو کښ شته دے۔ دویم

قول دا دے چه دا خطاب عام دے هر انسان ته سیوا دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه او معنیٰ یٔے دا ده چه (مَآ اَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ)، دَ الله تعالیٰ دَ فضل دَ وجے نه ده په هغه باندے څه حق واجبه نشته۔

وَمَآ اَصَابَكَ مِنْ سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِكَ، دا دَ وجے دَ گناه ستا نه او نفس، نه مراد نفس اماره بالسوء دے۔

سوال:۔ په مخکښ آیت کښ دا سے قول دَ منافقانو رد کړے وو او وئیلے وو چه دا قول دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دی او اوس په دے آیت کښ الله تعالیٰ ثابت کړه چه ها سیئه دَ انسان دَ نفس دَ وجے نه ده؟

جواب ۱:۔ هلته من عندك کښ مقصد دَ منافقانو سپیړوالے دَ نبی صلی الله علیه وسلم وو نو هغه نسبت کفر وو او نسبت الله تعالیٰ ته دَ هر څیز په طریقه دَ خلق او دَ تقدیر سره وو۔ او دلته نسبت دَ سیئه انسان ته په سبب ظاهری سره دے چه هغه گناهونه دی او دا سے په سورۃ شوری ۳۰ کښ هم دی۔

جواب ۲:۔ په ما اصابك من سیئة کښ استفهام پټ دے او استفهام انکاری دے۔

جواب ۳:۔ دَ دے آیت په سر کښ لفظ يَقُوْلُوْنَ پټ دے او دا تفصیل دے دَ عدم فقاهت۔

وَاَرْسَلْنٰكَ لِلنَّاسِ رَسُوْلًا، په دے جمله کښ مقصد عظمت شان او عموم بعثت دَ رسول صلی الله علیه وسلم دے دَ پاره دَ رد په منافقانو چه رسول صلی الله علیه وسلم ته دَ سپیره والی نسبت کوی او په دیکښ رد دے په هغه چا باندے چه عقیده لری دَ اختصاص دَ رسالت دَ رسول صلی الله علیه وسلم په صرف عربو پورے۔

وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا، دا هم رد دے په منافقانو او په نورو منکرینو دَ رسالت دَ نبی صلی الله علیه وسلم باندے چه الله تعالیٰ پوره دے په شهادت کولو په رسالت او په صدق دَ دے

مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ

چا چه اومنلو حکم دَ رسول نو یقینًا

اَطَاعَ اللّٰهَ ۚ وَمَنْ تَوَلّٰى فَمَا

حکم ئې اومنلو دَ الله تعالیٰ او چاچه مخ اوګرځوو نو نه ئې

اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ۝۸۰

لیږلے مونږ ته په دوی باندے ساتنه کوونکے۔

رسول باندے نو که نور خلق وربانده ایمان راوړی او که نه راوړی۔ او شهادت دَ هغه په رسالت باندے په ډیرو آیاتونو کښ ذکر دے لکه په سوره انعام ۱۹، سوره رعد ۴۳، سوره اسراء ۹۶، سوره عنکبوت ۵۲، سوره احقاف ۸ او فتح ۲۸۔

۸۰:۔ په مخکښ آیت کښ اثبات وو دَ رسالت دَ رسول صلی الله علیه وسلم نو په دے آیت کښ استحکام دَ رسالت دَ هغه دے او ذکر دَ حق دَ رسالت دَ هغه دے چه هغه اطاعت دَ هغه دے۔

مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ ، دَ دے وجه دا ده چه اطاعت دَ رسول دَ هغه دَ رسالت دَ وجے نه دے او خبره دَ قاصد (رسول) خبره دَ مُرْسِل وی چه هغه الله تعالیٰ دے او بل تعبیر دا دے چه رسول هره خبره چه کوی نو په وحی دَ الله تعالیٰ سره کوی په دلیل دَ (مَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْیٌ يُّوْحٰى) سره۔ او وحی خو حکم دَ الله تعالیٰ دے۔ او په دے وجوهو سره اطاعت دَ الله تعالیٰ اطاعت دَ رسول نشی کیدے دَ دے وجے نه دا سے ئې نه دی وئیلی چه (وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ فَقَدْ اَطَاعَ الرَّسُوْلَ)۔ او لفظ رسول کښ اشاره ده چه دا شان دَ الله تعالیٰ دَ هر یو رسول دے او دا رنګ لفظ

وَيَقُولُونَ طَاعَةٌ ۡ فَإِذَا بَرَزُوا

او دوی وائی زمونږ کار ستا خبره منل دی نو کله چه دوی اوځی

مِنْ عِنْدِكَ بَيَّتَ طَائِفَةٌ

ستا د خوا نه جرګه کوی یوه ډله

مِّنْهُمْ غَيْرَ الَّذِي تَقُولُ ۖ

د دوی نه سیوا د هغې نه چه وئیلې وی دوی،

وَاللَّهُ يَكْتُبُ مَا يُبَيِّتُونَ ۖ

او الله تعالیٰ لیکی هغه چه دوی څه جرګې کوی،

فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى

نو مخ واړوه د دوی نه او ځان سپاره په

اللَّهِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا ﴿٨١﴾

الله تعالیٰ باندے، او پوره دے الله تعالیٰ ذمه وار د کارونو۔

رسول کښ علت د دے حکم ته اشاره ده۔
وَمَنْ تَوَلَّىٰ فَمَا أَرْسَلْنَاكَ ، د مَنْ ، جزاء پټه ده یعنی
مَنْ تَوَلَّىٰ فَأَعْرِضْ عَنْهُ په قرینه د سورة نجم ۲۹ سره۔
او فَمَا أَرْسَلْنَاكَ علت دے د جزاء۔
عَلَيْهِمْ حَفِيظًا ، حفاظت کوونکے د عملونو د دوی او حساب
کوونکے (قرطبی)۔ حَافِظًا ځکه ته دی وئیلی ځکه چه نفس
حفاظت کښ تبلیغ د احکامو داخل دے ځکه چه په هغې
سره بچ کول کیږی د ګناهونو نه او د غضب د الله تعالیٰ
نه، نو هغه صفت د رسول کیدیشی۔ او نفی د حفاظت د
نبی صلی الله علیه وسلم نه د قتال سره منافی نه ده۔ د دے
وجے دا آیت په آیت د قتال سره نه دے منسوخ۔
۸۱ :- په دیکښ د منافقانو نور قبائح ذکر کوی۔

طَاعَةٌ، دَ دے مبتداء پټه ده یعنی اَمْرُنَا وَشَاْنُنَا طَاعَةٌ- یا دَ
دے خبر پټ دے یعنی منا طاعه- او په دیکښ عبارت پټ دے
یعنی اِذَا كَانُوْا عِنْدَكَ يَقُوْلُوْنَ یعنی هرکله چه دوی ستا په
خوا کښ وی نو داسے وائی-
فَاِذَا بَرَزُوْا مِنْ عِنْدِكَ بَيَّتَ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ، یعنی چه اووځی
ستا دَ مجلس نه- بَيَّتَ، قرطبی او نورو مفسرینو دَ دے ډیرے
معنے لیکلے دی لکه دروغ جوړول او دَ هغے خلاف خبره کول، بدلول
او تحریف کول او دَ شپے جرګے کول- او دَ دے معنی تائید دَ
دے سورت په سـ۱۰۸ کښ دے- طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ، په دیکښ
اشاره ده چه یوه بله طائفه دَ مخلص ایمان والو ده چه هغوی
دَ رسول صلی الله علیه وسلم دَ طاعت نه هیڅ خلاف نه کوی-
غَيْرَ الَّذِيْ تَقُوْلُ، په تقول کښ دوه اقوال دی- اول دا
چه دا صیغه دَ مخاطب ده او خطاب دے نبی صلی الله علیه
وسلّم ته او مراد او امر او نواهی دَ رسول صلی الله علیه وسلم
او سنت دَ هغه دے او دَ غیر نه مراد دَ سنت دَ نبی صلی الله
علیه وسلّم نه خلاف خبرے دی چه هغه کفر شرک بدعات
او فسق وفجور دی-
دویم قول دا دے چه تقول صیغه دَ مؤنث غائب ده ضمیر
پکښ طائفه ته راجع دے او قول دَ هغوی مخکښ ذکر شو
په طاعه سره او غیر دَ هغے نه معصیت دے-
وَاللّٰهُ يَكْتُبُ مَا يُبَيِّتُوْنَ، يَكْتُبُ نه مراد لیکل دی په صحیفو
دَ ملائکو کښ یا مراد ترینه نازلول دی په کتاب (قرآن) کښ
دَ پاره دَ اخبار دَ نبی صلی الله علیه وسلم- قرطبی وئیلی دی
چه دا آیت دلیل دے چه صرف قول (بغیر دَ عمل نه) په
اسلام کښ هیڅ فائده نه ورکوی-
فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ، ضحاک وئیلی دی چه دَ اعراض کولو نه
مقصد دا دے چه دَ وعظ په وخت کښ دَ دوی نوم نه
مه ذکر کوئ ګنی نو دشمنی به شروع کړی- ابوحیان وئیلی دی

أَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ ۭ وَلَوْ
آیا نو دوی سوچ نه کوی په قرآن کښې، او که
كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ
وے قرآن د طرف د غیر الله نه
لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا ﴿۸۲﴾
خامخا موندلے به وو دوی په دغې کښې غلطی ډیره۔

چه په زړه کښې هم د دوی نه د بدل اخستلو سوچ مه کوه۔
وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ، دلته د امر نه مراد دوام د توکل علی الله دے او مقصد دا دے چه الله تعالیٰ به تا لره د دوی د شر نه بچ کوی نو په دغه باندے ځان اوسپاره۔ او دا آداب د تولو منافقانو سره په هر وخت کښې استعمالیږی نو دا د قتال په آیتونو سره منسوخ نه دی۔
وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا، دا علت دے د پاره د تخصیص د توکل په الله تعالیٰ پورے۔
۸۲: ربط له :- آلوسی وئیلی دی چه گویا دا سوال وجواب دی هرکله چه مخکښې د نبی صلی الله علیه وسلم په صدق باندے شهادت د الله تعالیٰ ذکر شو نو سوال پیدا شو چه د الله تعالیٰ شهادت څنګه معلومیږی نو او وئیلے شو چه أَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ.... یعنی په تدبر د قرآن سره صدق د دے نبی معلومیږی ځکه چه صدق د قرآن مستلزم دے صدق د دے رسول لره۔
ربط ۲ :- هرکله چه د منافقانو د قباحتو نه معلومه شوه چه هغوی د دے قرآن او رسول صدق نه منی نو اوس دعوت ورکوی تدبر کولو ته په هغه دلیلونو کښې چه د هغه په صدق باندے دلالت کوی۔
أَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ..... آه، په دے جمله کښې زجر دے منافقانو ته او د هغوی یو قباحت ذکر کوی چه دوی په قرآن کښې

کښې تدبر نه کوي ـ داسې ئې نه دي وئيلي چه أَفَلَا يَقْرَءُونَ وَيَتْلُونَ ځکه چه منافقان خو دَ قرآن قراءت او تلاوت کوي لکه چه په حديث خوارج کښې راغلي دي (يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ) قرآن به دوي لولي ليکن دَ مرونه به ئې نه پورے وځي ـ نو اصل مقصد په قرآن کښې تدبر او تفکر کول دي او داسې په سورة محمد ۲۴ کښې دَ منافقانو په صفت کښې او په سورة مؤمنون ۶۸ کښې دَ مشرکانو په صفت کښې ذکر دي ـ قرطبي وئيلي دي چه دا دليلونه دي چه په قرآن کښې تدبر واجب دے دَ دے دَ پاره چه دَ هغے معنے او مقصدونه او پيژنې ـ او دَ هغه چا قول فاسد دے چه وئيلے دي چه اکتفاء به کيديشي په تفسير منقول (دَ نبي صلى الله عليه وسلم نه) باندے فقط ـ

ابوحيان وئيلي دي چه دغه قول دَ روافضو دے ـ او زه وايم چه تفسير په نقل سره مخکښې دے او په تدبر سره دَ هغے نه روستو دے ليکن ضروري دواړه دي ـ او قرطبي زمخشري وغيره وئيلي دي چه دا دليل دے چه نظر او استدلال کول واجب دي او تقليد باطل دے او ديني معارف حاصلول ضروري دي او قياس صحيح دے ليکن آلوسي وئيلي دي چه په قياس اصولي او اصطلاحي باندے دا آيت دلالت نه کوي ـ افلا ، فاء عاطفه ده مخکښې معطوف عليه پټ دے أَيَشُكُّونَ فِي شَهَادَةِ اللَّهِ فَلَا يَتَدَبَّرُونَ (آيا دوي شک کوي په صدق دَ دے رسول کښې او تدبر نه کوي) يا أَيُعْرِضُونَ عَنِ الْقُرْآنِ فَلَا يَتَدَبَّرُونَ (آيا دوي مخ اړوي دَ رسول او قرآن نه او تدبر نه کوي) ـ تدبر تأمل او فکر کول دي په عاقبت دَ امر کښې په طريقه دَ نظر کولو په اجزاؤ دَ څيز کښې او دَ هغے په اسبابو او آثارو وغيره کښې ـ نو په تدبر دَ قرآن کښې اول دَ هغے دَ معانيو علم داخل دے ـ

الْقُرْآنَ ، ابن عاشور وئيلي دي چه تدبر دَ قرآن په دوه

قسمه سره دے اول دا چه دَ آیتونو په خپلو مقاصدو شرعیه باندے دلالت تفصیلیه کولو کښ تامل او فکر کوی او په هغے کښ احکام او حکمتونه او لطائف الٰهیه پیژندل۔ دویم قسم په دلالت اجمالیه دَ قرآن په اعتبار دَ فصاحت او بلاغت سره فکر کول چه دا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نازل شوے رشتینے کتاب دے۔ لیکن سوق دَ آیتونو دَ اول قسم په ترجیح باندے دلالت کوی۔ یعنی که چرے دے خلقو (منافقانو) دَ قرآن په هدایاتو باندے پوره فکر اوکړو نو دوی به خیر عظیم حاصل کړی او دَ نفاق نه به هم بچ شی۔

فائده:۔ دَ علماؤ اختلاف دے چه دَ قرآن کریم تلاوت بغیر دَ تدبر او فکر نه اجر او ثواب لری او کنه۔ دَ دے څه تفصیل ما دَ کتاب تنشیط الاذهان په مقدمه کښ لیکلے دے هغه هلته اوګورئ۔ او زما په نیز راجح دا ده چه کوم شخص صرف په تلاوت دَ قرآن باندے اکتفاء کوی او تدبر ته هیڅ ضرورت نه ګنړی نو دا سبب دَ ثواب نه دے ها که تلاوت کوی او فی الحال تدبر نشی کولے او اراده دَ تدبر او دَ فهم او دَ معنیٰ زده کولو لری او صرف تلاوت کافی نه ګنړی نو دَ ده مجرد تلاوت سبب دَ ثواب کیدے شی۔

وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ، په دے جمله کښ دوه احتمالات دی اول دا چه دا عطف دے په مخکښ جمله استفهامیه باندے یعنی اوله جمله کښ ترغیب ورکړے شو په عام تدبر باندے نو اوس دَ عام نه روستو بوجزئی دَ جزئیاتو دَ تدبر نه ذکر کوی دَ پاره دَ ثبوت دَ صدق دَ قرآن او دا ذکر دَ خاص دے روستو دَ عام نه دَ وجے دَ اهتمام دَ دے خاص (جزئی) نه۔ دویم احتمال دا دے چه دا ټوله جمله په محل دَ حال کښ ده دَ القرآن نه او قید دے دَ تدبر دَ پاره یعنی آیا دوی تدبر نه کوی په عدم وجود دَ اختلاف کښ نو پوهه به شی چه دا قرآن دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دے۔ لیکن په

دیکښې اول احتمال غوره دے دَ دے وجے نه دَ دے پشان آیت سورة محمد ۲۴ کښې هم دَاوَدا قید یئے نه دے ذکر کړے لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا ، فِيْهِ، ضمير قرآن ته راجع دے ابوحیان وئیلی دی چه دا حجت نظری دے او وجه دَ ملازمې دا ده چه څوک اوږد کلام کوی او ډیره زمانه په هغے باندے تیره شی نو په دغه کلام کښې ضرور اختلاف راځی یا په وصف کښې ریه فرق سره په درجاتو دَ فصاحت او بلاغت کښې بعضے اعلی فصیح بلیغ وی او بعضے درمیانه وی او بعضے بالکل ساقط کلام وی) یا په معنیٰ کښې په تناقض دَ خبرونو سره یا په خلاف دَ مخبرعنه (واقع) سره چه هغے ته کذب یا خطائی وئیلے شی یا یئے مقابله ممکنه وی - او هرچه قرآن کریم دے نو په هغے کښې هیڅ قسم لفظی یا معنوی مخالفت کذب او خطا او غلطی وغیره نه راځی او نشته دے - ابن عطیه وئیلی دی که چاته په قرآن کښې څه شک شبه یا گمان دَ اختلاف پیدا شی نو لازم ده چه په خپل نظر او پوهه باندے دِ تهمت اولگوی او دَ عالم دَ قرآن نه دِ تپوس اوکړی او ځان دِ پوهه کړی - او زجاج وئیلی دی چه فِيْهِ ضمیر خبرونو ته راجع دے چه دَ منافقانو په باره کښې وو - په دے جمله کښې بَيَّتَ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ ، غَيْرَ الَّذِيْ تَقُوْلُ او نورې پټ خبرونه دی چه په دیکښې هیڅ خبر دروغ نه دے نو معلومه شوه چه دا کلام دَ عالم الغیب ذات دے او هغه الله تعالی دے.

سوال :- دَ قرآن کریم په الفاظو کښې دَ قراءاتو اختلاف ډیر دے دارنگ په معانیو باندے دلالتونو کښې اختلاف دے عبارت النص ، اشارة النص ، دلالت النص او اقتضاء النص وغیره مختلف طریقے دی ؟

جواب :- قرطبی وئیلی دی چه دَ اختلاف نه مراد تناقض او تفاوت دے یا هغه دے چه مخکښې دَ ابوحیان په قول کښې ذکر شو - او ابوبکر جصاص وئیلی دی چه اختلاف درے

قسمه دے۔ اول اختلاف تناقض چه په یو قول سره هغه حکم ثابت شي چه هغه نقیض او مقابل وي د بل۔ دویم اختلاف تفاوت دے چه یو ډیر فصیح او بلیغ وي او بل نازل او ناقص کلام وي۔ دریم اختلاف تلاؤم دے یعني چه ټول کلام په حسن او صدق کښ د یو بل سره مناسب وي لکه چه اختلاف د قراءاتو دے چه اصل حسن د کلام او مقصد ته نقصان نه رسوي نو دلته مراد اول دواړه قسمونه دي چه تناقض او تفاوت پکښ نشته او د دینه په خطائي او غلطۍ سره تعبیر کیدې شي۔ او دا دلیل دے چه ما سیوا د قرآن کریم نه په هر کتاب کښ خصوصًا هغه کتاب چه د هغې په تصنیف بانند ډیر وخت اولګي او لوے وي ضرور غلطي تناقض او تفاوت وي او دا بداهتًا ثابت ده۔ قاسمي وئیلي دي چه په دے آیت کښ عند ردے د مصنفینو د کتابونو د پاره چه د هغوی نه په تناقض او اختلاف واقع کیږي ځکه چه د خطائي نه سلامتیا د الله تعالیٰ د کتاب خصوصیت دے۔

سوال :- لفظ د کثیرا خو دے خبرے لره مستلزم دے چه لږ اختلاف پکښ شته ؟

جواب ۱ :- ابن عاشور وئیلي دي چه د کثیرًا دا قید په جانب د ممتنع کښ دے دے (په لفظ د لو سره) نو په جانب د اثبات کښ نفي د اصل اختلاف فائده کوي یعني دا کتاب د الله تعالیٰ د طرف نه دے نو په دیکښ هیڅ اختلاف نشته۔

جواب ۲ :- صاحب اللباب وئیلي دي (یعني دا قید احترازي نه دے) بلکه قرآن کریم لوے کتاب دے او په ډیر اقسامو د علومو مشتمل دے نو که بالفرض په دیکښ غلطۍ راتلې نو ډیرے به وي نو هر کله چه یوه غلطي پکښ هم نشته نو معلومه شوه چه دا کتاب د الله تعالیٰ دے۔

جواب ۳ :- مخکښ د اختلاف ډیر قسمونه ذکر شول یو په

وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ

او هر كله چه راشي دوى ته خبر دَ امن

اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ ؕ وَلَوْ

يا دَ يرے خور دى هغه ، او كه

رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَاِلٰٓى اُولِى

رسولے وے دوى هغه خبر رسول ته او پوهه

الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ

خلقو ته دَ دوى ته خامخا پوهه شوے به وے په دے هغه كسان

يَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ؕ وَلَوْلَا

چه معلوموى هغے لره دَدوىته ، او كه نه وے

فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ

فضل دَ الله تعالىٰ په تاسو باندے او رحمت دَ هغه

لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطٰنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۸۳﴾

خامخا تابعدارى به كړے وے تاسو دَ شيطان مگر لږ كسان ۔

فصاحت او بلاغت كښ بل په صدق او عدم صدق كښ بل په صحيح او فاسده معنىٰ كښ بل په تناقض كښ او بل په تفاوت كښ وغيره نو دا ډير اقسام دَ اختلاف دى او دَ دے نه يو هم نيشته نو كثيرًا ئے دَ دے وجے نه وئيلے دے۔

۸۳ :۔ په دے آيت كښ دَ منافقانو بل قباحت ذكر كوى يعنى بغير دَ تحقيق نه يو خبر خورول۔

ربط لهٔ :۔ آلوسى وئيلى دى چه په دے آيت كښ جواب دَ سوال دے چه پيدا كيږى دَ لوجدوا فيه اختلافا كثيرًا نه۔ هغه دا دے چه منافقان او بعضے كمزورى فهم والا مؤمنان

دَ نبي صلی الله علیه وسلم ته یو خبر واوري چه په هغې کښ څه شرطونه او قیودات وي لیکن دا خلق یې غیر مشروط اشاعت اوکړي نو هغه دَ واقع نه خلاف شي - نو سوال پیدا شو چه دا خو په وحی کښ اختلاف راغئ نو په دے آیت کښ جواب کوي - حاصل دَ جواب دا دے چه دَ یو خبر په اشاعت کښ دَ هغې په ټولو شرطونو او قیوداتو باندے تحقیق پکار دے -
ربط ۲ :- دا معطوف دے په يَقُولُونَ طَاعَةٌ باندے او په مینځ کښ جمله معترضه ده یعني دوی خو دَ طاعت دَ رسول اقرار کوي لیکن سره دَ دینه په خبرونو خورولو کښ هغه طرف ته رجوع نه کوي -
وَإِذَا جَاءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ ، دَ ابن عباس رضي الله عنهما روایت دے چه نبي صلی الله علیه وسلم به هر کله یو سریه اولیږله او هغه به غالبه شوه په دشمن باندے یا به مغلوبه شوه نو دے منافقانو به بغیر دَ تحقیق نه دا خبر مشهور کړو او دَ نبي صلی الله علیه وسلم اخبار ته به یې انتظار نه کولو نو دا آیت نازل شو - او بعضے مفسرینو په دیکښ دَ نبي صلی الله علیه وسلم دَ طلاق خبر هم ذکر کړے دے چه هغه هم خور کړے شوے وو او حال دا چه هغه طلاق نه وو ورکړے -
دَ الْأَمْنِ ، نه مراد کامیابي او فتح او غنیمت حاصلول دَ سریے دَ مؤمنانو دي او خَوْفِ ، نه مراد په سریے کښ ناکامي او مغلوب کیدل دي - نو منافقانو به دَ امن په خبر خورولو کښ دَ واقعے دَ امن تحقیر او توهین کولو دَ دے دَ پاره چه مؤمنان خوشحاله نشي او په خبر دَ خوف کښ یې مقصد یره ورکول او بد ظنه کول وو دَ مؤمنانو دَ اسلام نه -
آلوسي وئیلي دي چه په دیکښ زجر او انکار دے په خبره ذکر کولو مخکښ دَ تحقیق نه - او حدیث دَ مسلم کښ هم راغلے دي چه ( كَفَىٰ بِالْمَرْءِ كَذِبًا أَوْ إِثْمًا أَنْ يُحَدِّثَ

بِكُلِّ ما سَمِعَ ) كافي ده دَ يو شخص دَ گنهگاريدلو يا دَ دروغژن كيدلو دَ پاره دا خبره چه بيا نوى هر هغه خبره چه دَ خلقو نه ئے اوري - او رازي وئيلي دي چه په دے خبر خورولو كښ دَ فساد ډير وجوه دي -

فائده :- امام رازي او جصاص لفظ دَ امن او خوف نورو احكامو شرعيو ته عام كړيدے يعني امن كښ دَ جواز او دَ ثواب امور داخل دي او په خوف كښ دَ عدم جواز او دَ گناه امور داخل دي -

اَذَاعُوا بِهٖ ، لفظ دَ اذاعت متعدى بالواسطه او متعدى بالذات دواړه راځي او چا وئيلي دي چه دلته اذاعوا معنى دَ تحديث (خبرورکولو) لره متضمن دے نو دَ دے وجے نه متعدى كړے شو په حرف دَ باء سره - او په ضمير امر ته راجع دے .

وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ ، په ديكښ تعليم دَ ادب دے خلقوته دَ داسے حالاتو په وخت كښ چه هغه رسول الله صلى الله عليه وسلم او لويو صحابه كرامو ته رجوع كول دي دَ حقيقت حال او دَ حكم معلومولو دَ پاره - دَ رَدُّ نه مراد رسول دي دَ هغه خبر او رجوع كول دي - الرَّسُوْلِ ، كه په امن او خوف كښ معنى مشهوره خاصه وي نو دَ رسول نه مراد ذات دَ هغه دے په وخت دَ ژوند دَ هغه كښ او كه په امن او خوف كښ دَ نورو احكامو شرعيو عموم مراد شي نو بيا دَ رسول نه مراد دَ هغه په ژوند كښ دَ هغه ذات دے او روستو دَ وفات دَ هغه نه دَ هغه سنت مراد دي لكه چه په فردوه الى الله والرسول كښ ذكر شويدي -

وَاِلٰٓى اُولِى الْاَمْرِ مِنْهُمْ ، دَ دينه مراد اصحاب الراى صحابه كرام دي او اهل علم ته هم شامل دے لكه چه مخكښ تير شويدي - لفظ دَ مِنْهُمْ ، كښ اشاره ده چه صحابه كرام په دے صفت كښ يو شان نه وو بعضو په هغوى كښ كامله رائے او عقل او علم لرلو او بعضے داسے نه وو اگر چه په فضيلت دَ نفس

صحبت دَ رسول کښ ټول شریک دی۔
لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنْبِطُونَهُ مِنْهُمْ، لَعَلِمَهُ ضمير امر ته راجع دے او دَ علم نه مراد علم دَ حقیقت حال دَ دغه امر دے چه صادق دے او که نه او لائق دَ خورولو دے او که نه دے۔ يَسْتَنْبِطُونَهُ، استنباط دَ نبط نه اخستلے شوے دے وئیلے کیږی او به راویستلو ته دَ کوهی نه په اول کنستلو دَ هغے کښ نو نبط هغه خلقو ته هم وئیلے شی چه دا سے کسب او کار کوی او زمینداره خلقو ته هم وئیلے شی۔ نو په استنباط کښ راویستل دَ حکم دَ پوښے خبرے وی په خپل اجتهاد سره دَ نص نه دَ دے وجے نه مجتهد ته مستنبط او اجتهاد ته استنباط وئیلے شی۔ دلته معنیٰ دا ده چه دوی په خپل عقل او تجربے او فکر سره دَ هغه امر تن بیر را اوباسی چه دا دَ اشاعت قابل دے او که نه دے۔ او عکرمه وئیلی دی چه دَ استنباط معنیٰ حرص کول او تپوس کول دَ هغے دی او ضحاک وئیلی دی چه تتبع (تفتیش) ته وئیلے شی۔ دَ دے معنے په اعتبار سره دَ مجتهدین نه مراد صحابه کرام دی۔ او منهم صفت دے دَ الذین دَ پاره یعنی هغوی دَ جنس دَ دے خلقو نه دی او په اعتبار دَ دویمے او دریمے معنے سره مجتهدین نه صحابه کرام هم مراد دی لیکن احتمال شته چه دغه منافقان مراد شی یعنی پوهه شوی به وے په حقیقت دَ دغه خبر هغه منافقان چه هغوی دَ دے خبرے لټون او تپوسونه کوی۔ او منهم ضمیر اولی الامر ته راجع دے یعنی تپوسونه دَ اولی الامر نه کوئ (اللباب)۔
فائده :- امام رازی وئیلی دی چه دَ دے آیت نه معلومه شو وجوب دَ قول په قیاس او په اجتهاد باندے ځکه چه کوم منصوص علیه دے نو په هغے کښ خو استنباط ته حاجت نشته نو معلومه شوه چه بعضے احکام شرعیه په نصوصو کښ دننه پراته دی او دَ هغے علم په استنباط او په استدلال سره معلومیږی۔ او

دَ دے بارہ کښ ئے مزیں تفصیل ذکر کړیدے ۔ قرطبي وئیلي دي چه دا دلالت کوي په اجتهاد کولو باندے کله چه نص او اجماع نه وي۔

فائده ۲ :- آیت کښ اګرچه احتمال دَ استنباط دَ احکام شرعیه ذکر شو لیکن اصح دا ده چه دا آیت دَ حرب په امورو پورے خاص دے دَ هغے څو وجوه دي۔

اوله وجه دا چه لفظ امن او خوف جائز او ناجائز ته عام کول دَ لفظ نه لرے خبره ده دَ دے اطلاق په شرع کښ نه دے معلوم۔

دویمه وجه، دَ احکام شرعیه په باره کښ په دے سورت کښ ذکر شویدي چه فردوه الی الله والرسول هلته ئے په مقام دَ رد کښ اولي الامر نه دے ذکر کړے او دلته ئے رد الی الله نه دے ذکر کړے نو معلومه شوه چه امور محسوسه دَ جنګونو سره متعلق مراد دي۔

دریمه وجه، په دے آیت کښ ضمیرونه استعمال شویدي او هغه په تعمیم باندے دلالت نه کوي لکه چه په تفسیر ۶۲ کښ تیر شویدي۔

څلورمه وجه، دَ اصولو علماؤ وئیلي دي چه قیاس ظن فائده کوي او دَ دے آیت نه علم معلومیږي نو معلومه شوه چه دلته استنباط او قیاس په احکام شرعیه کښ نه دے مراد که په ظن باندے دَ علم اطلاق اوشي نو جائز ده۔ ها دا دلالت کوي چه الله تعالی بعض اشخاصو ته صفت دَ استنباط ورکوي لیکن په احکام شرعیه کښ دَ اجتهاد او استنباط دَ اثبات دَ پاره نور نصوص شته دے۔

سوال :- جصاص او امام رازي وئیلي دي چه دَ دے آیت نه معلومه شوه چه په عامي شخص باندے په احکام دَ حوادثو کښ دَ علماؤ تقلید واجب دے نو دَ دینه ایجاب دَ تقلید ثابت شو؟

جواب ۱ :- په آیت کښ احتمال دَ استنباط دَ احکام شرعیه او په هغے کښ تقلید کول احتمال بعیده دے لکه چه مخکښ دَ هغے وجوه ذکر شول۔

جواب ۲ :- دَ دینه په غیر منصوصه مواضعو کښ تقلید کول

معلومیږی او دغه مراد دے په حوادثو سره لیکن التزام دَ
مذهب دَیو شخص په تقلید سره ، دَ دینه او دَ بل هیڅ نص
نه نشی ثابت کیدے او محل دَ نزاع دغه التزام دے۔
وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطٰنَ اِلَّا قَلِيْلًا ،
فَضْلُ او رَحْمَت دَ الله تعالیٰ څو ډیر قسمه دے یعنی اخروی دینی
دنیوی خاص او عام - او په دے جمله کښ ترغیب دے هغه حکم
ته چه په لَوْرَدُّوْهُ الی الرسول آه کښ ذکر شو یعنی په دغه طریقے
سره فضل او رحمت دَ الله تعالیٰ حاصلیږی او په هغے سره دَ شیطان
دَ اتباع نه بچاؤ حاصلیږی۔
سوال :- الا قلیلا استثناء خو تقاضا کوی چه دا لږ کسان دَ الله
تعالیٰ فضل او رحمت ته دَ شیطان نه بچ کیدو کښ نه دی محتاج
او حال دا دے چه نصوص صریح سره ثابت دی چه بغیر دَ رحم
دَ الله تعالیٰ انبیاء علیهم السلام هم دَ شیطان نه نشی بچ کیدے؟
جواب :- صاحب اللباب دَ دے لس وجوه ذکر کړیدی - اوله وجه
چه هغه غوره هم ده - دا ده چه دَ فضل نه مراد اسلام او دَ
رحمت نه بعثت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دے او دا دَ
اتبعتم نه استثناء نه ده او دَ قلیل نه مراد دَ جاهلیت دَ زمانے موحدین
دی چه اسلام او دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ راتللو نه مخکښ
دوی ځان دَ کفر او شرک نه بچ ساتلے وو لکه قیس بن ساعده
ایادی او زید بن عمرو بن نفیل او ورقه بن نوفل او نور
کسان چه دَ عیسیٰ علیه السلام په دین باندے کلک وو دَ نبی
صلی الله علیه وسلم دَ بعثت نه مخکښ - دویمه وجه ، دا استثناء
ده دَ اذاعوا نه - دریمه وجه ، دا استثناء ده دَ فاعل دَ علمه
الذین آه نه ، څلورمه وجه ، دا استثناء ده دَ فاعل دَ لوجدوا
نه - پنځمه وجه دا استثناء ده دَ ضمیر مجرور دَ علیکم نه خو
دَ دے تاویل وجه اول ته راجع ده - شپږمه وجه دا استثناء
ده دَ مصدر نه چه دلالت کوی په هغے باندے فعل دَ اتبعتم
یعنی اتباعًا قلیلًا - دا قول دَ زمخشری دے - اوومه وجه دا چه

فَقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ لَا تُكَلَّفُ

تو جنګ کوه په لار د الله تعالیٰ ته ذمه واري نيشته په تا

اِلَّا نَفْسَكَ وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ

مګر د ځان خپل او تيزي ورکوه مؤمنانو ته

عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّكُفَّ بَاْسَ الَّذِيْنَ

اميد دے چه الله تعالیٰ به بند کړي جنګ د کافرانو

كَفَرُوْا ؕ وَاللّٰهُ اَشَدُّ بَاْسًا

او الله تعالیٰ سخت دے په جنګ کښ

دا استثناء ده د يستنبطونه نه او د دے تاويل د دريے وجے پشان دے - تهمه وجه د قليلا نه مراد عدم دے کله قلت په معنیٰ د عدم سره راځي - دا هم ابن عطيه او طبري ذکر کړيدے. لسمه وجه لا تبعتم کښ د ټولو امتونو ټولو مسلمانانو ته خطاب دے او د قليل نه مراد خاص د محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم امت دے - ليکن دا قول ضعيف دے - په اوله وجه کښ دوه توجيهات نور دی چه هغه ابومسلم اصفهاني ذکر کړي دی - اول دا چه فضل او رحمت نه پرله پسے نعمتونه او امداد الٰهي مراد دے او خطاب دے منافقانو ته يعني دا منافقان د پرله پسے نعمتونو (نصرت او فتح) د وجے نه ظاهرًا د شيطان اتباع نه کوی او الا قليلا کښ صحيح مخلص مؤمنان مراد دی چه د هغوی په تيز اعتبار د دليلونو د حقانيت د اسلام لره دے که فتح او نصرت وی او که نه وی - دويمه توجيه دا ده چه د الا قليلا نه نابالغ مراد دی او استثناء منقطع ده - ليکن په ټولو وجوهو کښ اوله وجه په اوله توجيه سره غوره او بے تکليفه ده -

وَأَشَدُّ تَنكِيلًا ﴿٨٤﴾

او سخت دے په سزا ورکولو کښې.

ـ٨٤ـ: آلوسی وئیلی دی چه هرکله دَ منافقانو عدم طاعت ذکر کړے شو او دغسے تقصیر دَ هغوی په احکامو دَ اسلام کښې نو اوس ئے امر اوکړو نبی صلی الله علیه وسلم ته په قتال کولو سره یواځې بغیر دَ پرواه کولو نه په کارونو دَ منافقانو باندے - تو دا فاء په فقاتل کښې واقع ده په جواب دَ پټ شرط کښې یعنی إِذَا كَانَ الْأَمْرُ كَذَٰلِكَ (هرکله چه معامله داسے ده نو) او طبری وئیلی دی چه دا متعلق دے دَ من یقاتل فی سبیل الله آه سره - یعنی که ته دَ اجرعظیم اراده کوے نو قتال کوه او داسے دَ زجاج نه هم نقل دے - او بعضو وئیلی دی دا دَ فقاتلوا اولیاء الشیطان سره متعلق دے۔

فَقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفْسَكَ، جمله دَ لا تكلف په محل دَ حال کښې ده یا مستانفه ده۔

سوال:- نفسك دلته مکلف به دے او ذات خو مکلف به نشی کیدے؟

جواب:- دَ دینه مراد فعل نفسك دے چه دَ هغې نه مراد وړاندے کیدل دی قتال ته یخپله او په دے حصر کښې اشاره ده چه دَ منافقانو دَ مخالفت کولو او دَ هغوی دَ قتال نه روستو کیدلو په تا باندے هیڅ ضرر نشته - یا دلته وسع لفظ پټ دے په قرینه دَ لا یکلف الله نفسًا الا وسعها سره۔

وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ، دَ نفس دَ ذے نه روستو دَ نورو خلقو په باره کښې ذمه داری ذکر کوی - حَرِّضِ: امام راغب وئیلی دی چه تحریض په اصل کښې ازالة الحرض ته وئیلے او حرض بے فائدے او بے کاره څیز ته وئیلے شی یعنی بے کاره او بے فائدے کارونو او مشاغلو نه دَ خلقو توجه جهاد طرف ته راواړوه - او دَ دے تحریض په تفسیر کښې هغه احادیث مراد دی چه په هغې کښې ترغیبات دَ قتال فی سبیل الله او دَ هغې

مَنۡ يَّشۡفَعۡ شَفَاعَةً حَسَنَةً

چا چه سفارش اوکړو سفارش ښهٔ په وی

يَّكُنۡ لَّهٗ نَصِيۡبٌ مِّنۡهَا ۚ وَمَنۡ

هغه لره برخه دُ ثواب دَ هغې په وجه، او چا چه

يَّشۡفَعۡ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنۡ لَّهٗ

سفارش اوکړو سفارش بد وی به هغه لره

كِفۡلٌ مِّنۡهَا ۚ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى

پیټی دَګناه دَ هغې په وجه، او دے الله تعالیٰ په

كُلِّ شَىۡءٍ مُّقِيۡتًا ﴿۸۵﴾

هر څیز باندے طاقت والا۔

ثوابونه ذکر دی او هغه ډیر دی۔ او دا تحریض دعوت دے قتال طرف ته که په ژبے سره وی او که په قلم سره وی او دَ هغے تربیت ورکولو ته هم شامل دے۔

عَسَى اللّٰهُ اَنۡ يَّكُفَّ بَاۡسَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا ، دا وعده دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه چه یقینی ده۔ اوعسی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَیقین دَپاره وی ځکه هغه کریم ذات دے چه وعده اوکړی نو ضرور ئے پوره کوی۔ او دا وعده الله تعالیٰ دَخپل نبی صلی الله علیه وسلم سره په هره غزوه کښ پوره کړیده په دلیل دَسوره توبه ۲۵ (لَقَدۡ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ فِىۡ مَوَاطِنَ كَثِيۡرَةٍ) او باس په لغت کښ هر بد حال او بد کار ته وئیلے شی او دلته مراد جنګ دے۔

وَاللّٰهُ اَشَدُّ بَاۡسًا ، دَدینه مراد دا دے چه قوت، حمله کول او جنګ کول اشد دے په نسبت دَ ټول مخلوق او خصوصًا په مقابله دَ مشرکانو کښ۔

وَاَشَدُّ تَنۡكِيۡلًا ، نکل په اصل کښ قید ته وئیلے شی او قید مستلزم

دے منع کولو لرہ نو منع تہ هم وئیلے شی او په عام عرف کښې هغے سزا او عذاب ته وئیلے شی چه په هغې کښې معنیٰ دَ عبرت پرته وی۔ دلته معنیٰ دَ عذاب مراد ده او سختوالے ئے داسے دے چه هیڅوک دَ هغے نه خلاصول نشی کولے او همیشه وی دَ هغے فنا او زوال نشته۔

ربط لہ :- هرکله چه مخکښې آیت کښې امر وو په تحریض دَ مؤمنانو، نو اوس په دے آیت کښې ذکر کوی چه دا تحریض (چه نوم ئے شفاعت هم دے) دَ لوئے ثواب دَ پاره سبب دے۔

ربط لہ :- هرکله چه په لا تکلف الا نفسک سره معلومه شوه چه نبی صلی اللہ علیه وسلم دَ بل چا په عمل سره ماخوذ نه دے نو یو وهم پیدا شو چه دَ بل چا عمل سره به دَ ده په عمل (ثواب) کښې زیاتے هم نه راځی نو په دے آیت کښې دَ دے جواب ته اشاره کوی۔

ربط لہ :- هرکله چه نبی صلی اللہ علیه وسلّم په قتال باندے تیزی ورکوله نو بعضے مؤمنانو سره په سامانِ جهاد نه وو نو بل مؤمن به دَ ده دَ امداد کولو دَ پاره سفارش کوو۔ او دا رنګ منافقانو به دَ یو بل دَ پاره دَ جهاد نه دَ پاتیکیدلو سفارش کوو نو په دے آیت کښې دَ دوارو قسمونو شفاعتونو حکم ذکر کوی۔

مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا ، شفاعت په اصل کښې دَ شفع نه اخستلے شوے دے جوړئ (تکئ) ته وئیلے شی په مقابل دَ وتر (تاتکئ) کښې - او په عرف کښې شفاعت وینا کول دی چه یو شخص یو منفعت ته اورسی که دَ دنیا منفعت وی او که دَ آخرت وی۔ یا دَ یو تکلیف نه خلاص شی اګرچه مشفوع له (چا دَ پاره چه سفارش کیدے شی) دَ شفیع نه اوچته درجه لری (آلوسی)۔ او حَسَنَةً هغه دے چه په یو مشروع امر کښې وی - او دَ شفاعت حسنه مفسرینو ډیر مصداقات ذکر کړیدی۔

عل :- خپل دَ ایمان سره دَ کفارو سره قتال کول جمع کول۔

ع۱ دَ یو مؤمن دَ پاره دَ قتال دَ آلاتو دَ حصول سفارش کول.
ع۳ جهاد ته دعوت ورکول - ع۴ توحید او سنت ته دعوت ورکول - ع۵ دَ یو مسلمان دَ بل مسلمان دَ پاره دعا کول -
ع۶ دَ چا دَ نفعے یا دَ ضرر دَ دفع کولو دَ پاره سفارش کول لیکن شرط دا دے چه په هغے به رشوت نه اخلی او جائز کار به وی او دَ چا دَ شرعی حق سا قطولو او حد شرعی دفع کولو دَ پاره به نه وی - پدیکښ اول درے مصداقات دَ ما قبل آیت دَ قتال دَ مسئلے سره مناسبت لری - یَكُنْ لَّهٗ نَصِیْبٌ مِّنْهَا، نصیب هغه حصه وی چه دَ هغے مقدار معلوم نه وی لیکن خا خا حاصلیږی - منها کښ من سببیه دے دَ دغه شفاعت کولو دَ وجے نه یا من ابتدائیه دے او مضاف پټ دے من ثوابها.
وَمَنْ یَّشْفَعْ شَفَاعَةً سَیِّئَةً، دَ دے مصداقات دَ شفاعت حسنه مقابل مراد دی یعنی ع۱ دَ کفر سره دوستانه دَ کافرانو جمع کول - ع۲ دَ انفاق فی سبیل الله (جهاد) نه خلق منع کول.
ع۳ دَ خلقو دَ منع کولو او متنفر کولو دَ پاره دَ جهاد بدئ بیانول.
ع۴ شرک، بدعت، فحاشئ او گمراهئ ته دعوت ورکول.
ع۵ دَ مؤمن غیبت کول بهتان تړل او چغلی کول - ع۶ په غیر شرعی کار کښ سفارش کول - ع۷ یو مؤمن ته بد دعائی (خیر) کول وغیره -
یَكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا، قرطبی وئیلی دی چه کفل په اصل کښ هغه شرئ او کمبل ته وئیلے شی چه دَ اوښ د شاه په لږه حصّه باندے دَ دے دَ پاره واچوی چه سورلی ورباندے آسانه شی - او مطلق حصے ته هم وئیلے شی که دَ خیر وی لکه یُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِنْ رَّحْمَتِهٖ - حدید ۲۸) او په شر کښ هم اکثر استعمالیږی - دلته دَ شفاعت حسنه سره نصیب ذکر کول او دَ شفاعت سیئه سره کفل ذکر کول تفنن فی العبارت (قسما قسم تعبیر کول) دے - او بعضے مفسرینو وئیلی دی چه نصیب هغه حصه ده چه زیادت پکښ کیدیشی نو هغه دَ حسنه سره مناسب ده

وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا

او کله چه سلام او کړے په تاسو سلام نو جواب ورکړئ

بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا ۗ إِنَّ

غوره د هغے نه یا جواب ورکړئ پشان د هغے یقیناً

اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَسِيبًا ﴿٨٦﴾

الله تعالیٰ دے په هر څیز باندے حساب کوونکے۔

او کفل هغه حصه ده چه بالکل برابر وی زیاتے پکښ نه کیږی نو دا د سیئه سره مناسب ده۔

وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيتًا ، مقیت د قوت (روزئ) نه اخستلے شویدے چه په هغے سره تقویت او حفاظت د بدن کیږی۔ او ابن عباس رضی الله عنهما نه په یو روایت کښ په معنیٰ د مقتدر (ډیر قوت والا) سره او په بل روایت کښ په معنیٰ د حفاظت کوونکی سره نقل دے۔ د مجاهد نه روایت دے په معنیٰ د شاهد سره۔ بل قول دا دے چه په معنیٰ د روزئ رسوونکے دے۔ او دغه شان په معنیٰ د جزاء ورکوونکی هم۔ دا ټول معنے صحیح کیږی ځکه چه الله تعالیٰ د هر چا نصیب او کفل وینی او حفاظت ئے کوی او په هغے باندے قادر دے او جزاء هم ورکوی۔

۸۶ : ربط له ۱۔ امام رازی او صاحب اللباب وئیلی دی چه بعضے وخت په دار حرب یا د هغے په قریب کښ په سفر د جهاد کښ یو شخص په یو مجاهد باندے سلام کوی نو مجاهد ورته هیڅ توجه او التفات نه کوی بلکه قتل ئے کړی په دے گمان سره چه دا کافر دے۔ نو په دے آیت کښ ذکر کوی چه د هر سلام کوونکی حق دے ځکه چه سلام کول یو قسم اکرام دے او د اکرام مقابله په اکرام سره بلکه د هغے نه په زیات سره پکار ده۔ نو که هغه کافر وی نو مسلمان ته هیڅ

نقصان تشي ورکولے اوکه مسلمان دی نو دَ هغه قتلول خو
لویه ګناه ده۔
ربط ۵ :- آلوسي وئیلی دی چه تیر شوی آیت کښ یے دَ شفاعت
حسنه ترغیب ورکړو نو اوس دَ هغے یو خاص فرد ذکر کوی چه
سلام کول دُعا دَ سلامتیا او دَ ژوند ده او دا شفاعت حسنه دے۔
وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ ، امام راغب وئیلی دی چه تحیه په اصل کښ
دَ ژوند اوږد والی دُعا ته وئیلے شي بیا استعمالیږی په هره دعا
دَ خیر کښ۔ او دَ عربو عادت دا وو چه دَ یو بل سره به مخامخ
شول نو حَيَّاكَ اللهُ به یے وئیل۔ بیا په شرع کښ دَ هغے په ځائے
السلام علیکم کیخودلے شو او دیته تحیة الاسلام وئیلے شي
او په دے سلام شرعی کښ دَ حَيَّاكَ اللهُ دُعا نه زیات فضیلت
دے ځکه چه په دیکښ دَ سلامتیا دعا ده سره دَ آفاتو دَ
ژوند نه۔ او قرطبی ذکر کړیدی چه بعضو وئیلی دی چه تحیه
په اصل کښ ملك ته وئیلے شي او هر کله چه خلقو به یو بل ته
په دعا کښ دَ ملك (بادشاهئ) او دَ ژوند مختلف الفاظ وئیل
نو جمع راوړے شوه په التحیات لله سره یعنی دَ بقاء او دَ
بادشاهئ چه څومره الفاظ دی هغه ټول الله تعالیٰ لره خاص دی
او بعضو وئیلی دی چه سلامتیا دَ ټولو عیبونو او آفتونو نه
خاص الله تعالیٰ لره ده۔ او صحیح قول دا دے چه دلته دَ
تحیه نه مراد سلام شرعی دے په السلام علیکم سره۔
او په دیکښ نور اقوال هم شته چه هغه قرطبی ذکر کړیدی
دَ امام مالك رحمه الله یو روایت دے چه دَ دینه مراد تشمیت
العاطس دے (پرنجی کوونکی ته په یرحمك الله سره جواب
ورکول)۔ او ابن خویز منداد وئیلی دی چه دَ دینه مراد هبه
ده (چا ته څه څیز ورکول)۔ او دَ اصحابو دَ امام ابوحنیفه رحمه الله
نه نقل ده (رکه جصاص) چه هدیه ورکول مراد دی او چا
وئیلی دی چه دَ دینه مراد دَ صلحه کولو دعوت مراد دے۔
لیکن دا اقوال ضعیف دی ځکه چه په قرآن کریم کښ تحیه

سلام ته وئیلے شوید ی سورۃ احزاب ۴۴، سورۃ نور ۶۱، سورۃ ابراهیم ۲۳ - او لفظ سلام یے په ډیر آیتونو کښ ذکر کړیدے لکه سورۃ مریم ۱۵، ۳۳، ۴۷ سورۃ روم ۶۹، سورۃ انعام ۵۴ سورۃ طه ۴۷، سورۃ رعد ۲۴ او سورۃ نمل ۵۹ په دیکښ لفظ سلام معرفه او نکره دواړه ذکر شویدی نو دواړه جائز دی - لیکن په احادیثو کښ په صیغه د معرفے سره ذکر دے - او د سلام نور تفصیلی احکام قرطبی، آلوسی او قاسمی وغیره ذکر کړیدی.

فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا ، یعنی تاسو د سلام جواب ورکړئ په ډیر خائسته الفاظو او کلماتو سره د هغے نه چه تاسو ته وئیلے شوی وی - صحیح او حسن احادیثو کښ د هغے تفصیل راغلے دے چه په جواب کښ او وائی وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته - او د ابوداؤد په روایت کښ ومغفرته هم ذکر دے په هغے کښ یحیٰ راوی ته ضعیف وئیلے شویدی لیکن ترمذی د هغه روایت د سهل بن معاذ نه حسن ذکر کړیدے او ابن خزیمه او حاکم ورته صحیح وئیلی دی - نو آلوسی وئیلی دی چه څوک وائی چه ومغفرته به نه وئیلے کیږی نو دا قول اتفاقی نه دے - او قاسمی وئیلی دی چه په دے حدیث کښ رد دے په هغه چا باندے چه په وبرکاته باندے زیادت نه وائی - أَوْ رُدُّوهَا ، او د اختیار د پاره دے په زیادت د جواب کښ لیکن زیادت افضل دے ځکه چه مخکښ یے ذکر کړو - او ردوها نه مراد د هغے پشان جواب ورکول دی.

ابن کثیر وئیلی دی چه د ټولو علماؤ اتفاق دے چه سلام کول سنت دی او جواب ورکول یے فرض دی - لیکن فرض کفائی دی په سبب د حدیث د ابوداؤد او بیهقی سره او دلته آلوسی د بعضے احنافو فقهاؤ نه په طریقه د اشعارو سره شل کسان د سلام نه مستثنیٰ کړیدی لیکن اصح دا ده

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ط لَيَجْمَعَنَّكُمْ

الله تعالیٰ نشته دَ بندګۍ حقدار سوا دَ هغه نه ، خامخا به تاسو راجمع کړي

اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ ط

ورځ دَ قیامت ته چه هیڅ شک نشته په هغې کښې ،

وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا ﴿۸۷﴾

او څوک ډیر رښتنے دے دَ الله تعالیٰ نه په خبرو کښې ۔

چه په مونځ کوونکو باندے سلام اچول شته خو دَ هغې جواب به په قول سره ته ورکوئ او جواب بالاشاره کښې اختلاف دے۔ او کوم نهي چه په صحیح حدیث سره راغلے وي نو هغه به معتبر وي دلته صرف قیاس فائده نه ورکوي ۔

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ حَسِیْبًا ، یعنی په ټولو اعمالو باندے او خصوصًا په سلام وجواب سلام باندے به حساب کوي ۔ دا جمله هم دلالت کوي په اقامت دَ دے سنت باندے او په تاکید دَ جواب دَ سلام باندے ۔

۸۷ :۔ په دے آیت کښې اثبات دَ توحید او دَ قیامت دے

ربط له :۔ یځ دَ مخکښې سره دا دے چه هر کله مخکښې اُویلے شو چه تاسو ته څوک سلام او کړي نو دَ هغه سلام قبول کړئ په اعتبار دَ ظاهر دَ هغه سره او هر چه دَ هغه باطن حال دے نو هغه دَ الله تعالیٰ علم ته اوسپارئ چه دَ هغه سره په علم غیب کښې څوک شریک نشته ۔ او په ورځ دَ قیامت به دَ باطن رازونو ښکاره کولو دَ پاره حساب کوي۔

ربط ۲ :۔ دا چه مخکښې قتال ، شفاعت حسنه او سلام کولو ته ترغیب ذکر شو نو اوس دَ دے ټولو دَ قبولیت بنیاد ذکر کوي چه عقیده دَ توحید او بعث بعد الموت ده۔

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ، دا جمله اسمیه مبتداء او خبر ده مستانفه ده۔

فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِيْنَ فِئَتَيْنِ

نو ولے تاسو دَ منافقانو په باره کښ دوه ډلے شوئ

وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوْا ط

او الله تعالیٰ نسکور کړی دی په سبب دَ عملونو دَ دوی

اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَهْدُوْا مَنْ

آیا تاسو غواړئ چه هدایت والا اوګرځوئ هغه څوک

اَضَلَّ اللّٰهُ ط وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ

چه بے لارے کړیدے الله تعالیٰ او څوک چه الله تعالیٰ بے لارے کړی

لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ، دا جمله دویم خبر دے دَ لفظ الله دَپاره یا جمله مستانفه ده دَپاره دَبیان دَ دویم اعتقاد چه بعث بعد الموت دے - الی په معنیٰ دَ فی سره دے یا جمع متضمن ده معنے دَ حشر لره یا فی القبور پټ دے او الی دغائے دَپاره دے - الْقِيٰمَةِ ، دا په معنیٰ دَ قیام دے او تاء پکښ دَ مبالغے دَپاره ده - او دَ دے نوم وجه دا ده چه ټول خلق به حساب دَپاره قائم شی (راودریږی) لکه (يَوْمَ يَقُوْمُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ - تطفیف ۶) -

لَا رَيْبَ فِيْهِ ، ضمیر یوم ته یا جمع ته راجع دے -

وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا ، حدیث ، په معنیٰ دَ قول او دَ وعد دے او دلته دَ حدیث نه مراد اخبار دے په کلمه دَ لا اله الا هو او لیجمعنکم آه سره او دا استفهام انکار دے دَپاره دَ اثبات دَ صدق دَ الله تعالیٰ عمومًا او خصوصًا -

سوال :- اصدق اسم تفضیل دے لیکن صدق خو مفهوم بسیط دے په هغے کښ تفاوت نه وی نو تفضیل پکښ څنګه صحیح کیږی ؟

جواب :- آلوسی وئیلی دی چه دلته تفضیل په اعتبار دَ کمیت

# فَلَنْ تَجِدَ لَهُ سَبِيلًا ﴿۸۸﴾

| نو هيچرې اوبه نه مومې هغه لره لار - |
|---|

(مقدار) سره دے نه په اعتبار دَ كيفيت سره يعنى كلام دَ الله تعالىٰ كښې هيڅ دروغ نشته - كلام دَ الله تعالىٰ ډير دے او په هغې كښې ډير اقسام دى او هغه ټول رشتيا دى -

۸۸ :- په دے آيا تونو كښې ذكر دے دَ حال دَ منافقانو او دَ هغوى بعضے اقسام هغه دى چه هغوى سره قتال كول پكار دى او بعضے هغه دى چه قتال ورسره نه كيږى او دا څلور قسمه دى په څلورو آيتونو كښې - او دا اقسام دَ هغه منافقانو دى چه دار اسلام كښې نه دى داخل هجرت ئې نه دے كړے -

ربط له :- دَ ۸۳ آيت پورے دَ منافقانو قبيح اوبد صفات ذكر شول او په مينځ كښې جمله معترضه وه نو اوس تفريع ذكركوى په هغه اوصافو باندے چه سره دَ وجود دَ دا سے اوصافو نه شك مه كوئ په نفاق دَ دا سے خلقو كښې -

ربط ٤ :- هركله چه ذكرشو وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللهِ حَدِيثًا نو اوس په هغې باندے تفريع ذكركوى چه هركله الله تعالىٰ دَ منافقينو احوال ذكر كړل او په هغې كښې هيڅ دروغ نشته نو دَ دوى په باره كښې شك مه كوئ -

فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِيْنَ فِئَتَيْنِ ، مَا ، استفهاميه دَ پاره دَ تعجب او ملامتيا دے يا دَ انكار دَ پاره دے او خطاب ټولو مؤمنانو ته دے -
فِي الْمُنٰفِقِيْنَ احتمال لرى چه متعلق شى دَ فئتين دَ معنىٰ سره يعنى مالكم تفترقون فى المنافقين - يا حال دے دَ فئتين نه او مخكښې دے په ذوالحال باندے - او دَ فئتين په نصب (زور) كښې هم دوه وجے دى - اول دا حال دے دَ ضمير دَ لكم نه او ديته حال لازمه وئيلے شى دا دَ بصريانو مذهب دے - يا خبر دے دَ كَانَ پټ دَ پاره يعنى كنتم فئتين دا دَ كوفيانو مذهب دے - او مقصد دا دے چه تاسو سره هيڅ دليل نشته دَ اختلاف

کولو په باره دَ منافقانو کښې ځکه دلیل ښکاره شو دَ هغوی دَ منافقت او دَ کفر۔

فائده ع۱:۔ دَ دے آیت په سبب نزول او مصداق دَ المنافقین کښې دوه اقوال مشهور دی۔

اول قول بخاری مسلم او ترمذی وغیره صحیح حدیث دَ زید بن ثابت رضی الله عنه ذکر کړیدے چه په احد کښې څه خلق دَ غزوے نه واپس شول (دَ غزوه شروع کولو نه مخکښې) نو دَ دوی په باره کښې دَ مؤمنانو په مینځ کښې اختلاف پیدا شو۔ بعضو وئیل چه موتږ دوی قتل کوو یعنی دوی کافر دی او بعضو وئیل چه نه دوی خو مؤمنان دی کلمه دَ ایمان وائی۔ نو دا آیت دَ هغوی په باره کښې نازل شو۔ دویم قول ابن کثیر دعوفی عن ابن عباس رضی الله عنهما نه او قرطبی دا قول دَ ضحاک نه نقل کړیدے چه دا یو قوم وو په مکه مکرمه کښې کلمه دَ ایمان ئے وئیله لیکن دَ مشرکانو په خلاف جنګونو کښې ئے مدد نه کوله نو په مؤمنانو کښې دَ دوی په باره کښې اختلاف راغے چه دا کافران دی یا مؤمنان دی۔ نو دا آیت دَ هغوی په باره کښې نازل شو۔

فائده ع۲:۔ قرطبی وئیلی دی چه اول قول دَ نقل په اعتبار (سند) سره اصح دے او دویم قول دَ پاره تائید روستو آیت کښې حَتّٰى يُهَاجِرُوْا دے یعنی دا هغه خلق دی چه هجرت ئے نه دے کړے۔ نو په ظاهر کښې په دے دواړو کښې تعارض دے او دفع دَ تعارض په دوه وجوهو سره ده۔

اوله وجه دا ده چه په معنیٰ دَ هجرت کښې تاویل او کړیشی یعنی دَ هغے نه مراد ښکاره توبه کول دی دَ منافقت نه لکه چه روستو به ان شاء الله ذکر شی۔

دویمه وجه، په اسباب نزول کښې دَ ظاهری تعارض په وخت کښې توجیه کیدیشی چه یو اصل سبب دے او بل مصداق دے په اعتبار دَ عموم دَ الفاظو سره یعنی دَ بخاری او مسلم

روایت کښې په اعتبار دَ عموم الفاظو سره هغه منافقان داخل دي چه په احد کښې ئې دَ جهاد کولو نه اعراض کړے وو او اصل مصداق ئې هغه منافقان دي چه هغوي په مکه مکرمه او په ګرد نواح کښې وو او دَ هجرت نه ئې اعراض کړے وو۔

فائده ع۳:۔ په دے ټولو واقعاتو کښې یوے ډلے دَ مؤمنانو په ظاهر کلمه دَ اسلام لوستلو سره استدلال کوو په ایمان دَ هغوي باندے او بلے ډلے استدلال کوو دَ هغوي په فرض جهاد پرېښودلو او دَ مشرکانو په تعاون کولو او دَ هجرت نه په اعراض کولو چه دوي منافقان دي۔ نو معلومه شوه دَ مالکم نه چه په استدلال کښې اوله ډله خطا شوې ده۔ مجتهد په وخت دَ خطائۍ کښې هم دَ یو اجر مستحق ګرځي په سبب دَ حدیث مشهور سره۔ لیکن هر کله چه خطائۍ ښکاره وي نو قایل دَ ملامتیا او عدم اتباع دے۔ (ابن عاشور)۔

وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ، رکس په اصل کښې رد کول دَ څیز دي یا الټه کول دي په سر باندے۔ او دَ دے په مراد کښې ډیر اقوال نقل دي۔ ضحاک عن ابن عباس رضي الله عنهما په نیز په معنیٰ دَ رد دے یعني دوي ئې کفر ته واپس کړي دي۔ دویمه معنیٰ الله تعالیٰ الټه (پرځه) ګرځولے دي دوي لره په اور دَ جهنم کښې۔ او دریمه معنیٰ دَ سدي په نیز ګمراه کول دي۔ او دَ ابن عباس رضي الله عنهما بل روایت دے چه بند کړي دي دوي لره په جهنم کښې۔ او دَ بخاري رحمه الله په نیز کم ور کړي دي دوي لره او دَ قتاده په نیز هلاک کړي دي دوي لره۔ دا ټول تعبیرات په اصل کښې یو مقصد ته راجع دي۔

بِمَا كَسَبُوْا، باء سببیه ده او ما مصدریه ده او دَ دینه مراد دَ منافقت اعمال او هغه افعال قبیحه دي چه په مخکښې آیتونو کښې ذکر شوي دي۔ او دَ جهاد، دَ احد نه اعراض کول او دَ مؤمنانو په مقابله کښې دَ کافرانو سره ښکاره ملګرتیا کول او هجرت نه کول دي۔

وَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ كَمَا كَفَرُوْا

غواړي دوی چه کافران شئ تاسو لکه چه دوی کافران دي

فَتَكُوْنُوْنَ سَوَآءً فَلَا تَتَّخِذُوْا

توشئ په تاسو برابر نو مه نیسئ

مِنْهُمْ اَوْلِيَآءَ حَتّٰى يُهَاجِرُوْا

دَ دوی نه دوستان ترڅو پورې چه هجرت اوکړي

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ فَاِنْ تَوَلَّوْا

په لار دَ الله تعالیٰ کښ، نو دوی که مخ اوګرځوو

فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ

نو نیسئ دوی (په قید کولو) او وژنئ دوی کوم ځائے

اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَهْدُوْا مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ، فَمَا لَكُمْ کښ توبیخ اجمالي وو یعني جهت دَ توبیخ معین نه وو نو په دے جمله کښ دَ هغے تعین کوی یعني هغه فریق دَ مؤمنانو چه دغه منافقانو ته مؤمنان وائي نو دَ دوی دغه قول خطا دے . ذکر دَ ارادے دَ زیات توبیخ دَ پاره دے یعني هغه کسان چه الله تعالیٰ ګمراه کړیدي نو تاسو دَ هغوی په صحیح لار باندے راوستل نشئ کولے نو دَ دے خبرے اراده هم محال ده - او بل دا احتمال هم دے چه تهدوا په معنیٰ دَ حکم کولو دے په هغوی باندے دَ مهتدین او مسمی کول هغوی لره په نوم دَ مهتدینو سره او شمارل دَ مهتدین نه (قرطبي ، ابوالسعود) - او دَ دے پشان نور آیتونه هم شته لکه سوره روم ۲۹ ، سوره اعراف ۱۸۶ ، سوره کهف ۱۷ سوره زمر ۳۶ ، سوره غافر ۳۳ او سوره شوریٰ ۴۴ ، ۴۶ -

وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا ، دا تاکید دے دَ مخکښ جملے دَ پاره - او دَ هغے دَ پاره په منزله دَ علت دے - سَبِيْلًا نکره په سیاق دَ نفي کښ دَ عموم دَ پاره ده یعني دَ دا سے خلقو

وَجَدْتُّمُوْهُمْ وَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ

| چه | موندئ تاسو | دوی لره | او مهٔ نیسئ | دَ دوی نه |
|---|---|---|---|---|

وَلِیًّا وَّلَا نَصِیْرًا ﴿٨٩﴾

| دوست | او نه | امدادی ـ |
|---|---|---|

دَپاره هیڅ لار فائده منه نشته نو هدایت به ورته څرنګه حاصل شی ـ

س٨٩ :- دا دَ اتریدو دَ جملے سره متعلق دے په طریقه دَعلت سره یعنی دوی په تعصب کښ دا سے حد ته رسیدلی دی چه تاسو کافر کوی نو تاسو دَ دوی دَهدایت څنګه اراده لرئ ـ

وَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ كَمَا كَفَرُوْا ، لَوْ مصدریه دے سره دَ مابعد نه په تاویل دَمصدر سره مفعول دے دَ ودو دَپاره ـ یا لَوْ شرطیه دے نو دَ ودوا مفعول پټ دے او دَ دے لو جواب هم پټ دے یعنی وَدُّوْا کفرکم (دوی ستاسو کفر غواړی) لَوْ تَكْفُرُوْنَ كَمَا كَفَرُوْا لیسرّوا بذلك (که چرے تاسو کفر اوکړو لکه چه دوی کافر دی نو دوی به په دے باندے خوشحاله شی) ـ

فَتَكُوْنُوْنَ سَوَآءً ، دا عطف دے په تکفرون باندے ـ سَوَآءً په معنیٰ دَ مستوین دے یعنی دوی ستاسو کفر کول او په کفر کښ دَ دوی سره برابریدل غواړی ـ

سوال :- کما کفروا دلالت کوی په مماثلث باندے او سواءً هم دغه دلالت کوی نو تکرار کښ څه فائده ده ؟

جواب :- اول مماثلت په نفس کفر کښ دے ـ او دویم مساوات په طریقه دَ کفر کښ دے چه هغه کفر کول دی په صورت دَ منافقت کښ او اتباع کول دی دَ ګمراه مشرانو ـ

فَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ اَوْلِیَآءَ ، هرکله چه دَ دوی په کفر او عداوت باندے دَ مؤمنانو سره تصریح اوکړه نو اوس مؤمنانو ته حکم کوی دَ هغوی نه په براءت کولو باندے په نهی کولو سره دَ هغوی سره دَ هر قسم دوستانے نه ـ

حَتّٰى يُهَاجِرُوْا فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ، يعنى دوى اګرچه د ايمان دعوى كوى خو د دوى د ايمان د صحت علامت هجرت كول دى د دار كفر نه دار اسلام ته په دغه وخت كښ هجرت مدينے ته فرض وو تر فتح مكے پورے او د هغے نه روستو هر هغه ملك نه چه مسلمان په هغے كښ د اسلام د شعائرو د اظهار قدرت نه لرى هجرت كول فرض دى دا سے ملك او وطن ته چه هلته خپلے دينى لارے چارے او دعوت په آزادئ سره كولے شى - او دا سے حكم په سوره انفال ﴿۸﴾ كښ هم راځى -
فائده :- امام رازى، قرطبى او آلوسى وغيره وئيلى دى چه د هجرت درے اقسام دى- اول قسم د دار كفر نه دار اسلام ته راوتل دى - دويم قسم د ګناهونو پرېخودل دى- دريم قسم وتل دى د خپل كور او كلى نه د قتال فى سبيل الله د پاره - هر كله چه په تير شوى آيت كښ سبب نزول د مدينے د منافقانو واپس كيدل وو د غزوه احد نه نو دلته د هجرت نه مراد دريم قسم دے او توبه كول دى د تير شوى ګناه نه چه تختيدل وو د قتال فى سبيل الله نه - او كه چرے دويم سبب نزول مراد شى نو د هجرت اول قسم مراد دے.

فَإِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ، كه چرے دوى مخ واړوو د هجرت كولو نه (كه د هجرت اول قسم مراد شى او كه دريم قسم مراد دوى) نو فَخُذُوْهُمْ، د نيولو نه مراد قيد كول دى په وخت د لاس بركيدلو كښ په هغوى باندے - حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ، يعنى كه حل وى او كه حرم ؤ پواځے وى او كه ګنړ وى - وَجَدْتُّمْ، نه موندل يا قادر كيدل مراد دى-

وَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا، په دے تكرار كښ ډير تاكيد دے يعنى د دوى نه پوره اجتناب اوكړئ يعنى د دوى د طرف نه هيڅ ولايت او نصرت مه قبلوئ - فَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ أَوْلِيَاءَ كښ مراد دا وو چه ستاسو د طرف نه دوى سره

إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ إِلَىٰ قَوْمٍ

مګر هغه کسان چه یو ځائے کیږی دَ هغه قوم سره

بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ

چه په مینځ ستاسو او دَ دوی کښ وعده وی

أَوْ جَاءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ

یا راشی دوی تاسو ته چه بند وی سینے دَ دوی

أَن يُقَاتِلُوكُمْ أَوْ يُقَاتِلُوا

چه جنګ اوکړی تاسو سره یا جنګ اوکړی

قَوْمَهُمْ ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَسَلَّطَهُمْ

دَ قوم خپل سره ، او که خوښته وے الله تعالیٰ خامخا زورآور کړی به وو دوی

عَلَيْكُمْ فَلَقَاتَلُوكُمْ ۚ فَإِنِ اعْتَزَلُوكُمْ

په تاسو باندے نو خامخا جنګ به کړے وے دوی تاسو سره نو که دوی ډډه کوله ستاسو نه

فَلَمْ يُقَاتِلُوكُمْ وَأَلْقَوْا إِلَيْكُمُ

او جنګ نه کوی تاسو سره او درکوی تاسو ته

السَّلَمَ فَمَا جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ

روغه ، نو نه دهٔ ګرځولے الله تعالیٰ تاسو لره

عَلَيْهِمْ سَبِيلًا ﴿٩٠﴾

په دوی باندے لار (دَ جنګ کولو)۔

هیڅ ولایت جائز نه دے۔ نو په دے آیت کښ دَ منافقانو اول قسم ذکر شو چه دَ هغوی قتل وقتال باندے امر شوید ے۔ سنو۔ په دیګښ دوه قسمه منافقانو استثناء کوی چه دَ دار اسلام نه بهر وی۔ یو قسم معاهدین دَ معاهدین دویم قسم عاجزاو بے وسه۔

إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ إِلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ، په دے استثناء کښ دوه اقوال دي - اول دا استثناء متصل ده دَ دے قول نه چه فخذوهم واقتلوهم يعني استثناء په قتل او رانيولو کښ ده په موالات او دوستانه کښ نه ده - ځکه چه دوستانه خو دَ دغسے خلقو سره هم منع ده - او دا قوم کافران يا منافقان دي. او وصلت نه مراد معاهده کول دي يا پناه حاصلول دي - او قَوْمٍ بَيْنَكُمْ نه مراد کافران دي ليکن دَ هغوي دَ مسلمانانو سره معاهده ده دَ عدم قتال - نو الذين يصلون نه معاهد المعاهد وئيلے شي نو ترڅو پورے چه دغه عهد او وصل شته نو دَ دوي سره قتال نشي کيدے.
أَوْ جَاءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ، پديکښ بل قسم ذکر کوي - او دَ تنويع دَ پاره دے حصرت حال دے په تقدير دَ قد سره دَ بصريانو په نيز او بغير دَ قد نه دَ کوفيانو په نيز -

حصر په اصل کښ تنګسيا او انقباض نه وئيلے شي او کراهيت او نفرت ته هم وئيلے شي -
أَن يُقَاتِلُوكُمْ أَوْ يُقَاتِلُوا قَوْمَهُمْ، دلته مِنْ پټ دے يعني دوي تاسو ته ځي راځي په داسے حال کښ چه دَ دوي سينے ستاسو دَ قتال نه او دَ خپل قوم سره دَ قتال کولو نه تنګي دي يعني ستاسو سره په قتال کښ ملګرتيا نه کوي او نه دَ خپل قوم کافرانو سره يا نه تاسو سره قتال کوي او نه دَ خپل قوم سره يعني دَ بزدلۍ او بے وسۍ دَ وجے نه دَ هيچا سره قتال نه کوي - او په ديکښ بله توجيه دا ده چه دوي مدينے ته راځي يعني هجرت کوي ليکن شرط لګوي چه مونږ به تاسو سره په قتال کښ شرکت نه کوو ځکه چه ايمان مو راوړيدے خو دَ خپل قوم سره به دَ قوميت دَ وجے نه قتال نه کوي - نو دوي ته په اول دَ اسلام کښ اجازت وو (او دَ دے مصداق بنو مدلج قبيله ده) ليکن هر کله چه اسلام قوي شو نو دا حکم منسوخ شو - قرطبي وئيلي دي چه اوله توجيه غوره ده -

وَلَوْ شَاءَ اللّٰهُ لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ فَلَقَاتَلُوْكُمْ، په دے جمله کښ مقصد احسان کول دی په مؤمنانو باندے او دَ تسلیط نه مراد دَ هغوی په زړونو کښ قوت اچول او رعب لرے کول دی او قرطبی وئیلی دی چه دَ دے تسلیط درے وجے کیدے شی۔ اوله وجه اظهار دَ گناهونو په مؤمنانو کښ او مداهنت او سستی دَ هغوی دَ قتال نه نو تسلیط دَ کافرانو په مؤمنانو باندے په طریقه دَ عقوبت او دَ سزا سره دے۔ دویمه وجه تمحیص (صفا کول دَ مؤمنانو) دَ گناهونو نه۔ دریمه وجه ابتلاء او امتحان دے په مؤمنانو باندے۔ وَلَوْ شَاءَ اللّٰهُ دلالت کوی چه دا ټول کارونه په مشیت دَ الله تعالی سره دی۔

فَاِنِ اعْتَزَلُوْكُمْ، دا تفصیل دَ هغے استثناء دے چه په اِلَّا الَّذِيْنَ کښ اجمالاً ذکر شوید ے په ذکر دَ دوه شرطونو سره اول شرط اعتزال دَ هغوی دے ستاسو نه اعتزال په اصل کښ ادا کولو ته وئیلے شی۔ او دلته دَ اعتزال نه مراد دا دے چه دوی خپل قوم لره په وخت دَ جنگ ستاسو کښ پریږدی او دَ هغوی نه جدا شی او ستاسو دَ جنګ نه ډډه کوی۔ یا اعتزال په معنیٰ دَ مهادنت (صلح کولو) دے۔

فَلَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ، دا نتیجه دَ اعتزال ده۔ وَاَلْقَوْا اِلَيْكُمُ السَّلَمَ، دا دویم شرط دے سلم په معنیٰ دَ صلح کولو او دَ انقیاد کولو دے۔ او القاء لفظ کښ اشاره ده پوره اظهار دَ سلم ته گویا که یشان دَ محسوس سره دے۔

فَمَا جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيْلًا، دا حکم دے او معنیٰ دَ استثناء ده)۔ عَلَيْهِمْ، مضاف پټ دے یعنی عَلٰى اَخْذِهِمْ وَقَتْلِهِمْ۔ سَبِيْلًا په معنیٰ دَ "اذن" او دلیل سره دے او په دے کښ مبالغه ده په تعرض نه کولو هغوی ته څکه چه په چا باندے لار نه وی نو هغوی په څنګه او نیسی یا قتل کړی۔

سَتَجِدُوْنَ اٰخَرِيْنَ يُرِيْدُوْنَ

زر دے چه او به موهٔ تاسو نور خلق (منافقین) چه غواړی دوی

اَنْ يَّاْمَنُوْكُمْ وَيَاْمَنُوْا قَوْمَهُمْ ۭ

چه په امن شی دوی ستاسو نه او په امن شی د قوم خپل نه،

كُلَّمَا رُدُّوْٓا اِلَى الْفِتْنَةِ اُرْكِسُوْا

هر وخت چه اوبللے شی فتنه (شرک) ته نو نسکور پریوځی

فِيْهَا ۚ فَاِنْ لَّمْ يَعْتَزِلُوْكُمْ

په هغے کښې پس که دوی ډډه نه کوی ستاسو نه

وَيُلْقُوْٓا اِلَيْكُمُ السَّلَمَ وَيَكُفُّوْٓا

او نه پیش کوی تاسو ته روغه او نه بندوی

اَيْدِيَهُمْ فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ

لاسونه خپل (د جنګ ستاسو نه) نو نیسئ دوی (په قید کولو) او وژنئ دوی

حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ ۭ وَاُولٰۗىِٕكُمْ

کوم ځائے چه وس برشی ستاسو په دوی باندے، او دغه کسان

جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا

ګرځولے دے مونږ تاسو لره په (جنګ) د دوی باندے دلیل

مُّبِيْنًا (۹۱)

ښکاره۔

سوال ۹۱:- په دے آیت کښې د منافقانو څلورم قسم ذکر کوی
او د هغوی سره د قتل و قتال امر کوی۔
سَتَجِدُوْنَ ، د وجدان نه مراد اطلاع موندل او خبریدل
دی او یو مفعول ته متعدی دے۔

اٰخَرِیْنَ، په دے لفظ کښ اشاره ده چه دا قسم دَ مخکنو قسمونو نه بالکل غیر دے - ابن کثیر وئیلی دی چه دا خلق اګرچه په ظاهر کښ دَ مخکنو پشان دی لیکن دَ دوی او دَ هغوی په نیتونو کښ فرق دے۔

یُرِیْدُوْنَ اَنْ یَّاْمَنُوْکُمْ وَیَاْمَنُوْا قَوْمَهُمْ، یعنی دا قوم دا سے منافقان دی چه نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو ته ئے اسلام ښکاره کوو دَ دے دَ پاره چه دَ دوی ځانونو او مالونه او اولاد دَ مؤمنانو نه بچ پاتے شی او دَ کافرانو سره یې رازونه ساتی او دَ هغوی دَ معبودان باطله عبادت هم کوی دے دَ پاره چه دَ هغوی نه هم په امن کښ اوسیږی - یُرِیْدُوْنَ کښ دَ دوی نیتونه مراد دی یعنی په نیتونو کښ ئے صرف خپل ځان بچ کول غرض دے دوستانه ئے مقصد نه دے۔

کُلَّمَا رُدُّوْا اِلَی الْفِتْنَةِ اُرْکِسُوْا فِیْهَا، دَ فتنے نه مراد شرک کول دی یا قتال کول دَ مسلمانانو سره - اُرْکِسُوْا نه مراد واپس اوړیدل دی شرک کولو ته یا اوړیدل دی دَ مؤمنانو دَ عهد نه۔

فَاِنْ لَّمْ یَعْتَزِلُوْکُمْ، دَ دوی دَ قتال دَ پاره ئے درے شرطونه ذکر کړیدی - اول عدم اعتزال مخکښ آیت کښ دَ اعتزال ثبوتی معنے ذکر شویدی نو دلته دَ هغے مخالف جانب مراد دے یعنی ستاسو دَ جنګ نه ډډه نه کوی، تاسو سره هیڅ مصالحت نه کوی او تاسو ته دَ هر قسم ضرر او تکلیف رسولو کوشش کوی۔

وَیُلْقُوْا اِلَیْکُمُ السَّلَمَ، دا دویم شرط دے او دلته دا دَ لم لاندے دے۔

وَیَکُفُّوْا اَیْدِیَهُمْ، دا هم دَ نفی دَ لاندے داخل دے او دا ئے دریم شرط دے یعنی ستاسو دَ جنګ نه لاس نه بندوی۔

فائده :- مخکښ آیت کښ دوه شرطونه په طریقه دَ اثبات سره ذکر کړے وو او دلته ئے درے شرطونه دَ نفی په طریقه سره ذکر کړل وجه دا ده چه مخکښ قسمونو نه اعتزال، القاء دَ سلم په استقبال کښ امید کیدے شو او دَ دے قسم نه په راتلونکے

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ اَنْ يَّقْتُلَ
او نه دی جائز مؤمن لره چه اووژنی
مُؤْمِنًا اِلَّا خَطَأً ۚ وَمَنْ قَتَلَ
یو مؤمن مګر په خطا سره (نوحکم ئې نشته دے) او چا چه قتل کړو
مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ
مؤمن لره په خطا سره نو په ده باندې آزادول د مریی
مُّؤْمِنَةٍ وَّدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ
مؤمن دی او دیت دے سپارلے شوے وارثانو
اِلٰٓى اَهْلِهٖٓ اِلَّآ اَنْ يَّصَّدَّقُوْا ؕ
د هغه ته مګر که هغوی صدقه اوکړی (په معاف کولو د دیت)
فَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ
نو که وی (مقتول) د هغه قوم نه چه دشمن ستاسو دے

زمانه کښې د دغه درے امورو امید نه شی کیدے - او هر کله چه دلته امر د قتل او قتال دے نو علامه کف دلاسونو ئې تاکیدًا ذکر کړو یعنی دوی د قتال د پاره بیخي تیار دی.
فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ ، ثقافت نه مراد پوره وس او لاس برکیدل دی په هغوی باندے او په هر مکان کښې موندل دی نو په دیکښې ډیر تاکید دے په نسبت د وجدتموهم چه مخکښې آیت کښې ذکر وو - ځکه دا قسم ډیر اخبث منافقان دی په نسبت د مخکنو قسمونو.
وَاُولٰٓئِكُمْ جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ، اسم اشاره راوړلو کښې اشاره ده چه دا خلق د نورو قسمونو نه پوره جدا دی په سبب د ښکاره علاماتو د هغوی سره - عَلَيْهِمْ ، یعنی په نیولو او قتل کولو د هغوی باندے - سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ، ښکاره حجت

وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ

او دے وی مؤمن نو په (قاتل باندے) آزادول د مریی

مُؤْمِنَةٍ ؕ وَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ

مؤمن دی، او که وی (مقتول) د داسے قوم نه

بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِيثَاقٌ فَدِيَةٌ

چه په مینځ ستاسو او په مینځ د هغوی کښ لیکه وعده دی نو لازم دے دیت

مُسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ وَتَحْرِيرُ

سپارلے شوے وارثانو د هغه ته او آزادول دی

رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ ۚ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ

د مریی مؤمن ، پس څوک چه نه مومی (مریی مؤمن)

فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ ز

نو په هغه باندے روژے دی دوه میاشتے پرله پسے ،

تَوْبَةً مِنَ اللَّهِ ؕ وَكَانَ اللَّهُ

دا آسانتیا ده د طرف د الله تعالیٰ نه ، او الله تعالیٰ

عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿٩٢﴾

پوهه دے حکمتونو والا ۔

او دلیل په منافقت او کفر د دوی او په استحقاق د قتل کولو د دوی ۔ او ابن عاشور وئیلی دی چه په دیکښ اشاره ده چه مؤمنانو نه د دوی د قتال په سبب سره مفسدان (دهشت گرد) او ظالمان نشی وئیلے کیدلے ۔

۹۲: خلاصه :۔ د دے آیت نه تر ۱۳۵ پورے شپږ امور سیاسیه ذکر کوی چه د هغے نه څلور د عسکری ترتیب سره تعلق لری (۹۲، ۹۴، ۹۷، ۱۰۱) او دویم د تحکیم بالکتاب والسنه سره

تعلق لری (۱۰۵ او ۱۲۷ نه ۱۳۰ پورے) امر اول (چه په ترتیب کښ څلورم قانون دے) هغه مسئله دَ قتل خطائی او دَ هغې حکم او قتل عمدی او دَ هغې اخروی سزا ده په (۹۲، ۹۳ کښ. امر دویم (پنځم قانون) هغه تحقیق او پوره تفتیش کول دی دَ دعویدار دَ ایمان هسے نه چه هغه په خطایی سره قتل کړیشی ۹۴ کښ - او بیا ترغیب دے قتال فی سبیل الله ته په ذکر دَ بشارت سره ۹۵، ۹۶ کښ - دریم امر (شپږم قانون) هغه اول تخویف دے په هجرت نه کولو سره بغیر دَ معذوریتو نه، بیا ترغیب دے هجرت ته او اشاره ده چه اسلامی امارت او حکومت دِ هغوی له دَ استوګنے انتظام اوکړی (۹۸، ۹۹، ۱۰۰) - څلورم امر یعنی اووم قانون) هغه اهتمام دے دَ مونځ کولو په وخت دَ سفر او خوف کښ دے دَ پاره چه دَ اسلامی فوج نه مونځ پاتے او قضاء نه شی (دَ ۱۰۱ نه ۱۰۴ پورے) - پنځم امر (اتم قانون) هغه په تحکیم دَ قرآن او سنت کښ دَ خیانتګرو دَ طرفدارئ نه ځان ساتل دی او دَ هغوی متعلق آداب او دَ هغوی قبیح صفات ذکر کوی تر ۱۰۹ پورے - او دفع دَ بعضے او هامو ده دَ ۱۱۰ نه ۱۱۲ پورے - اثبات دَ صدق دَ رسول صلی الله علیه وسلم او هغه ته تسلی په ۱۱۳ کښ، بیا ذکر دَ آدابو دے - اول ادب په باره دَ نجوی کښ دے په ۱۱۴ کښ دویم په باره دَ مشاقه دَ رسول او په مخالفت دَ صحابه کرامو کښ په تخویف سره په ۱۱۵ کښ - دریم په باره دَ شرک کښ عدم مغفرت دَ هغوی سره دَ رد دَ شرک فی الدعاء او شرک فی التحلیل والتحریم نه او تحذیر دَ شیطان نه دَ ۱۱۶ نه تر ۱۲۱ پورے او بشارت مؤمنانو ته ۱۲۵ کښ - بیا ذکر دَ تقابل دے په مینځ دَ تابعداری کوونکو دَ خواهشاتو او دَ وحی کښ او بنځه اوصاف دَ مؤمنانو دَ ۱۲۳ نه ۱۲۵ پورے - بیا دعوی دَ توحید په رد دَ شرک فی التصرف سره ۱۲۶ کښ - شپږم امر یعنی نهم قانون) په ذکر دَ حفاظت دَ حقوقو دَ زنانو، وړو بچو، یتیمانو او نکاح والو ښځو کښ تر ۱۳۰ پورے - بیا ذکر دَ توحید

دے دَپارہ دَ دریو مقاصدو او تخویف تر ۱۳۴ پورے۔ بیا جواب دَ
یو وهم دے په آخره ۱۳۵ کښ۔ (تفسیر) په دے آیت ۹۲ کښ
څلورم سیاسی قانون ذکر کوی چه هغه حکم دَ قتل خطائی دے
دَپاره دَ احتیاط کولو۔

ربط ۱ :- هرکله چه قتال دَ کافرانو بیا دَ منافقانو سره ذکر شو
نو اوس ذکر کوی حکم دَ قتل دَ مؤمن۔

ربط ۲ :- مخکښ آیت کښ ذکر وو چه دَ منافق په قتال باندے
(په سبب دَ اظهار دَ کفر او قتال کولو دَ مؤمنانو سره) سلطان (دلیل)
موجود دے نو اوس ذکر کوی چه څوک دَ ایمان دعویدار وی او
دَ هغه په کفر باندے هیڅ دلیل نه وی نو دَ هغه په قتل و قتال
باندے هیڅ سلطان نشته۔ نو اوفرمائیل چه وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ
اَنْ يَّقْتُلَ مُؤْمِنًا اِلَّا خَطَـًٔا ، دَ مَا كَانَ په باره کښ تفسیر په
سورة آلعمران کښ ذکر شویدے۔ دلته دَ جمهور مفسرینو
قول دا دے چه دا نفی په معنیٰ دَ نهی او تحریم سره ده لکه
په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ چه (وما کان لکم ان تؤذوا رسول الله
احزاب ۵۳) ځکه که چرے دا په معنیٰ دَ اخبار سره شی نو معنیٰ
به داسے شی چه هیڅ مؤمن بل مؤمن لره بغیر دَ خطاء نه نه
قتل کوی او نه ئے قتل کړیدے او دا خو دَ واقع نه خلاف
ده نو معلومه شوه چه دلته نهی مراد ده۔ اِلَّا خَطَـًٔا ، دا
استثناء منقطع ده په معنیٰ دَ لکن سره یعنی که چرے قتل
کړی یو مؤمن بل مؤمن لره په خطاء سره نو دَ هغے حکم
روستو وارد دے۔ او زمخشری وئیلی دی چه معنیٰ دَ نفی
اخبار دے یعنی لائق نه دی دَ شان دَ مؤمن سره چه بل
مؤمن لره په هیڅ علت او وجے سره قتل کړی مګر په علت
دَ خطائی سره یا په هیڅ حال کښ مګر په حال دَ خطائی کښ۔
بنا په دے قول سره الا خطاءً استثناء متصله ده لیکن
مفرغ ده۔ یا خطاء مفعول له دے یا حال دے۔ او قتل
خطائی هغه دے چه په هغے کښ دَ فعل (قتل) کولو اراده

نه وی - او یا دَ یو شخص یا دَ ویستلو دَ روح په غالب حالاتو کښې آله دَ قتل نه وی او اراده هم نه وی یا په هغې دَ فعل حرام قصد نه وی (آلوسی، مهائمی) او قرطبی وئیلی دی چه دَ خطاء اقسام ډیر دی لیکن جامع پکښې عدم قصد دے او مثالونه ئے دا دی چه څوک دَ مشرکانو کافرانو په صفونو باندے دَ قتال په وخت کښې گذار کوی لیکن په هغوی کښې مسلمان په هغې سره قتل شی - یا یو سړے دَ قتل مستحق وی او دَ هغه طلب کیږی خو دَ هغه په ځائے په بل چا باندے گمان اوشی او هغه لره قتل کړی - یا څوک ښکار کوی یا نخه اولی او په هغه گذار بل څوک مسلمان اولگی او مړ شی نو دا ټول دَ خطاء اقسام دی - او قرطبی ذکر کړیدی چه یو سړے دَ بل دپاسه اوغورزیگی او هغه لاندے کس مړ شی نو ده باندے به دیت او کفاره وی. یا یو شخص بل لره راکاږی او دواړه اوغورزیگی او مړه شی نو دیت به په عاقله (رخانداان) دَ راښکونکی باندے وی - دا رنگ صورتونه دَ تصادم، حادثو (ایکسیډنټ) کښې هم دیت ذکر کړیدے.

وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ، علیه لفظ پټ دے - رَقَبَةٍ، سټ نه وئیلے شی لیکن ذکر دَ جزء او مراد تری نه کل نفس دے او په عرف کښې دَ دے اطلاق په مریی او وینزه باندے کیږی ځکه چه دَ مملوکیت او غلامۍ دَ وجے نه هغه داسے بند وی لکه چه دَ سټ نه تړلے شوے وی.

مُّؤْمِنَةٍ ، په دے کفاره کښې دَ مملوک ایمان په استحقاق سره شرط دے یعنی کوم مریی یا وینزه چه آزادولے شی هغه به مؤمنان وی - او نابالغ تابع دَ مور او پلار دے په ایمان کښې دَ هغه په کفاره کښې ادا کولو کښې اختلاف دے -

فائده :- دلته ابن کثیر صحیح حدیث ذکر کړیدے چه نبی صلی الله علیه وسلم دَ یو وینزے نه تپوس اوکړو چه این الله (الله کوم ځائے دے) هغې اُوئیل چه په آسمان کښې دے بیا ئے ترینه تپوس اوکړو زهٔ څوک یم نو هغې اُوئیل رسول الله ئے.

نو نبی صلی اللہ علیہ وسلم او فرمائیل دا آزادہ کرہ (پہ کفارہ کښې) ځکه چه دا مؤمنه ده- دا حدیث مسلم، ابوداؤد، نسائی او امام احمد دَ معاویه بن حکم په روایت سره راوړی دے۔ او په موطاء دَ امام مالک کښې دَ عمر بن الحکم په روایت سره دے لیکن ابن عبد البر او زرقانی وئیلی دی چه دا دَ راوی وهم دے دَ ټولو محدثینو په نیز بانډے ځکه چه په صحابه کرامو کښې عمر بن الحکم هیڅوک نشته۔

ف:- یو وجه دَ کفارے (اګرچه خطاء ګناه نه دے) دا ده چه دلته جرم دَ قاتل بے احتیاطی کول دی۔ دویمه وجه دا ده چه په دے قتل سره تعطیل دَ بعضے حقوقو الهیو لازم شو چه دے بنده په حال دَ ژوند کښې دَ الله تعالیٰ بندګی کوله یا به دَ ده دَ نسل نه یو مؤمن پیدا شوے وے۔ دریمه وجه دا ده چه یو بنده ئے دَ هلے دَ ژوند نه اوویستلو نو لازم ده چه یو مملوک (چه پشان دَ مړی دے) هغه آزاد کړی چه دَ آزاد ژوند معاشرے ته راشی۔ (واللہ اعلم بحکم احکامه)

وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ، دیت هغه مال ته وئیلے شی چه په عوض کرویدنه دَ مقتول کښې دَ هغه وارث (متولی) ته ورکیدے شی۔ مُّسَلَّمَةٌ تسلیم، ادائیګی او ورکول دَ حق دی بغیر دَ ټنګولو نه۔ أَهْلِهِ، دَ دیته مراد هغه ورثه دی چه دَ هغوی دَ مقتول په ترکه (پریخودلے شوی مال) کښې دَ وراثت شرعی حق وی نو که په دغه وارثانو کښې څوک دَ ده قاتل وی یا مملوک وی یا کافر وی نو دَ هغه دَ پاره په دغه ترکه یا دیت کښې څه حصه نشته۔ بیا کفاره (مملوک آزادول) حق دَ الله تعالیٰ دے او دیت ورکول حق دَ بنده ده او په دے دیت ادا کولو سره دَ بدل اخستلو جوش وجذبه حتمه شی او مصالحت پیدا شی۔ دَ دیت نور تفصیلی احکام په صحیح احادیثو سره ثابت دی یعنی قرآن کریم کښې په دے مسئله کښې اجمال دے او احادیث دَ دے شرح ده نو معلومه شوه چه په قرآن کریم باندے

په عمل کولو کښې علم حدیث ته ډیر ضرورت دے - په مؤطاء امام مالک کښې حدیث دَ عمر رضی اللّٰه عنه حکم ذکر کړیدے چه هغه په سرو زرو والا بانىدے زر دیناره او په سپینو زرو والا بانىدے دولس زره درهمه قیمت کړے وو (په دیت کښې) او په یو روایت دَ ابو داود کښې دی چه نبی کریم صلی اللّٰه علیه وسلم په اوښانو والو بانىدے سل اوښان او غوانو والو بانىدے دوه سوه غوایان او په ګډو بیزو والا بانىدے دوه زره ګډے بیزے - او په کپړه والا بانىدے دوه سوه جوړے مقرر کړیدی - او موضح القرآن کښې لیکلی دی چه دیت په اعتبار دَ تولو سره سپین زر تقریباً دوه زره او ۴۲۶ سوه شلویشت تولے جوړیږی - په موجوده وخت کښې په دَ هغے دَ قیمت په اندازه دیت ورکولے کیږی -

دَ اهل سنت والجماعت په نیز بانىدے دیت ورکول دَ قاتل په خاندان بانىدے دی چه هغه دَ هغه عصبه دی - او که عاقله (خاندان) نه وی یا ډیر فقیران او بے وسه وی نو بیا به په بیت المال بانىدے وی - او دَ علی رضی اللّٰه عنه په فیصله او په قول دَ عمر او ابن عباس رضی اللّٰه عنهم سره ثابت ده چه دا دیت په دوی درے کالونو کښې دننه ادا کوی -

اِلَّآ اَنۡ یَّصَّدَّقُوۡا ، دا متعلق دے په علیه پټ پورے یا په مسلمة پورے یعنی لازم دے په هغه بانىدے دیت ورکول یا په سپارلے کیدیشی دا دیت په هر وخت اوقاتو کښې مګر په هغه وخت چه تصدق (خیرات، معافی) اوکړی اهل دَ مقتول په قاتل بانىدے یعنی دیت ورته معاف کړی - معاف کولو ته یې تصدق دَ ترغیب دَ پاره اُوئیلو لکه چه په سوره بقره ۲۸۰ کښې وو او دا په اصل کښې ابراء ده یعنی خپل حق او قرض پریخودل قرض والا ته -

فَاِنۡ کَانَ مِنۡ قَوۡمٍ عَدُوٍّ لَّکُمۡ وَھُوَ مُؤۡمِنٌ ، کَانَ ، ضمیر مقتول خطاء ته راجع دے - دَ قَوۡمٍ عَدُوٍّ نه مراد حربیان

کافران دی یعنی دا مقتول په هغوی کښ اوسیږی هجرت یې
نه وی کړے اوحال دا چه صحیح مؤمن وی خو دَ هجرت وس
یې نه وی یایې کړے نه وی (یعنی گنهگار وی په ترک دَ هجرت
سره) لیکن دَ نفاق او کفر هغه علامات پکښ نه وی کوم چه په
۸۹ کښ ذکرشول نو فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ، دلته هم علیه
لفظ پټ دے یعنی په دغسے قاتل باندے صرف کفارة واجب
ده او دیت واجب نه دے دَ هغې یوه وجه دا ده چه دیت ورکول
په اصل کښ دَ وارثانو حق دے او دَ ده وارثان کافران دی
هغوی له دَ ده په مال کښ حق دَ وراثت نشته - دویمه وجه دا
ده چه دَ دے مؤمن حرمت او عزت ناقص دے دَ وجے دَ
عدم هجرت نه نو حکم دَ قتل یې هم ناقص دے لکه چه سورة
انفال ۷۲ کښ دی - او دلیل په دیکښ حدیث دَ اسامه رضی الله
عنه دے چه امام مسلم رحمه الله راوړیدے چه هغه یو شخص
په دارحرب کښ قتل کړو هغه شخص په دغه وخت کښ لا اله
الا الله أو ئیل لیکن دَ ده گمان دا وو چه دا صرف دَ یرے دَ
وجے نه وائی - نو نبی صلی الله علیه وسلم په هغې باندے خفگان
ښکاره کړو لیکن حکم دَ قصاص او دیت یې اونکړو او دَ مرپي دَ
خلاصولو حکم یې اوکړو (قرطبی) -

وَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍۢ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ
اِلٰٓى اَهْلِهٖ وَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ، په دیکښ مشهور دوه
اقوال دی - اول قول دا چه دَ دینه مراد مؤمن دے چه په
کافرانو معاهدینو کښ اوسیږی او په خطاء سره قتل کړیشی -
دا قول دَ حسن بصری ، جابر بن زید او ابراهیم نخعی رحمهم
الله دے - نو په دیکښ دیت ورکول هم شته دے او آلوسی وئیلی
دی چه اهله نه مراد دَ ده خاندان (وارثان) مسلمانان دی
کافرانو ته به نشی ورکیدے ځکه چه کافر دَ مسلمان نه وارث
نشی جوړیدے - او قرطبی وئیلی دی چه دَ ده دیت به کافرانو
ته دَ معاهدے دَ وجے نه ورکیدیشی - او دویم قول دا ابن عباس

رضی اللہ عنهما او شعبی رحمه الله وغیره دے چه دَ دے نه
مراد معاهد (ذمی) مقتول دے مؤمن نه دے مراد ځکه
دلته ئے وهو مؤمن نه دے وئیلی نو دَ هغه دیت په عهد دَ
وجے نه کافرانو ته ورکیدیشی) او دَ هغه په دیت کښ اختلاف
دے چه نیم دیت به وی یا به پوره وی دَ مؤمن دَ دیت سره.
ابن عربی دلته اول قول غوره کړیدے چه دَ دیته مراد مؤمن
مقتول دے ځکه بحث په هغے کښ جاری دے او مطلق حمل
دے په مقید باندے - او ابن جریر دویم قول غوره کړیدے.
فائده :- دلته ئے دیت په کفاره باندے مخکښ ذکر کړیدے
دا دَ هغه دَ اهتمام دَ پاره او دَ وهم دفع کولو دَ پاره ځکه چه قوم
ئے کافر دے نو وهم کیدیشی دَ دیت نه ورکولو نو اول ئے اوفرمائیل
چه دیت شته - میثاق ، دَ دیته مراد دَ مؤمنانو او کافرانو په
مینځ کښ معاهده کول دی دَ ترک قتال دَ پاره - برابره خبره
ده که دا معاهده وقتی طور وی یا همیشه دَ پاره وی -
فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ ، دَ لَمْ يَجِدْ مفعول
پټ دے یعنی مومنه رقبه دَ آزادولو دَ پاره او نه موهی یا دَ ده
په ملکیت کښ نه وی یا ورسره دَ هغے قیمت نه وی یا ملاویږی
نه لکه په دے زمانه کښ- نو بیا په قاتل باندے په کفاره کښ
دوه میاشتے پرله پسے روژے نیول لازم دی - او دا پرله پسے والے
په اتفاق سره په حیض او نفاس سره نه ماتیږی او په مرض
کښ دَ اهل علمو اختلاف دے -
تَوْبَةً مِّنَ اللّٰهِ ، دا مفعول له دے دَ پټ فعل دَ پاره یعنی
شرع لکم ذلك (لازم ئے کړو په تاسو باندے دا حکم دَ
قبولیت دَ توبے دَ پاره) - په دے توبه کښ دوه اقوال دی اول قول
دا دَ دے شخص (قاتل) دَ بے احتیاطئ دَ وجے نه او دا هم
مِنْ وجه گناه دے - دویم قول دا دے چه دا توبه په معنیٰ
دَ تخفیف ده یعنی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دا اسانتیا ده په
تاسو باندے چه دا توبه په معنیٰ دَ تخفیف ده یعنی دَ الله تعالیٰ

دَ طرف نه دا آسانتیا ده په تاسو باندے چه دَرقبه په ځائے درنه روژے قبلوی - او تاب، په معنیٰ دَ تخفیف سره په قرآن کښ ډیر استعمال دے لکه سوره توبه ۱۱۷، سوره مزمل ۲۰ او سوره بقره ۱۸۷ -

جصاص وئیلی دی چه دا کفاره او دا توبه امر تعبدی دے په دے خبره دلالت نه کوی چه قتل خطاء گناه دے -

وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ، عالم دے په هرڅه نو په حال دَ قاتل باندے هم علم لری - او حکیم دے یعنی په دے احکامو کښ دَ هغه ډیر حکمتونه دی -

فائده ۱ه (اقسام دَ قتل)

دَ امام مالک رحمه الله په نیز دَ قتل دوه قسمونه دی یو قتل عمد او بل قتل خطاء - او دَ جمهورو اهل علمو په نیز درے اقسام دی - ۱ عمد ۲ شبه عمد ۳ خطاء - په عمد کښ قصاص دے او شبه عمد او خطاء کښ قصاص نشته دیت دے - فرق ئے دا دے چه قتل عمد کښ شرطونه دی چه قاتل عاقل بالغ وی او دَ یو انسان معصوم الدم (بے گناه) دَ قتل قصد اوکړی په داسے آله سره چه په هغے سره غالبًا قتل کیدیشی او پدے کښ په اور سره سوځول او اوبو کښ غرق کول او دَ غر دَ سر نه غورځول او دَ اوچت ځائے نه رارغړول یا راغورځول، دیوال پرے راغورځول، مرئ خفه کول، یو انسان قید کول او خوراک څښاک نه ورکول تر دے چه مړ شی، په درندا کاتو خوړل، او چه په یو انسان باندے په موجب دَ دم سره دَ دروغو شهادت ورکړی تر دے پورے چه هغه قصاص او قتل کړے شی بیا دَ شهادت نه رجوع اوکړی، چاله زهر یا بل څه دوائی ورکول چه هغه پرے مړ شی نو دا ټول په قتل عمد کښ راځی -

قتل شبه عمد دا دے چه قصد اوکړی دَ یو معصوم الدم انسان دَ قتل په داسے څیز سره چه په هغے باندے غالبًا قتل نشی

واقع کیدے لیکن وهی تکوی ئے تر دے چه مړشی لکه د اٹک لوړ او کټه وغیره پدیکښ وهل مقصد وی خو قتل کول ئے مقصد نه وی دَ دے وجے دیته مشابه دَعمد وئیلے شی او پدیکښ دیت مغلظه واجب کیږی - پد یکښ دَ امام احمد، ابو داؤد او امام نسائیؒ په نقل سره حدیث وارد دے چه نبی صلی الله علیه وسلم دَ فتح مکه په خطبه کښ فرمائیلی ووچه مقتول دَ خطاء العمد په کوړے، همسا او په کټے سره دے - او قتل خطاء دا دے چه انسان یو مباح کار کوی لکه ښکار کول یا نشانه بازی او په هغے سره یو انسان معصوم الدم قتل شی یا څوک کوهی اوکنی او هغے کښ څوک پریوځیٰ (خو زمکه مملوکه او مباحه وی) یا ئے یو جال خور کړے وی دَ بل څه غرض دَپاره او په هغے کښ یو انسان اونخلی او مړ شی - او دَ دے په حکم کښ هغه قتل عمد هم دے چه دَ غیر مکلف نه صادر شوے وی لکه وړوکے نا بالغ یا لیونے چا لره قصدًا قتل کړی - نو دا هم دَ خطاء په حکم کښ داخل دے فقه السنه (جلد ۲ صفحه ۴۲۲) - او ابو حیان پدیکښ څلورم قسم ذکر کړیدے چه هغه نه عمد دے او نه شبه عمد او نه خطاء دے لکه قتل په سهو سره یا په خوب کښ لیکن دا قول غیر معروف دے ما دَ بل چا نه اوریدلے، لیدلے نه دے - والله اعلم بالصواب -

فائده ۲ :- هرکله چه یوه مور خپل بچے په خوب کښ دَ ځان دَ لاندے کړی او هغه مړ شی نو دا هم قتل خطاء دے کفاره او دیت پکښ واجبیږی لکه چه شیخ محمد عثیمین په خپل کتاب دروس حرم جلد ۲ صفحه ۱۲ کښ لیکلی دی ځکه چه دَ قتل خطاء تعریف په هغے باندے صادق دے مشابه دے دَ هغے سره چه شخص په بل چا باندے په دیخه په خطائیٰ سره راوغورزیږی او هغه مړ شی چه هغه هم قتل خطاء دے - دلته دَ والدیت دَ وجے دَ قصاص نه دیت ساقطیږی لیکن دَ کفارے سقوط نه راځی -

سوال :- (رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثٍ عَنِ الْمَجْنُوْنِ حَتّٰى يَفِيْقَ

وَمَنْ يَّقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا

او چاچه قتل کړو مؤمن لره په قصد سره

فَجَزَآؤُهٗ جَهَنَّمُ خٰلِدًا فِيْهَا

نو سزا دَ هغه جهنم دے ډیر وخت پورے به وی په هغے کښ

وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهٗ وَاَعَدَّ لَهٗ

او غضب کړیدے الله تعالیٰ په هغه باندے او لعنت کړیدے په هغه باندے او تیار کړیدے هغه لره

عَذَابًا عَظِيْمًا ﴿۹۳﴾

عذاب لوئے۔

وَعَنِ النَّائِمِ حَتّٰى يَسْتَيْقِظَ وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتّٰى يَحْتَلِمَ) رواه احمد، ابوداؤد والترمذی۔ ړپورته کړے شویدے قلم دَ درے کسانو نه۔ دَ لیونی نه ترڅو پورے چه په هوش شی دَ اوده نه ترڅو چه راویښ او بیدا شی او دَ نابالغ نه ترڅو چه بالغ شی) دا حدیث دلالت کوی چه په دے مسئله کښ (چه موړ اوده وی) مکلف نه دے په کفاره وغیره باندے؟

جواب:۔ دَ رفع القلم نه مراد دا دے چه گناه ئے نشته رفع دَ حکم نه دے مراد په دلیل دَ یل حدیث سره لکه (رُفِعَ عَنْ اُمَّتِي الْخَطَاءُ وَ النِّسْيَانُ)۔ په دے حدیث کښ بالاتفاق رفع دَ گناه مراد دے او احکام شرعیه خو په خطاء او په هیره باندے په ډیرو عباداتو او جنایاتو کښ مرتب کړے شویدی لکه په مونځ کښ دَ خطاء کیدلو دَ پاره سجده سهوه واجب دے او په خطائی سره خوراک څښاک سره مونځ فاسدیږی اگرچه دا گناه نه دے (والله اعلم بالصواب)۔

س۹۳:۔ دَ قتل خطاء دَ حکم نه روستو دَ قتل عمد حکم ذکر کوی۔ او حکم دَ قتل عمد دوه قسمه دے۔ او حکم دنیوی چه قصاص او دیت دے هغه ذکر کړے شویدے په سورة بقره س۱۷۸ کښ۔

دوېم قسم حکم اخروي دے نو هغه دلته ذکر کوي - هر کله چه په سوره بقره کښ مقصود رد کول وو په يهوديانو باندے نو هلته ئے دَ قصاص حکم ذکر کړے وو ځکه چه يهوديانو په هغے کښ تحريف کړے وو - او دلته خو دَ مؤمنانو ذکر دے نو دَ هغوي دَ تحذير دَپاره حکم اخروي ذکر کوي چه هغه تخويف اخروي دے په قتل عمد سره -

وَمَنْ يَّقْتُلْ مُؤْمِنًا ، تنکير کښ اشاره ده که مؤمن کامل وي يا فاسق وي (بغير دَ اباحت دَ دم دَ هغه نه) مذکر وي او که مؤنث وي بالغ وي او که نابالغ وي - او دا قاتل دَ هغه په ايمان باندے عالم وي -

مُّتَعَمِّدًا ، دا حال دے دَ فاعل دَ يقتل نه دلته په ديکښ عمد او شبه عمد دواړه داخل دي ځکه چه په حکم اخروي کښ دواړه برابر دي -

فَجَزَآؤُهٗ جَهَنَّمُ ، جزاء په گناه کښ هغه بدله وي چه مجرم په سبب دَ جرم سره دَ هغے مستحق اوګرځي -

خٰلِدًا فِيْهَا ، خلود اوږد حصاريدلو ته وئيلے شي او هميشوالي ته هم وئيلے شي او کله چه لفظ ابد ورسره ذکر شي نو بيا ترينه پوره هميشوالے مراد وي -

وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ ، دَ الله تعالٰى دَ طرف نه غضب انتقام اخستل دي بغير دَ عفو کولو نه -

وَلَعَنَهٗ ، لعنت په معنٰى دَ رحمت خاصه نه محروميدلو دي يعنى دَ جنت نه به محروم وي -

وَاَعَدَّ لَهٗ عَذَابًا عَظِيْمًا ، داسے لوے شان والا عذاب چه دَ هغے په مقدار صرف الله تعالٰى عالم دے - په دےکښ پنځه تاکيدات ذکر کړيدي او په آخري تاکيد کښ چه اعد له عذابا عظيما دے درے تاکيدات دي - دا ټول دلالت کوي په ډير خباثت دَ قتل دَ مؤمن باندے په عمد سره او دا رنګ ابن کثير ډير احاديث پدے باره کښ ذکر کړيدي -

فائده:- دَ معتزلو مذهب دا دے چه قاتل دَ مؤمن په قتل عمدی سره او دا رنګ دَ هر ګناه کبیره مرتکب بغیر دَ شرک نه هغه به همیشه په جهنم کښ وی - او هغوی په دے آیت سره دلیل نیسی. او دَ ابن عباس رضی الله عنهما مذهب دا دے چه دَ مؤمن قاتل په قتل عمدی سره دَ هغه توبه نه قبلیږی او هغه به همیشه په جهنم کښ وی او دا قول ابن کثیر دَ زید بن ثابت، ابوهریره او ابن عمر رضی الله عنهم او ابوسلمة بن عبد الرحمٰن او عبید بن عمر، حسن، قتاده او ضحاک رحمهم الله وغیره نه هم نقل کړیدے - او قرطبی دَ ابن عباس، ابن عمر، زید بن ثابت رضی الله عنهم نه بل روایت ذکر کړیدے چه دَ ده توبه مقبوله ده - لیکن اول روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما امام بخاری په روایت دَ سعید بن جبیر سره نقل کړیدے او دَ هغے حاصل دا دے چه هغه وئیلی دی چه آیات دَ سورة فرقان ۶۹، ۷۰ په دے آیت سره منسوخ دی ځکه چه هغه مکی دی او دا مدنی آیت دے - او وئیلی دی چه دا آیت په هیڅ آیت سره نه دے منسوخ بلکه په دے مسئله کښ دا آخری آیت دے - او ابن کثیر او قرطبی وغیره وئیلی دی چه دَ جمهورو سلفو دَ امت او خلقو مسلک دا دے چه دَ دے قاتل توبه قبوله ده چه صحیح توبه اوکړی او انابت، خشوع او خضوع اوکړی او نیک اعمال کوی او وارثان دَ مړی رضا کړی، په دلیل دَ سورة فرقان ۶۹، ۷۰، سورة زمر ۵۳، او دا سورت ۱۱۶ - ځکه مخکښ دوه آیتونه عام دی ټولو ګناهونو ته (شرک، نفاق او قتل وغیره) او روستنے آیت ما سیوا دَ شرک نه نورو ټولو ګناهونو ته شامل دے - او حدیث بخاری او مسلم چه یو قاتل چه په بنی اسرائیلو کښ سل کسان وژلے وو په سبب دَ توبے سره معاف کړے شو نو دَ دے امت نه یو قاتل خوخامخا په توبه سره معاف کیږی چه الله تعالی او غواړی ځکه چه دا امت دَ هغوی نه غوره دے - او قرطبی دے قول ته صحیح وئیلی دی-

او دَ دے آیت په باره کښې دَ سلفو صالحینو ډیر اقوال نقل دي:
اول دا چه دا مطلق به په مقید باندے حمل شي یعنی جزاء ئې دا ده لیکن چه توبه اوباسي نو دغه جزاء معاف ده په قرینه دَ دغه آیاتونو او نورډیر صحیح احادیثو سره چه ابن جریر او ابن کثیر وغیرهما ذکر کړي دي۔
دویم قول دا دے چه ابو هریره رضي الله عنه فرمائیلي دي که چرے الله تعالیٰ جزاء ورکوي نو دا ئې جزاء ده لیکن په سبب دَ توبے دا جزا ساقطیږي دا سے نه دي فرمائیلي چه دا شخص به اور ته داخلیږي او همیشه به وي په هغے کښې بلکه صرف استحقاق دَ جزاء ئې ذکر کړیدے۔
دریم قول دا دے چه دَ خلود نه مراد مکث طویل (ډیره زمانه) ده او قرطبي وئیلي دي چه په دے معنیٰ سره په قرآن کریم کښې دا لفظ په سورة انبیاء ۳۴ او سوره همزه ۳ کښې هم راغلي دي او په عرف دَ عربو کښې هم استعمال دے۔ او دَ دے وجے نه ئې دَ دے سره دلته لفظ دَ ابد نه دے ذکر کړے۔
څلورم قول ابو السعود وئیلي دي چه دا آیت او دَ ابن عباس او نورو سلفو رضي الله عنهم قول په تشدید او تغلیظ باندے حمل کړے دَ دے دَ پاره چه دَ مؤمن دَ قتل عمد نه منع او کړے شي۔
پنځم قول دا منسوخ دے په سوره فرقان او نورو آیاتونو سره۔ لیکن ابن عطیه وغیره وئیلي دي چه دا جواب ضعیف دے ځکه چه دا اخبار دے او په اخباراتو کښې نسخ نه راځي۔ او دَ ابن عباس رضي الله عنهما قول دَ صحیح او صریح روایتونه (چه اول ذکر شو) خلاف دے۔ دارنګ چا دا آیت په کافرانو پورے خاص کړیدے په سبب دَ شان نزول دَ دے سره یا ئې دَ دے تاویل کړیدے په مستحل سره (چه څوک دَ مؤمن قتل حلال ګنړي یا ئې دَ ایمان دَ وجے نه قتل کوي)۔
دغه اقوال احتمالات لري لیکن اهل تحقیق ضعیف کړیدي۔
هاں ابن کثیر وئیلي دي چه په توبے سره مطالبه دَ حق دَ بنده

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا ضَرَبْتُمْ

اے ایمان والو! چه سفر کوئ تاسو

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَتَبَيَّنُوْا وَلَا تَقُوْلُوْا

په لار دَ الله تعالیٰ کښ نو تحقیق کوئ او مه وایئ

لِمَنْ اَلْقٰۤى اِلَيْكُمُ السَّلٰمَ لَسْتَ

هغه چاته چه پیش کړی تاسو ته کلمه دَ اسلام چه نه یئ

مُؤْمِنًا ۚ تَبْتَغُوْنَ عَرَضَ الْحَيٰوةِ

مؤمن غواړئ تاسو سامان دَ ژوند

الدُّنْيَا ۫ فَعِنْدَ اللّٰهِ مَغَانِمُ

دنیوی پس دَ الله تعالیٰ سره غنیمتونه

كَثِيْرَةٌ ؕ كَذٰلِكَ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلُ

ډیر دی، دغسے وئ تاسو مخکښ

فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوْا ؕ

نو احسان اوکړو الله تعالیٰ په تاسو باندے (په کلکولو سره) پس تحقیق کوئ

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ

یقیناً الله تعالیٰ په هغه عملونو چه تاسو کوئ

خَبِيْرًا ﴿۹۴﴾

په خبر دار دے۔

نه سا قطیږی او مطالبه خو سزا ته ده هغه خو په ټولو حقوق العباد کښ شته دے۔ او هغه په دنیا کښ په رضا کولو دَ خاوند دَ حق یا په فضل دَ الله تعالیٰ سره هم حاصلیدے شی۔

۹۴:۔ په دے آیت کښ پنځم امر سیاسی دے چه اسلامی فوج

بائدے لازم دی چه دَ سفر په وخت پوره تحقیق او وضاحت کوئ هسے نه چه دَ دوی دَ لاس نه مؤمن قتل شی۔
ربط له :۔ مخکښ ئے حکم دَ قتل خطائی ذکرکړو عموماً اوس دَ قتل خطائی یو قسم ذکرکوی۔
ربط ۲ه :۔ مخکښ چه دَ قتل خطائی حکم ذکرکړو نو اوس دَ مؤمن دَ قتل کولو نه دَ بچ کیدلو طریقه بنائی۔
یَآاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا ضَرَبْتُمْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ ، اشاره ده چه تبین او بیداری دَ ایمان تقاضا ده۔ اِذَا ضَرَبْتُمْ ، (کله چه تاسو سفر کوئ) دَ سفر ذکر ئے دَ دے وجے نه اوکړو چه یو شخص نه پیژندل چه دا مؤمن دے یا مؤمن نه دے دا اکثراً او غالباً په حالت دَ سفر کښ وی اګر چه دا حکم حضر ته هم شامل دے۔
فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ ، دا لفظ هم دَ تحقیق او تبین دَ تاکید دَ پاره دے یعنی چه تاسو دَ الله تعالیٰ دَ کلمے دَ اوچتوالی دَ پاره سفر کوئ نو دَ چا نه چه دغه کلمه واورئ نو خامخا تحقیق کوئ۔
فَتَبَیَّنُوْا ، امام راغب وئیلی دی چه تبین او تحقیق مستلزم دے مخکښ تثبیت لره یعنی اول دا یو خیز ثبوت ملاؤ شو نو روستو دَ ثبوت نه دَ هغے دَ ښکاره کولو کوشش اوکړے شی نو معلومه شوه چه تبین ابلغ دے دَ تثبیت نه۔ او ابوعبید او ابن عطیه وئیلی دی چه تبین او تثبیت یو شان دی لیکن اول قول غوره دے او په تبین کښ مقصد دا دے چه په هغه بائدے بغیر دَ تحقیق نه دَ کافر حکم مهٔ کوئ بلکه مخکښ وضاحت اوکړئ او دَ دے تحقیق مختلفے طریقے دی۔ یعنی که هغه کلمه دَ اسلام وائی نو تپوس تری نه اوکړئ چه دَ شرک او کفر نه توبه کوی او که نه او دَ کافرانو نه براءت کوئ او که نه۔ او اوګورئ چه دَ شرک او کفر علامات پکښ شته او که نشته۔ دا رنګ چه په یو کلی کښ شعائر دَ اسلام اووینئ نو حمله به پرے نهٔ کوی ځکه چه په حدیث کښ راغلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم به په یو کلی کښ اذان واوریدلو نو دَ هغوی نه به بند شو

(یعنی حمله په ئے بنده کړه) - او په مسند دَ حمیدی، طبرانی او بزار حدیث نقل کړیدے چه نبی صلی الله علیه وسلم په سریه لیږله نو هغوی ته به یئے او فرمائیل چه هر کله مسجد او وینئ یا اذان واورئ نو هیچا لره مه قتلوئ (اللباب) -
وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَىٰ إِلَيْكُمُ السَّلَامَ لَسْتَ مُؤْمِنًا، دا عطف دَ مسبب دے په سبب باندے یعنی تبین او تحقیق سبب دے دَ پاره دَ معنے دَ دے قول نه - دارنګ په دے جمله کښ اشاره ده چه تبین دَ اشتباه دَ رفع کولو دَ پاره دے او اشتباه په سبب دَ سلام اچولو سره راځی - القاء کنایه ده دَ پوره اظهار نه چه مخاطب تر ینه دا سے خبر شی لکه چه یو څیز دَ هغه مخے ته غورځولے شوے وی - السَّلَامَ، په دیکښ یو مشهور قراءت السلام دے او هغه په معنیٰ دَ تحیه دَ اسلام دے یا په معنیٰ دَ استسلام (انقیاد) دے - او ابن عطیه وئیلی دی چه په معنیٰ دَ ډډه کولو او ترک کولو سره دے - او په بل قراءت کښ په السلم سره دے هغه هم په معنیٰ دَ انقیاد او اطاعت سره دے -
او په اسباب نزول کښ په یو روایت دَ امام احمد، ترمذی او بخاری کښ راغلی دی چه یو شخص صحابه کرامو ته السلام علیکم وئیلی وو (او دا کلمه په هغه زمانه کښ علامت دَ اسلام وو) - او په روایت دَ ابن جریر کښ راغلی دی چه هغه شخص وئیلی وو چه زهٔ تسلیم یم - او په بل روایت دَ بزار کښ دَ مقداد بن اسود په روایت سره ذکر دی چه هغه شخص أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ أوئیل او صحابه کرامو خیال اوکړو چه دا شخص دا کلمه دَ ځان بچ کولو دَ پاره وائی نو هغوی قتل کړو (او دا قتل خطائی دے) - نو دا روایات دلالت کوی چه لفظ السلام دے تولو کلما تو ته عام دے - دَ دے جملے حاصل دا دے چه هر کله یو شخص علامت دَ اسلام ښکاره کړو او په هغه کښ تاسو ته دَ کفر هیڅ علامت نه ښکاری نو په دا سے شخص باندے دَ مشرک او کافر حکم مهٔ کوئ -

فائده:- اوس که یو شخص دَ شرک او کفر کارونه کوی (مثلاً قبر پرستی دُعا دَ غیر الله او دَ هغوی نذرونه وغیره)- او دَ دے سره کلمه دَ اسلام هم وائی نو دا شخص په دے آیت کښ داخل نه دے ځکه چه آیت کښ هغه خوک مراد دی چه په هغه کښ دَ کفر او شرک هیڅ علامات او کارونه ښکاره نشته۔

تَبْتَغُونَ عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا، دلته همزه، دَ استفهام دَ توبیخ دَ پاره پټه ده- یا دا جمله حال دے دَ ضمیر دَ تقولو نه- عَرَضَ، نه مراد هغه غنیمت او سامان دے چه دَ دغه مقتول سره وی (او ټول سامانونه دَ دنیا ته عرض وئیلے شی ځکه چه زر فنا کیدونکے دے بقا او قوام نه لری)- او عرض، (په سکون سره) ماسیوا دَ روپو او اشرفو ته وئیلے شی (قرطبی)۔

فَعِنْدَ اللّٰهِ مَغَانِمُ كَثِيْرَةٌ، دا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه وعده ده دَ مجاهدینو سره یعنی الله تعالیٰ به تاسو ته په حلاله او جائزه طریقے سره بغیر دَ څه شبهے نه غنیمتونه او مالونه درکړی- او مقاتل وئیلی دی چه دا نعمتونو دَ آخرت ته هم شامل دے۔ مَغَانِمُ، جمع دَ مغنم دے ظرف مکان او زمان او مصدر میمی درې واړه کیدیشی- غنیمت په شرع کښ هغه مال ته وئیلے شی چه دَ دشمن کافرانو نه په جنګ سره حاصل شی۔

كَذٰلِكَ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلُ فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوْا، سعید بن جبیر وئیلی دی چه په اول کښ تاسو هم دَ قوم (کافرانو) دَ یرے دَ وجے نه ایمان پټ ساتلو پشان دَ دغه قتل کړے شوی نو الله تعالیٰ په تاسو احسان اوکړو یعنی عزت او قوت ئے درکړو ترد یورے چه تاسو خپل ایمان ښکاره کړو- او مقاتل وئیلی دی چه تاسو دَ هجرت کولو نه مخکښ دَ کافرانو په مینځ کښ وئ نو دَ صحابه کرامو په مخکښ به تاسو کلمه دَ اسلام وئیله دَ خپل امن دَ پاره نو الله دَ هجرت توفیق درکړو-

سوال:- ټول صحابه کرام خو په اول وخت کښ دا سے نه وو

نو دا تشبیه څرنګ صحیح ده ؟
جواب :- دلته په خطاب کښ ټول صحابه کرام نه دی مراد بلکه بعض مراد دی چه د هغوی اول حال د غسې وو- او په خطاب کښ دا قانون دے چه د بعضو په اعتبار سره خطاب ټولو ته کیږی.
او اکثر مفسرینو وئیلی دی چه په تشبیه سره مراد دا دے چه اول وخت کښ چه تاسو په اسلام کښ داخل شوئ نو صرف په وئیلو د کلمه توحید سره ستاسو مالونه او وینې په حق د اسلام سره محفوظ شول د دے خبرے انتظار نه وو چه آیا ستاسو زړونو کښ ایمان شته او که نه- نو اوس هم د اول داخلیدونکو د اسلام سره دا سے کار کوئ په ظاهری اقرار باندے اکتفاء کوئ.
په دے قول باندے دغه سوال نه پیښ کیږی- فَتَبَيَّنُوٓا ، دا تکرار د تاکید د پاره دے یا د اول نه مراد تبیین د هغه چا دے چه تاسو د هغوی د قتل کولو اراده لرئ او په دویم کښ تبیین د نعمت د الله تعالی دے په تاسو باندے چه هغه اسلام دے- چه هغه په لفظ د فمن الله علیکم کښ ذکر شو.
اِنَّ اللهَ کَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ، په دے جمله کښ هم تحذیر دے او خبیر هغه ذات دے چه عالم وی پټو خبرو باندے پشان د علم په ظاهر باندے او هغه صرف الله تعالی دے.
فائده :- صاحب اللباب وئیلی دی که چرے یهودی یا نصرانی او وائی چه زه مسلمان یم نو په دے کلمه هغه نه مؤمن نشی وئیلے کیدے ځکه چه هغوی خپل دین ته هم کله کله اسلام وائی او که کلمه د اسلام لا اله الا الله محمد الرسول الله او وائی نو هم د هغه په اسلام باندے حکم نشی کیدے ځکه چه هغوی د توحید کلیے د الفاظ نه منکر دی- او دارنګ د محمد صلی الله علیه وسلم رسالت صرف عرب امیانو ته منی نو ځکه ضروری ده چه اقرار په کوی چه زمونږ دین باطل دے او اوس چه کوم دین اسلام دے نو هغه حق او فرض دے.

لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ

نه دي برابر ناست كسان دَ مؤمنانو نه

غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجٰهِدُوْنَ

سيوا دَ عذاروالو نه او جهاد كوونكي

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ

په لار دَ الله تعالىٰ كښ په مالونو خپلو

وَاَنْفُسِهِمْ ؕ فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ

او په ځانونو خپلو، غوره والے وركړيے الله تعالىٰ جهاد كوونكو ته

بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ

په مالونو خپلو سره او ځانونو خپلو سره په ناستو كسانو باندے

دَرَجَةً ؕ وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ

يو درجه، او هريو سره وعده كريده الله تعالىٰ

الْحُسْنٰى ؕ وَفَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ

دَ جنت او غوره والے وركړيدے الله تعالىٰ جهاد كوونكو لره

عَلَى الْقٰعِدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۹۵﴾ لا

په ناستو كسانو ثواب لوے۔

دَرَجٰتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَّرَحْمَةً ؕ

ډيرے درجے دَطرف دَالله تعالىٰ نه او بخنه كول او خاص رحم،

وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۹۶﴾ ع ۱۳ / ۱۰

او دے الله تعالىٰ بخنه كوونكے رحم كوونكے۔

ف۹۵، ف۹۶ :۔ په دے آيتونو كښ ترغيب دے جهاد (قتال) في سبيل الله ته۔

ربط :- هر کله چه مخکښ اُوئیلے شو چه بغیر دَ تحقیق کولو نه سفر دَ جهاد کښې څوک مه قتلوئ (کله چه کلمه دَ اسلام ظاهرًا او وائی) هسے نه چه ګنهګار شئ نو وهم راغے چه هر کله داسے حالت خامخا پیښیږی راځی نو ښه دا ده چه دَ جهاد دَپاره په سفر نه کوو- نو دَ هغهٔ وهم دَ ازالے دَپاره اُوئیلے شو چه دَ جهاد ثوابونه په داسے وهمونو سره مهٔ پریږدئ او دَ جهاد کولو نه مهٔ کینئ-

لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ، دَ کیناستلو نه مراد شرکت نه کول دی په جهاد فی سبیل الله کښې- او دَ دینه مراد هغه کسان دی چه هغوی ته دَ وجے دَ عدم ضرورت نه جهاد ته دَ پاتیکیدلو اجازت دے- او په روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما کښې دَ دینه مراد هغه کسان دی چه دَ بدر په غزوه کښې شرکت نه دے کړے ځکه چه په هغے کښې شرکت کول لازم کړے شوے نه وو) نو دَ دواړو اقوالو مقصد یو شان دے- او دَ ابو حمزه نه روایت دے چه دَ دینه مراد دَ غزوه تبوک نه پاتیکیدونکی دی او هغوی بے اجازته پاتے شوے وو لیکن دا قول ضعیف دے- مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ، دا حال دے دَ القاعدون نه او په دیکښې اشاره ده چه قعود (پاتے کیدل) دَ جهاد نه سبب دَ کفر نه دے-

غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ، په دیکښې قراءت دَ پیښ او دَ زور او دَ زیر دریواړه شته لیکن دَ اکثرو په نیز په پیښ سره دے- نو په حال دَ پیښ کښې بدل دے دَ القاعدون نه یا صفت دے ځکه چه القاعدون په سبب دَ مصداق سره نکره ده نو صفت ئے په غیر مضاف کړی شوی سره جائز دے- او زجاج وئیلی دی چه دا غیر په طریقه دَ استثناء سره دے یعنی الا اولی الضرر- لیکن اول قول پکښې غوره دے ځکه چه دا کلام نفی ده او په دیکښې بدلیت غوره وی- او دَ الضرر نه مراد دَ بدن نقصان دے یعنی روند، ګوډ یا ډیر مریض وغیره یا دَ مال نقصان مراد دے یعنی دَ جهاد دَ سفر دَپاره ورسره سامان تیار نشته- نو غیر اولی الضرر نه مراد صحیح روغ بدن والا دی چه سامان

دَ سفر ورسره شته دے - او په حدیث دَ بخاری کښ ثابت ده چه دا لفظ (غیر اولی الضرر) په سبب دَ طلب دَ عبد الله بن ام مکتوم سره روستو نازل شو۔
وَالْمُجٰهِدُوْنَ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ: هر کله چه فعل دَ یستوی په صرف فاعل سره نه پوره کیږی بلکه جانب مقابل غواړی نو دا ئے جانب مقابل ذکر کړو۔ اَمْوَالِهِمْ، دا ئے دَدے وجے نه مخکښ راوړو چه انسان پخپله جهاد کوی نو هم انفاق دَ مال ورسره وی او که پخپله نه کوی نو انفاق دَمال اوکړی نو بیا هم یو قسم جهاد ئے اوکړو نو معلومه شوه چه جهاد دَ مال عام دے۔ دَ آیت معنیٰ دا ده چه مؤمنان چه جهاد له نه دی تلی او روغ جوړ دی نو برابر نه دی دَ هغه چا سره چه جهاد ئے کړے وی په مال او په نفس سره۔ او دَ دینه مراد عدم مساوات دے په فضیلت او ثواب کښ لیکن په لفظ دَ لا یستوی کښ ابهام دے ځکه چه دَ درجاتو دَ فرق تعین پکښ نه دے شوے۔
سوال :- لفظ دَ غیر اولی الضرر دلالت کوی چه پاتے شوی معذوره دَ مجاهدینو سره برابر دی او که دلالت نه کوی؟
جواب :- بعضو علماؤ وئیلی دی چه دا دلالت نه کوی ځکه غیر که صفتی شی نو تخصیص دَ صفت دلالت نه کوی په نفی دَ حکم په ما سوا دَ صفت کښ یعنی مفهوم الصفت معتبر نه دے- او که استثناء شی او وئیلے شوے دی چه استثناء دَ نفی نه دَ اثبات مستلزم نه ده - او بعضو علماؤ وئیلی دی چه استثناء دَ نفی نه مستلزم دَ اثبات ده نو دلالت کوی په مساوات باندے۔ او ابن عطیه وئیلی دی چه اولی الضرر په وخت دَ عدم جهاد کښ مساوی نشی کیدلے دَ مجاهدینو سره صرف دَ ملامتیا نه بچ دی۔ لیکن صحیح دا ده چه معذورینو لره په اجر دَ مجاهدینو کښ شرکت شته په دلیل دَ حدیث دَ صحیحین چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ غزوه تبوک نه په واپسئ کښ فرمائیلی وو چه

په مدینه کښ داسے خلق شته چه تاسو خو تلل کړیدی او سفر دِ وادئ موکړیدے لیکن هغوی هم تاسو سره شریک دی دوی تپوس اوکړو هغوی په مدینه کښ دی هغه اوفرمائیل او په مدینه کښ دی لیکن عذر بند کړیدی۔

فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ دَرَجَةً ،
دا جمله مستانفه ده په استیناف بیانی سره چه هر کله عدم مساوات ذکر شو نو سوال پیدا شو چه عدم مساوات احتمال دَ زیادت هم لری لکه چه احتمال دَ نقصان لری نو حاصل دَ جواب دا دے چه دلته عدم مساوات دا دے چه قاعدین (پاتے کیدونکی) دَ مجاهدینو نه په درجه کښ ښکته دی۔ هر کله چه مساوات او عدم مساوات په اعتبار دَ فضیلت سره دی دَ دے وجے نه لفظ دَ فضل ئے ذکر کړو او لفظ اللّٰه دلالت کوی چه دا فضیلت هم په فضل او کرم دَ اللّٰه تعالیٰ سره دے۔ دَرَجَةً ، دا مفعول مطلق دے په معنیٰ دَ تفضیلةً یا حال دے په معنیٰ دَ ذو درجةٍ یا ظرف دے یعنی فی درجةٍ یا حرف جر پټ دے یعنی بدرجةٍ (ردیته منصوب بنزع الخافض وئیلے شی)۔

وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى ، كُلًّا ، مفعول اول مقدم دے دَ وَعَدَ دَپاره او الحسنیٰ دویم مفعول دے۔ او کلا ، په معنیٰ دَ کل واحد من المجاهدین والقاعدین سره دے۔ دَ الحسنیٰ نه مراد الجزاء الحسنیٰ ده چه هغه جنت دے۔
سوال :- هر کله چه قاعدینو جهاد پریخودلے دے نو دَ هغوی دَپاره ئے ولے الحسنیٰ ذکر کړه ؟
جواب ۱ :- دا قاعدین په سبب دَ اذن سره وو یعنی جهاد فرض کفائی وو نو دَ هغے په پریخودلو سره ګنهګار نه دی۔
جواب ۲ :- دلته دَ کلاً نه مراد قاعدین اولی الضرر دی چه دَ هغوی دَپاره دَ مجاهدینو په ثواب کښ برخه شته لیکن اول جواب غوره دے۔

وَفَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ،

اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ

يقيناً هغه كسان چه روح اخلى دَ هغوى ملائك

ظَالِمِيْٓ اَنْفُسِهِمْ قَالُوْا فِيْمَ كُنْتُمْ ط

ظلم كوونكى په ځانونو خپلو (په هجرت نه كولو) وائى ورته دوى په څۀ كښ وئ تاسو،

سوال :- دَ مجاهدينو فضيلت ئې مكرر ذكر كړو او مخكښ ئې درجةً ذكر كړے وو او دلته اجر عظيم (درجات، مغفرت اورحمت) ذكر كړو دَ دے څه وجه ده ؟

جواب ۱ :- دَ قاعدين نه اول ځل مراد خاوندان دَ ضرر اوعذر دى او روستو دَ قاعدين نه مراد بلا ضرر اوعذر دى۔

جواب ۲ :- مخكښ درجةً نه مراد په دنيا كښ ده چه هغه په جهاد سره غنيمت حاصليدل دى او روستو دَ آخرت درجات مراد دى۔

جواب ۳ :- مخكښ قاعدين په اذن سره مراد دى او روستنى بلا اذن مراد دى۔

جواب ۴ :- مخكښ مجاهدين دَ قتال فى سبيل الله مراد دى او روستو مطلق مجاهد مراد دے يعنى جهاد بالنفس وبالمال او نورعبادات وغيره او دَ نفس په مقابله كښ مجاهده كول۔ او دَ دے وجے نه ئې روستو دَ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ قيد نه دے ذكر كړے۔

دَرَجٰتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَّرَحْمَةً ، دا دَ اجرًا نه بدل دے يا دَ دے دَ پاره بل فعل پټ دے يعنى اعطاهم (وركوى په ورته)۔

دَ دَرَجٰتٍ نه مراد اوچت منازل دى په جنت كښ۔ او صحيح حديث كښ راغلى دى چه په جنت كښ سل درجات دى دَ هر دوه درجاتو تر مينځ دَ آسمان او زمكے پشان فاصله ده او دا دَ مجاهدينو دَ پاره دى۔ او مغفرت كښ معاف كول دَ ټولو گناهونو مراد دى۔ دا ئې دَ دے وجے نه ذكر كړو چه زوال دَ درجاتو په سبب دَ گناهونو سره نه واقع كيږى ځكه چه گناهونه ټول معاف شول۔ وَرَحْمَةً سره مراد اول داخليدل

قَالُوْا كُنَّا مُسْتَضْعَفِيْنَ فِي الْاَرْضِ ؕ

دوی وائی موږ کمزوری کړے شوي وو په زمکه کښ،

قَالُوْٓا اَلَمْ تَكُنْ اَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةً

وائی په ورته ملائک آیا نه وه زمکه دَ الله تعالیٰ فراخه

فَتُهَاجِرُوْا فِيْهَا ؕ فَاُولٰٓئِكَ مَاْوٰىهُمْ

چه هجرت کړے وے تاسو په هغے کښ، نو دغه کسان ځائے دَ دوی

جَهَنَّمُ ؕ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ﴿۹۷﴾

جهنم دے او بد ځائے دَ کرځیدو دا جهنم۔

دَ جنت دی او دَ جهنم نه بچ کول مراد دی۔

وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ، دا تاکید دَ حصول دَ مغفرت اورحمت دَپاره دے۔

۹۷: ربط :۔ مخکښ ئے بشارت ذکر کړو دَ جهاد کوونکو دَپاره نو اوس تخویف ذکر کوی دَ پریخودونکو دَ جهاد دَپاره په سبب دَ دَ پریخودلو دَ هجرت سره۔

ربط ۲ :۔ مخکښ ئے دَ جهاد دَ پاتے کیدونکو دَ حال ذکر کړو نو اوس دَ هجرت نه دَ پاتیکیدونکو حال ذکر کوی۔ او په دے آیتونو کښ شپږ امر سیاسی ذکر کوی چه هغه هجرت کول او مهاجرینو له ځائے ورکول دی چه دا دَ هر مسلمان حاکم او دَ مسلمانانو فریضه ده۔ نو په دے آیاتونو کښ اول تخویف دَ عذاب ذکر کوی په پریخودلو دَ هجرت سره بیا ذکر دے دَ عذرونو والو او دَ هغوی دَپاره بشارت دے۔ بیا ترغیب او بشارت ذکر کوی په هجرت کولو سره۔

اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَفّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ، تَوَفّٰى ، په اصل کښ تتوفی دے فعل مضارع ده او احتمال شته چه فعل ماضی وی هغه کسان مراد وی چه هغوی دَ عدم هجرت په وخت کښ مړه شوی دی۔

لیکن اول قول غوره دے - او دَ توفی مشهوره معنیٰ مراد ده یعنی قبض دَ ارواحو - او توفی (موت) په اعتبار دَ نسبت سره په درے طریقو سره ذکر دے - اوله طریقه نسبت کول الله تعالیٰ ته لکه سورهٔ زمر ۴۲ او سورهٔ بقره ۲۸ کښ - او دَ دے وجه دا ده چه الله تعالیٰ پیدا کوونکے دَ مرګ دے امر کوونکے دے او اختیار والا دے - او دویمه طریقه نسبت ملک الموت ته لکه په سورهٔ السجده ۱۱ کښ او دا دَ دے وجے نه چه ملک الموت په دے کار باندے مقرر کړے شوے دے - او دا بناء ده په مشهور قول باندے چه ملک الموت یو دے یا دَ ملک الموت نه مراد جنس دے یعنی هغه ملائک چه په قبض کولو دَ ارواحو باندے مقرر دی - او دریمه طریقه نسبت دے ملائکوته او دا په ډیرو آیتونو کښ راغلی دی لکه دا آیت او سورهٔ انعام ۶۱، سورهٔ محمد ۲۷، سورهٔ نحل ۲۸، ۳۲، سورهٔ انفال ۵۰ او سورهٔ اعراف ۳۷ او دَ دے وجه دا ده چه نور ملائک اعوان (ملګری) دی دَ ملک الموت سره.

ظَالِمِيٓ أَنفُسِهِمۡ، دلته مراد دَ ظلم نه پریخودل دَ هجرت دی او اقامت کول دی په دار حرب کښ او ملګرتیا کول دی دَ مشرکانو سره په جنګ کښ سره دَ اظهار دَ ایمان نه - دا دَ ابن عباس رضی الله عنهما په روایت کښ دی چه امام بخاری رحمه الله ذکر کړیدی.

قَالُوا۟ فِيمَ كُنتُمۡ، دا سوال دَ توبیخ (زورنے) دے او مقصد ئے دا دے چه تاسو ولے هجرت نه کولو او دَ څه وجے نه دَ مشرکانو سره په جنګ کښ ملګری وئ.

قَالُوا۟ كُنَّا مُسۡتَضۡعَفِينَ فِي ٱلۡأَرۡضِ، دا دَ دوی دَ عذر بیان دے په ذکر دَ سبب دَ ترک هجرت او ملګرتیا دَ مشرکانو سره. یعنی مونږ کمزوری وو دَ هجرت کولو نه او دَ دے کمزورتیا دَ وجے نه مونږ دَ مشرکانو سره ملګرتیا کوله او دا عذر دَ دوی خالص دروغ وو ځکه چه دَ مستضعفینو خو په حقیقت

# اِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ

| مګر | کمزوری | دَ | نارینو نه |
|---|---|---|---|

# وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ

| او | زنانه | او | ېچي | چه | طاقت نه لري |
|---|---|---|---|---|---|

کښې دوه صفات ذکر دی چه عدم استطاعت دَ حیلې او عدم اهتداء دَ لارې او دا دواړه صفتونه په دوی کښې نه وو بلکه دوی په هجرت کولو قدرت لرلو او دَ نجات په طریقه باندې علم لرلو۔ فِي الْاَرْضِ، دَ دینه مراد دَ مکې زمکه وه چه دَ هغې نه هغه وخت هجرت کول فرض وو۔
قَالُوْا اَلَمْ تَكُنْ اَرْضُ اللهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوْا فِيْهَا، دا جواب دې دَ ملائکو دَ طرف نه دَ دوی دَ دروغو بهانې په اظهار باندې چه دوی وئیل چه موږ قدرت نه لرو۔ نو جواب دا شو چه الله تعالیٰ زمکه خو فراخه ده - ابن عطیه او قرطبی وئیلی دی چه دا کسان مسلمانان وو لیکن ظلم ئې کړې وو په سبب دَ پریخودلو دَ فرض دَ هجرت سره ځکه نه چرې دوی کافران او مشرکان وې نو دوی ته به ئې په ترک دَ هجرت سره زورنه نه ورکوله بلکه په زورنه کښې به ئې کفر او شرک ذکر کولې لکه چه په سوره نحل ۲۸ او سوره اعراف ۳۷ کښې دی په دغې دواړه آیتونو کښې خطاب دَ ملائکو دَ مشرکانو سره دې په وخت دَ مرګ کښې او دَ دوی نه تپوس کول دی دَ شرک په باره کښې۔ او دا آیاتونه او دَ دې پشان نور دلالت کوی په عذاب قبر باندې ځکه دَ قبض روح نه چه کوم حال شورو دې تر بعث بعد الموت پورې نو په دې باندې دَ قبر اطلاق کړې شوی دې۔
فَاُولٰٓئِكَ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا، دا تخویف اخروی دې په ګناه دَ ترک هجرت باندې او هر کله چه دوی کافران نه دی نو دَ دې وجې نه خلود او تابید ئې دلته نه دې ذکر کړې۔

حِيْلَةً وَّلَا يَهْتَدُوْنَ سَبِيْلًا ﴿٩٨﴾

دَ بهانې او نه پیژنی لار دَ هجرت کولو.

فَأُولٰٓئِكَ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّعْفُوَ عَنْهُمْ ؕ

پس دغه کسان امید دے لری) چه الله تعالیٰ به معافی اوکړی دَ دوی نه،

وَكَانَ اللّٰهُ عَفُوًّا غَفُوْرًا ﴿٩٩﴾

او دے الله تعالیٰ معافی کوونکے. بخښه کوونکے.

۹۸، ۹۹ : په دیکښ دَ معنی وریتو استثناء ذکر کوی.
اِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ، دا استثناء متصله ده دَ دے قول نه چه فَاُولٰٓئِكَ مَاْوٰهُمْ جَهَنَّمُ، یا دا استثناء منقطع ده او دا قول غوره دے دَ دوو وجو نه.
اوله وجه دا آیت مستقل دے او استقلال دَ آیت دلالت کوی په انقطاع دَ دے دَ مخکښ کلام نه.
دویمه وجه دا ده چه مخکښ ذکر دَ هغه چا دے چه په هجرت باندے قدرت لرو او مستضعفین خو قدرت نه لری.
مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ، دا دَ مستضعفین بیان دے او دَ ابن عباس رضی الله عنهما روایت دے چه زه او زما مور دَ کمزورو نه وو ځکه چه دَ دغه وخت نابالغ وو.
لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ حِيْلَةً، دا استیناف دے نو دَ هغوی استضعاف (کمزورتیا) دَ پاره علت دے یا حال دے - او بیضاوی وثیلی دی چه دا جمله صفت دے دَ ما قبل دَ پاره ځکه چه المستضعفین په معنیٰ دَ نکره کښ دی دَ عدم تعین دَ وجے نه - حِيْلَةً، قرطبی وثیلی دی چه دا لفظ عام دے ټولو اسبابو دَ خلاصی ته.
وَلَا يَهْتَدُوْنَ سَبِيْلًا، (لارے دَ مدینے) غوره دا ده چه هرے لارے ته شامل دے یعنی هیڅ لار او ذریعه دَ رسیدلو دَ هجرت مقام ته نه پیژنی - نو دَ حیلة نه مراد طریقه دَ وتلو ده دَ مکے مکرمے نه او دَ سبیل نه مراد دَ رسیدلو ذریعه ده

مدینې او مقام هجرت ته - نو دا فرق دے په مینځ د دواړو کښ.
فَأُولَٰئِكَ عَسَى اللَّهُ أَنْ يَعْفُوَ عَنْهُمْ، دا بشارت دے هغوی ته په عفو سره -
سوال :- هر کله چه دوی د هجرت نه عاجز وو نو دوی خو مکلف نه دی په هجرت کولو سره نو په ترک د هجرت کښ دوی گنهګار نه دی نو د عفو څه مطلب دے ؟
جواب :- د هجرت نه عاجز چه کله ډیر مشقت برداشت کړی نو کولے شی چه هجرت اوکړی نو وهم راتلو چه دوی ډیر مشقت نه دے برداشت کړے نو گنهګار دی - نو دا وهم ئے زائل کړو چه په تحمل د ډیر مشقت سره دوی نه دی مکلف نو د عفو نه مراد مناقشه او سختی نه کول دی په حساب کولو کښ (قرطبی) -
سوال :- عسی خو دلالت کوی چه د دوی عفو قطعی نه ده ؟
جواب :- مفسرینو وئیلی دی چه عسی د الله تعالیٰ د طرف نه د وجوب او قطع د پاره راځی ځکه چه وعده د کریم ذات یقینی وی - لیکن د لفظ عسی د راوړلو حکمت دا دے چه بترک د هجرت کښ وسعت نشته تر دے پورے چه د معذورینو په باره کښ هم د عفو قطع (یقین) نشی کیدے نو د غیر معذورینو د پاره خو ډیره یره پکار ده (اللباب، زمخشری) -
وَكَانَ اللَّهُ عَفُوًّا غَفُورًا ، كَانَ ، د الله تعالیٰ په صفاتو کښ د دوام د پاره دے - او عفو کښ لږ قصور ته اشاره ده - او غفور کښ غټ گناه ته اشاره ده -
فائده :- د بخاری روایت دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلّم د صبا په مونځ (او په نورو مونځونو کښ) د آخری رکعت د رکوع نه روستو د قوے په وخت کښ د دغه مستضعفینو د نجات د پاره دعاء غوښتله او کافرانو له به ئے دعاءِ شر غوښتله چه هغے ته قنوت نازله وئیلے شی -

وَمَنْ يُّهَاجِرْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

او چا چه هجرت اوکړو په لار دَ الله تعالیٰ

يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرٰغَمًا كَثِيْرًا

کښ اوبه مومي په زمکه ځایونه دَ اوسیدو ډیر

وَّسَعَةً ؕ وَمَنْ يَّخْرُجْ مِنْۢ بَيْتِهٖ

او فراخي او څوک چه اووځي دَ کور خپل نه

مُهَاجِرًا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ

هجرت کوونکے طرف دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دَ هغه ته بیا

يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ اَجْرُهٗ

لاندے کړی ده لره مرګ نو یقینًا اوشو ثواب دَ ده

عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا

دَ الله تعالیٰ سره، او دے الله تعالیٰ بخښنه کوونکے

رَّحِيْمًا ﴿۱۰۰﴾ ع ۱۴

رحم کوونکے۔

ربط:۔ په دیکښ ترغیب ورکوی هجرت ته په ذکر دَ دوه فائدو سره چه ډیر ځایونه او وسعت په هجرت سره حاصلیږی۔

وَمَنْ يُّهَاجِرْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرٰغَمًا كَثِيْرًا وَّسَعَةً، مراغم، دَ رغم نه او رغام نه اخستلے شویدے په معنیٰ دَ ګکړ کیدلو دَ پوزے چه هغه مستلزم دے ذلت لره او دَ دے په معنیٰ کښ مختلف تعبیرات دی۔ دَ ابن عباس رضی الله عنهما او ضحاک په نیز مراغم دَ ورګرځیدلو او دَ ورتللو ځائے ته وئیلے شی۔ او ابن زید وئیلی دی چه په معنیٰ دَ هجرت دَ ځائے دے۔ سدی وئیلی دی چه دَ معیشت ځائے دے۔ دا ټول معنیٰ یو بل ته

تېزدے دی نو مراغم ځاے دَ ورکرځېدلو دے په وخت دَ هجرت کښ - او دَ لغوی معنیٰ سره یې مناسبت دا دے چه کافران په سبب دَ حبس کولو دَ مؤمنانو تذلیل کوی لیکن مؤمنان دَ هجرت په سبب دَ کافرانو پوزے ککړے کړی نو هغوی ذلیل او رسوا شی - وَسَعَةً، مراد تری نه دَ دنیا دَ رزق فراخی ده یا فراخه زمکه او وئیلے شوی دی چه دَ ګمراهئ نه خلاصے مراد دے - او په دے جمله کښ دَ مهاجر دَ یو وهم تردید اوشو - دَ هغه وهم دا وی چه زه په وطن کښ په راحت او آرام سره یم او چه دَ وطن نه جدا شم نو کیدیشی چه تنګسیا دَ ځاے یا دَ رزق به راباندے راشی نو دَ دے وهم ازاله یې اوکړه. او دویم وهم دا دے چه دَ وطن نه بهر اوځم نو یا به مقصد ته اورسم یا نه اوچه او ته رسیږم نو هیڅ اجر به حاصل نشی نو دَ دے وهم ازاله په دے جملے سره کوی چه وَمَنْ يَّخْرُجْ مِنْ بَيْتِهٖ مُهَاجِرًا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ اَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ - مُهَاجِرًا، حال دے دلالت کوی په نیت دَ هجرت باندے - اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ، مهائمی وئیلی دی چه دَ دینه مراد هغه ځاے دے چه الله تعالیٰ او دَ هغه رسول په هغے کښ حکم ورکړیدے. یا اِلیٰ په معنیٰ دَ لام دے یعنی دَ الله او دَ هغه دَ رسول دَ رضا دَ پاره - ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ، یعنی مخکښ دَ رسیدلو نه مقصد ته په ده باندے مرګ راشی - او ابوحیان وئیلی دی چه هر هجرت چه دَ دینی غرض او مقصد دَ پاره وی لکه طلب دَ علم، جهاد، حج، دا سے ښار ته سفر کول چه په هغے کښ دَ الله تعالیٰ ډیر عبادت او اطاعت او دَ رسول تابعداری کیدیشی، او دَ حلال رزق دَ طلب دَ پاره دا ټول په هجرت الی الله والرسول کښ داخل دی. عَلَى اللّٰهِ، دا وجوب تفضلی دے یعنی په سبب دَ وعدے دَ الله تعالیٰ چه هغه مهاجر له په خامخا اجر ورکوی دا استحقاقی وجوب نه دے - وَقَعَ اَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ، کښ اشاره دَ عظمت دَ دے اجر ته -

وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا، ګناهونه معاف کوی او دَ هجرت بدله ورکوی.

فائده ۱ :- امام مالک رحمه الله فرمائیلی دی چه دا آیت دلالت کوی چه په کومه زمکه کښ سلفو صالحینو ته کنځل کیږی او ناحق اعمال پکښ کیږی نو په هغې کښ ډیره کیدل جائز نه دی (قرطبی) -
فائده ۲ :- د ابن عربی نه نقل کړیدی چه په زمکه کښ ګرځیدل دوه قسمه دی - اول قسم په طریقه د هرب (تختیدلو) سره او دویم قسم په طریقه د طلب سره دی بیا د اول قسم شپږ اقسام دی -
ع۱ :- هجرت د دار حرب نه دار اسلام ته -
ع۲ :- هجرت د هغې زمکې نه چه په هغې کښ بدعت غالب وی -
ع۳ :- وتل د هغه زمکې نه چه په هغې کښ حرام غالب وی -
ع۴ :- ځان د بدنی تکلیف نه د بچ کولو د پاره وتل لکه چه موسیٰ علیه السلام (د نبوت نه مخکښ) د مصر نه وتلے وو -
ع۵ :- د مرض د یرے د وجے نه (چه هغه د آب وهوا د بدلولو نه پیدا کیږی) د یو کلی یا وطن نه بل خوا تلل -
ع۶ :- د مالی اذیت او نقصان نه ځان بچ کولو د پاره د یو وطن او ملک نه وتل - او دویم قسم چه هغه وتل دی د پاره د طلب هغه دوه قسمونه دی یو طلب د دین دویم طلب د دنیا - د طلب د دین نهه قسمونه دی -
ع۱ :- سفر د پاره د عبرت - ع۲ د حج سفر - ع۳ د جهاد (قتال) د پاره سفر - ع۴ :- سفر معاش (ګذران ژوند) د پاره - ع۵ :- سفر د تجارت او حلال مال زیاتی کولو د پاره - ع۶ :- د علم حاصلو د پاره سفر - ع۷ :- سفر د مبارک ځایونو چه هغه خاص دے په درے مساجد و پورے - ع۸ :- سفر د سرحداتو ریولو د اسلام د ساتنے د پاره - ع۹ :- د خپلو رونړو او ملګرو د ملاقات د پاره سفر کول د الله تعالیٰ د رضا حاصلولو د پاره - پدے اقسامو کښ څلورم او پنځم طلب د دنیا دے نو څلورم واجب دے - او پنځم مباح دے -

وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ
او کله چه سفر اوکړئ تاسو په زمکه کښې نو نشته
عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا
په تاسو باندې ګناه چه کموئ
مِنَ الصَّلٰوةِ ۖ إِنْ خِفْتُمْ
د مانځه نه ، که یریږئ تاسو
أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ
چه تکلیف به درکړی تاسو لره کافران ،
إِنَّ الْكٰفِرِينَ كَانُوا لَكُمْ عَدُوًّا
یقیناً کافران دی ستاسو د پاره دشمنان
مُّبِينًا ﴿١٠١﴾
ښکاره -

سلا :۔ په دې آیت کښې اوم امر سیاسی ذکر دے چه هغه اهتمام او پابندی د مونځ کولو دی په سفر او په خوف کښې لیکن سره د تخفیف او قصر نه۔
ربط بل بهر کله چه مسئله د هجرت ذکر شوه او په هجرت کښې خامخا سفر کول وی نو د هجرت او سفر مشقتونه راجمع شول نو د هغے د پاره ئے د قصر حکم ذکر کړو۔
ربط له :۔ دا رنګ مخکښې ذکر شوه چه په نیت د هجرت سره سره د وتلو نه الله تعالیٰ اجر ورکوی اګرچه پوره هجرت اونه شی نو اوس ذکر کوی چه د سفر او خوف د وجے نه په مونځ کولو کښې سره د قصر او تخفیف نه الله تعالیٰ د پوره مونځ اجر و ثواب ورکوی۔
وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ ، په هجرت کښې هم ضرب فی الارض

دَ دے وجے نه یئے په هغے باندے عطف کړو دَ ضرب فی الارض په عرف کښ په سفر باندے اطلاق کیږی یئی صرف ګرځیدل په خپل کلی او علاقه کښ دیته ضربِ فی الارض نشی ویئیلے کیدے.
فِی الْاَرْضِ ، فی سبیل الله یئے نه دے ذکر کړے ځکه چه قصر په سفر دَ طاعت (هجرت ، حج ، عمره ، جهاد ، طلب علم وغیره) پورے خاص نه دے بلکه مباح سفر کښ هم بالاتفاق قصر شته. او په سفر دَ معصیت کښ اختلاف دے ، اَلْاَرْضِ لفظ اوچه او لوندے (سمندر) دواړو ته شامل دے - او په مقدار دَ سفر قصر کښ دَ محدثینو او مفسرینو اختلاف دے -
فَلَیْسَ عَلَیْکُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَقْصُرُوْا مِنَ الصَّلٰوةِ دَ اَنْ نه مخکښ فِیْ پټ دے - مِنَ الصَّلٰوةِ کښ مِنْ دَ تبعیض دَپاره دے او لفظ دَ شیئًا من الصلوة پټ دے دا قول دَ سیبویه دے - یا مِنْ زایٔدی دے په قول دَ اخفش سره - په دے قصر کښ دوه اقوال دی اول قول دَ جمهورو دے چه دَ دینه مراد قصر دَ عدد دَ رکعتونو دے بیا په دیکښ هم دوه اقوال دی یو قول دا چه دَ څلورو رکعتونو په ځائے په دوه رکعته وی او دغه مونځ دَ سفر دے که خوف وی او که نه وی. او صلٰوة دَ ماښام او صبا کښ قصر نشته په سبب دَ حدیث دَ امام بخاری سره او دا رنګ من الصلٰوة کښ مِن تبعیضیه دلالت کوی چه بعضِ مونځونو کښ قصر نشته دَ جمهورو په قول کښ دویم قول دا دے چه دَ دینه مراد صلٰوة خوف دے سره دَ سفر نه - دا قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما او نورو اهل علمو دے چه صلٰوة دَ اقامت څلور رکعته دے او دَ سفر دوه رکعته دے او صلٰوة دَ خوف یو رکعت دے (مسلم، ابوداؤد) - دریم قول په قصر کښ دا دے چه دَ دینه مراد تخفیف دے په طریقه دَ مونځ کښ یعنی کله چه جنګ شروع وی او دَ دُشمن دَ غلبے یره وی (چه هغے ته وخت دَ التحام ویئیلے شی) نو په اشاره سره مونځ کوئ او دَ یو ځائے نه بل ځائے ته تلل پکښ جائز دی - دا قول هم دَ ابن عباس رضی الله عنهما

او طاؤس او مجاهد دے په دلیل دَ حدیث دَ مسلم، ابوداؤد او ترمذی سره چه دَ عمر رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی ردَ هغو خلقو په جواب کښ چه هغوی وئیل چه اوس خو موږ په امن سره یو) چه دا صدقه ده تصدیق کړیدے الله تعالیٰ په تاسو باندے نو دَ هغه صدقه قبوله کړئ۔ او دا رنګ لفظ دَ قصر په کموالی دَ عدد کښ استعمالیږی په تغیر او تبدیل دَ هیئت کښ نه استعمالیږی۔

فائده:- قصر دَ مونځ په سفر کښ خو بالاتفاق جائز دے لیکن اختلاف دے په وجوب کښ اکثر صحابه کرام او تابعین عظام او دَ امام مالک، امام ابوحنیفه رحمهما الله) قول دا دے چه قصر واجب دے۔ او دَ بعضے صحابه کرامو او تابعینو او امام شافعی رحمه الله په نیز قصر او اتمام کښ اختیار دے لیکن قصر افضل دے۔

سوال:- لفظ دَ لیس علیکم جناح خو دلالت کوی چه قصر واجب نه دے؟

جواب ۱:- دا دَ آیت فلا جناح علیه ان یطوف بهما پشان دے چه دا دَ صفا مروه په مینځ کښ دَ سعی په باره کښ دے او هلته سعی واجب ده۔ او دَ عائشه رضی الله عنها قول دا دے چه که هلته وجوب نه وے مراد نو ان لا یطوف به ئے وئیلے وے۔ دا رنګ که دلته هم وجوب نه دے مراد نو ان لا تقصروا به ئے وئیلے وے۔

جواب ۲:- آلوسی وئیلی دی چه خلق دَ پوره مونځ کولو سره عادت دی نو دَ قصر په وخت کښ وهم راځی چه دا به ګناه وی نو دفعے دَ دے وهم دَ پاره ئے اوفرمائیل چه فلیس علیکم جناح ان تقصروا۔

اِنْ خِفْتُمْ اَنْ يَّفْتِنَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا، دلته فتنه په معنیٰ دَ حمله کولو ده یا په معنیٰ دَ اړولو او منع کولو دَ خشوع دَ مونځ نه یا تعرض کول په هر هغه کار سره چه تاسو ئے بد ګڼړئ۔

سوال :- دا جمله دلالت کوی چه قصر په سفرکښ مقيد دے په خوف پورے او په حال دَ امن کښ قصر نه دے جائز لکه چه اهل ظاهر داسے وائي ؟

جواب ۱:- ابن کثیر وئیلی دی چه دا قید په اعتبار دَ غالب سره دے چه په ابتداء دَ اسلام کښ دَ مسلمانانو سفرونه په خوف سره وو - او دليل دَ دے هغه احادیث مبارکه دی چه دلالت کوی په قصر کولو دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم او دَ صحابه کرامو په حال دَ امن کښ - نو ابن کثیر هغه احادیث نقل کړیدی او بیا ئے وئیلی دی چه دا احادیث صراحتًا دلالت کوی چه دَ قصر دَ پاره خوف شرط نه دے.

جواب ۲:- هرکله چه دَ قصر نه مراد (په یو قول کښ) قصر دَ کیفیت نو خوف دَ هغے سره شرط دے دا قول دَ مجاهد، ضحاک او سدی دے او دَ دے تائید دَ ابن عمر رضی الله عنهما قول دے (چه ابن جریر او ابن کثیر نقل کړیدے) چه هغه وئیلی دی چه مونږ په کتاب الله کښ قصر دَ صلوٰة خوف مومو او قصر دَ صلوٰة سفر په قرآن کښ نشته بلکه هغه په قول او عمل دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره ثابت دے -

جواب ۳:- ابن جریر دَ علی رضی الله عنه روایت راوړیدے چه الله تعالیٰ اول دا قول نازل کړو چه (وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ) بیا تقریبًا یو کال روستو دَ جنګ کولو وخت راغے نو الله تعالیٰ نازل کړو چه ان خفتم ان یفتنکم الذین کفروا - (او جواب ئے پټ دے یعنی مونځ کوئ په طریقه دَ صلوٰة خوف سره چه روستو آیت کښ ذکر دے) -

إِنَّ الْكَافِرِينَ كَانُوا لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِينًا ؛ دا جمله معترضه ده او علت دَ حکم دَ قصر دَ پاره یا دَ خفتم ان یفتنکم دَ پاره - عَدُوًّا په معنیٰ دَ جمع سره دے یا مصدر دے - او لفظ دَ ذو پټ دے مُبِينًا دشمنی ئے ښکاره ده په علاماتو سره یا ښکاره کوونکی دی دشمنئ لره -

وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ

او کله چه یې ته په دوی کښې نو کوه ته د دوی د پاره

الصَّلَوٰةَ فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُم

مونځ د جماعت (په وخت د یره کښې) نو اودریږي دې یوه ډله د دوی نه

مَّعَكَ وَلْيَأْخُذُوٓا۟ أَسْلِحَتَهُمْ ۖ

په تا پسې او دې نیسي هغوی وسلې خپلې

فَإِذَا سَجَدُوا۟ فَلْيَكُونُوا۟ مِن

نو کله چه دوی سجده اوکړي (د اول رکعت) نو شي دې دوی ستاسو نه

وَرَآئِكُمْ وَلْتَأْتِ طَآئِفَةٌ أُخْرَىٰ

شاته او را دې شي بله ډله

لَمْ يُصَلُّوا۟ فَلْيُصَلُّوا۟ مَعَكَ

چه مونځ یې نه وي کړے نو مونځ دې اوکړي په تا پسې

وَلْيَأْخُذُوا۟ حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ ۗ

او او دې نیسي بچاؤ خپل او وسلې خپلې ،

وَدَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَوْ تَغْفُلُونَ

غواړي هغه کسان چه کفر یې کړیدے چه غافل شئ تاسو

عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ

د خپلو وسلو نه او سامانونو خپلو نه .

فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَٰحِدَةً ۚ

نو حمله به اوکړي په تاسو باندے حمله یوه (په یو ځل) .

وَلَا جُنَاحَ عَلَیْکُمْ اِنْ کَانَ بِکُمْ
او نشته گناه په تاسو باندے که وی په تاسو باندے
اَذًی مِّنْ مَّطَرٍ اَوْ کُنْتُمْ مَّرْضٰی
تکلیف د وجے د باران نه یا یئ تاسو ناجوړه
اَنْ تَضَعُوْٓا اَسْلِحَتَکُمْ ۚ وَخُذُوْا
چه کیږدئ وسلے خپلے او او نیسئ
حِذْرَکُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْکٰفِرِیْنَ
بچاؤ خپل یقیناً الله تعالیٰ تیار کړی دے کافرانو لره
عَذَابًا مُّهِیْنًا ﴿۱۰۲﴾
عذاب شرموونکے -

۱۰۲ : ربط :- مخکښ قصر د صلوٰة په اعتبار د عدد د رکعتونو سره ذکر کړی شوے نو اوس قصر په اعتبار د کیفیت سره ذکر کوی - دا رنګ مخکښ قصر په طریقه د اجمال سره ذکر وو اوس د هغې تفصیل ذکر کوی په خاص حالت کښ چه هغه حالت د خوف دے - او په دے آیت کښ ذکر د صلوٰة خوف دے او په ماقبل باندے عطف هم د دے مناسبت د وجے نه کړے شوے یعنی ذکر د کوم خوف چه په مخکښ آیت کښ دے نو هغه خوف په دے آیت کښ هم مراد دے د وجے د عطف نه - او طریقه د صلوٰة د سفر سره خاص ده په نیز د بعضے علماؤ او په نیز د جمهورو اهل علمو حضر ته هم عام ده - او د دے وجے نه دائے په مستقل آیت کښ ذکر کړی شوے -

وَاِذَا کُنْتَ فِیْهِمْ ، په اعتبار د ظاهر د دے قید سره ابویوسف او حسن بن زیاد (رحمہ) او ابراهیم بن علیه وئیلی دی چه صلوٰة خوف خاص وؤ په نبی صلی الله علیه وسلم پورے او د هغه نه روستو خو د خوف په وخت دوه جماعتونه کول

پکار دی - او مزنی شافعی وئیلی دی چه صلوٰۃ خوف منسوخ شوے دے لیکن صحیح قول دا دے چه منسوخ نه دے او خاص هم نه دے په نبی کریم صلی اللّٰه علیه وسلم پورے په دلیل دَ دے چه صحابه کرامو دَ نبی صلی اللّٰه علیه وسلم دَ زمانے نه روستو هم صلوٰۃ خوف کړیدے لکه حدیث دَ ابوداؤد او نسائی دے چه په طبرستان کښ صحابه کرامو صلوٰۃ خوف ادا کړے وو او هغهٔ ډیرو صحابه په حضور کښ وو هیچا هغے یا ندے رد او انکار نه دے کړے نو دا پشان دَ اجماع شوه - او تخصیص دَ خطاب دَ نبی کریم صلی اللّٰه علیه وسلم مستلزم نه دے تخصص دَ حکم لره په هغه پورے لکه په دے قول دَ اللّٰه تعالیٰ کښ چه خذ من اموالهم صدقة توبه ۱۰۳ - دا رنګ مونږ مامور یو په اتباع دَ نبی صلی اللّٰه علیه وسلم سره مطلقًا عمومًا او په صلوٰۃ کښ خصوصًا په دلیل دَ حدیث چه صلوا کما رایتمونی اصلی - او پدیکښ قرطبی او ابن کثیر ښه تفصیل ذکر کړیدے - واذا کنت فیهم ښکاره دلیل دے چه نبی کریم صلی اللّٰه علیه وسلم په امت کښ هر وخت او زمانه کښ حاضر ناظر نه دے ځکه که چرے زمونږ دَ مونځ (جماعت) په وخت کښ هغه بخپله حاضر وی نو ضروری ده چه امامی به هغه کوی نو بیا دَ بل هیچا امامت په هیڅ مونځ کښ نه صحیح کیږی نو دا عقیده دَ ډیر جهل دلیل دے بلکه دا دَ شرک عقیده ده -

فَاَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلٰوةَ ، دَ دینه مراد امامت دے او په دے لفظ کښ اشاره چه په صلوٰۃ خوف کښ تلل راتلل دَ مانځه په مینځ کښ او کله په صف دَ قتال کښ اودریدل دَ اد دَ اقامت دَ مونځ سره منافات نه لری ،

فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ مَّعَكَ ، یعنی لښکر به په دوه ډلو باندے تقسیم کړیشی نو یو ډله به په امام پسے دَ مونځ نیت اوکړی او بله ډله به دَ دشمن مخے ته اولاړه وی او دفاع او څوکئ به کوی او دا ظاهره خبره ده دَ دے وجے نه په دے کښے تصریح اونکړه -

وَلْيَأْخُذُوْا اَسْلِحَتَهُمْ، ضمير دغه ډلے (طائفه) ته راجع دے چه کومه په امام پسے ولاړه وی او په دیکښ مقصد سره دَ اهتمام دَ مونځ ته بيدارى ده دَ جهاد دَپاره۔
فَاِذَا سَجَدُوْا ، دَ سجود نه مراد يو رکعت کول دى دَ امام سره، دا دَ ابن عباس رضى الله عنهما نه روايت دے۔ او ذکر دَ سجود مراد ترينه مونځ په ډيرو نصوصوکښ وارد دے لکه په حديث دَ تحية المسجد کښ دى چه هرکله يو شخص مسجد ته داخل شى نو سجدے دے اوکړى دوه سجدے (يعنى دوه رکعته مونځ دِ اوکړى)۔
فَلْيَكُوْنُوْا مِنْ وَّرَآئِكُمْ، ضمير سجده کوونکو ته راجع دے يا هغے دويمے ډلے ته ليکن اول قول غوره او صحيح دے۔ او مراد دا دے چه ستاسو نه روستو دَ څوکيدارئ دَپاره دِ اودريږى، هرکله چه مونځ کښ قيام فرض دے نو فلتقم ئے فرما ئيلے دے او په څوکيدارئ کښ قيام فرض نه دے بلکه په هر حال کښ (په اولاړے يا په ناستے وغيره) څوکيدارى کيدے شى څنګه چه مناسب وى۔ دَ دے وجے نه دلته ئے فليکونوا وئيلے دے چه په صرف موجوديدلو باندے دلالت کوى۔
وَلْتَاْتِ طَآئِفَةٌ اُخْرٰى لَمْ يُصَلُّوْا ، يعنى هغه ډله چه څوکيدارئ ئے کوله دَ امام خوا ته به راشى او امام به سلام نه ګرځوى په اول رکعت باندے بلکه انتظار به کوى دَ دويمے ډلے دَ رارسيدلو۔
فَلْيُصَلُّوْا مَعَكَ ، مراد دَ ديته يو رکعت کول دى دَ امام سره او دغه رکعت دَ امام دَپاره دويم رکعت دے په اتفاق سره او دَ دويمے ډلے دَپاره اول رکعت دے يا دويم دے په دے کښ دوه اقوال دى ليکن صحيح قول اول دے (قاسمى)۔ او په دے آيت کښ دَ دواړو ډلو دَپاره دَ دويم رکعت ذکر نه دے کړے نو په هغے کښ دوه اقوال دى۔ يو دا چه صلوٰة خوف يو رکعت دے دَ مقتديانو دَپاره دا قول دَ سفيان ثورى او اسحاق بن راهويه وغيره دے۔ دويم قول دَ جمهورو اهل علمو دَ

چه صلوٰة خوف په سفر کښې د مقتدي د پاره هم دوه رکعته دے لیکن یو رکعت د امام سره دے او د دویم رکعت کول په صحیح حدیث کښې ذکر دے او د هغې دوه طریقې دي - یوه طریقه په حدیث د ابن عمر رضی الله عنهما کښې ده چه بخاري ذکر کړې ده چه هره یوه ډله به د امام د سلام نه روستو اودریږي (په ترتیب سره) او یو یو رکعت به اوکړي - او بله طریقه هم بخاري ذکر کړې ده (واقعه د غزوه د ذات الرقاع) چه اوله ډله د امام سره یو رکعت اوکړي نو دویم رکعت به ځان له په هغه ځائے باندے اوکړي او سلام به اوګرځوي بیا به مقام د څوکیدارئ (مورچو) ته لاړشي نو دویمه ډله به د امام سره یو رکعت اوکړي او دویم رکعت به د امام د اسلام نه روستو ځان له اوکړي او بیا به سلام اوګرځوي -
فائده :- ابوحیان د ابن عربي نه نقل کړې دي چه صلوٰة خوف په احادیثو کښې خلیرویشت طریقې ذکر دي او ابوحیان د هغې نه لس طریقې په تفصیل سره ذکر کړې دي - او د امام احمد رحمه الله نه صاحب اللباب نقل کړې دي چه هر حدیث چه په صلوٰة خوف کښې ذکر دے نو هغه صحیح دے په هغې باندے عمل کول جائز دي او هغه په دیکښې شپږ یا اووه طریقې نقل کړې دي - ابن کثیر وئیلي دي چه د صلوٰة خوف ډیر اقسام دي ځکه چه دشمن کله د قبیلې په طرف او کله په بل طرف کښې وي کله مونځ څلور رکعتو والا وي کله دریے او دوه رکعتونو والا وي، کله د لږ خوف په وخت کښې وي نو په جماعت سره مونځ ادا کول وي او کله د سخت او ډیر خوف په وخت کښې وي او جماعت نشي کولے نو ځان ځان له مونځ کوي، کله پیاده وي او کله سواره، د دے وجې نه په دیکښې مختلف احادیث راغلي دي -
وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ، حذر نه مراد بیداري ده یا هغه څیز چه په هغې سره بچاؤ حاصلیږي بغیر د اسلحے نه نو عطف د اسلحه په دویمه توجیه باندے عطف د خاص د

په عام یانن ے

فائده :- په دے مقام کښ ئے حذر زیات را وړو ځکه چه دَ اولے طائفے مونځ ته په اودریدلو کښ دشمن ته خبر یږی لیکن کله چه دویمه طائفه راشی اویو رکعت ته اودریږی او بله طائفه ځی نو دَ دے تلو راتلو نه دشمن ته معلومه شی چه دوی په مونځ کښ مشغوله دی نو هغوی په دَ حملے کولو کوشش کوی لکه چه ورپسے ود الذین کفروا ذکر کړیدے نو دَ ډیر حفاظت دَ پاره ئے حذر زیات ذکر کړو۔

وَدَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ تَغْفُلُوْنَ عَنْ اَسْلِحَتِكُمْ وَاَمْتِعَتِكُمْ ، دا استیناف دے په ذکر دَ علت دَ امر دَ اخذ دَ حذر او اسلحے سره - وَدَّ ، په معنیٰ دَ تمنا کولو دے ، لَوْ مصدریه دے او دَ اسلحے دَ غفلت نه مراد دَ هغے کیخودل دی دَ مونځ کولو دَ وجے نه - او اَمْتِعَتِكُمْ هغه سامان دَ مجاهد دے بغیر دَ اسلحے نه چه دَ خپل ضرورت دَ پاره ئے ځان سره ساتی -

فَيَمِيْلُوْنَ عَلَيْكُمْ مَّيْلَةً وَّاحِدَةً ، وَاحِدَةً ، نه دا سے حمله کول مراد دی چه دویمے حملے ته ضرورت پاتے نشی - نو دَ اسلحے نیول دَ دشمن دَ حملے نه دَ مدافعت دَ پاره دی نو معلومه شوه چه دَ اسلحے په باره کښ امر دَ وجوب دَ پاره دے -

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ كَانَ بِكُمْ اَذًى مِّنْ مَّطَرٍ اَوْ كُنْتُمْ مَّرْضٰى اَنْ تَضَعُوْا اَسْلِحَتَكُمْ ، هر کله چه دَ عذر په وخت کښ کیخودل دَ اسلحے جائز کړیدی نو دا دلیل دے چه دَ عدم عذر په وخت کښ اسلحه نیول واجب دی نو معلومه شوه چه امر دَ اسلحے نیولو دَ وجوب دَ پاره دے - او دَ اذًى من مطر او مرض نه داسے حال مراد دے چه په هغے کښ اسلحه پورته کول زیات مشقت وی -

وَخُذُوْا حِذْرَكُمْ ، دَ تاکید دَ بیدارئ دَ پاره ئے دا امر دوباره ذکر کړو -

اِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا ، دا علت دے دَ پاره دَ امر دَ خذوا - او عذاب مهین نه مراد عذاب دَ مغلوبیت دَ دوی دے

فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلٰوةَ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ

نو کله چه فارغ شئ د مانځه نه نو یادوئ الله تعالیٰ

قِيٰمًا وَّقُعُودًا وَّعَلٰى جُنُوبِكُمْ ۚ

په اولاړے او په ناستے او په اړخونو خپلو،

فَإِذَا اطْمَأْنَنْتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ ۚ

نو کله چه په آرام شئ تاسو نو پابندی کوئ د مانځه،

إِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ

یقینًا مونځ په مؤمنانو باندے

كِتٰبًا مَّوْقُوتًا ﴿۱۰۳﴾

فرض دے وخت په وخت۔

په دنیا کښې یعنې تاسو د خپل حفاظت اهتمام کوئ (د الله تعالیٰ د امر سره موافق) نو دشمنانو له به الله تعالیٰ خامخا رسوائی ورکوی ستاسو په لاسونو سره او تاسو سره به مدد کوی۔ یا دا تخویف اخروی دے د کافرانو د پاره او په دې کښې مؤمنانو له د زړونو تسلی ده د پاره د پابندئ کولو په اوامرو د الله تعالیٰ باندے۔

۱۰۳:۔ دا د مخکښې آیت تتمه ده په ذکر کولو د اذکارو سره روستو د صلوٰة خوف نه یا په ذکر کولو د مونځ کولو په وخت د شدت خوف کښې بنا په دوه اقوالو د مفسرینو پورے آیت کښې۔

فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلٰوةَ ، په دے کښې دوه تفسیرونه دی۔ اول دا چه قضا په معنیٰ د ادا او د فراغ ده لکه په دے قول کښې فاذا قضيتم مناسككم (سوره بقره ۲۰۰) او۔ فاذا قضيت الصلوٰة (سورجمعه ۱۰)۔

فَاذْكُرُوا اللّٰهَ ، د دینه مراد ذکر دے په ژبه او زړه سره۔

قِيٰمًا وَّ قُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِكُمْ، دَ دينه مراد دوام دَ ذکر دے په هر حال کښ ځکه چه انسان دَ دے درے حالتونو نه خالی نه وی او دا رنګ په وخت دَ جهاد کښ مجاهد به په صف کښ اولاړ وی یا به په مورچه کښ ناست وی یا به په مورچه کښ دَ دشمن دَ ویشتلو دَ پاره په اړخ باندے پروت وی یا به زخمی شوے وی نو په ډډه به پروت وی۔ او قرطبی وئیلی دی چه ذکر کول په تکبیر وئیلو سره او لا اله الا الله وئیلو سره او دَ نصرت دعاګانے کول۔ دویم تفسیر دا دے چه قضا په معنیٰ دَ ادا دَ مونځ ده په وخت دَ سختۍ یره کښ دَ دشمن نه چه په دغه حالت کښ په جماعت سره نشی کیدلے لکه په سورة بقره ۲۳۸ کښ دی۔ فَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا، او په دا سے وخت کښ استقبال دَ قبلے فرض نه دے نو فاذکروا نه مراد مونځ کول دی په دغه درے حالاتو کښ موافق دَ استطاعت سره۔ او قرطبی دلته دَ ابن مسعود رضی الله عنه روایت ذکر کړیدے چه هغه بعضے کسان اولیدل چه په مسجد کښ په ذکر کولو سره شور وو نو ده ورته غصه اوکړه چه دا ولے کوئ نو هغوی جواب ورکړو چه دا په قرآن کښ دی چه فاذکروا الله نو هغه ورته اُوئیل چه دلته دَ ذکر نه مراد مونځ کول دی۔ لیکن دلته اول تفسیر غوره دے۔

فَاِذَا اطْمَاْنَنْتُمْ فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ، دَ اطمینان نه مراد تسلی دَ زړه ده په لرے کیدلو دَ خوف، خفګان او مشقت سره نو په دیکښ دوه احتمالات دی۔ اول دا چه تاسو مقیم شئ یعنی سفر ختم شی نو مونځ په پوره رکعتونو سره دَ ټولو ارکانو او شرائطو سره کوئ۔ دویم احتمال دا چه تاسو په اطمینان شئ یعنی یره ختمه شی اګرچه سفر باقی وی نو مونځ دَ سفر کوئ په پوره طریقے سره یعنی ټول کسان په یو جماعت سره مونځ کوئ۔ دا دَ سورة بقره ۲۳۸ (فاذا امنتم) پشان دے۔

اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا، دا جواب دَ یو وهم دے هغه دا چه دَ خوف یا سفر په وخت کښ چه

وَلَا تَهِنُوْا فِي ابْتِغَآءِ الْقَوْمِ ؕ

او سستي مه کوئ (د ماتحه د وجې نه) په لټولو د قوم (د کافرانو کښې د پاره د جنګ) کښې

اِنْ تَكُوْنُوْا تَاْلَمُوْنَ فَاِنَّهُمْ

که يئ تاسو دردمن (صبر کوئ) ځکه چه دوی هم

يَاْلَمُوْنَ كَمَا تَاْلَمُوْنَ ۚ وَتَرْجُوْنَ

دردمن شويدی لکه چه تاسو دردمن يئ او اميد لرئ تاسو

مِنَ اللّٰهِ مَا لَا يَرْجُوْنَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ

د الله تعالىٰ نه هغه چه دوی اميد نه لری د هغې او دے الله تعالىٰ

مشقت دے نو مونځ د پريږدی يا د بل وخت ته روستو کړی نو د هغې جواب اوشو چه مونځ په خپل وخت کښې فرض دے په خوف او سفر، امن او اقامت ټولو حالاتو کښې او وختونه ئې هم مقرر دی۔ نو د سفر يا د خوف د وجې نه پريښودل يا روستو کول نشي کيدے۔ كِتٰبًا په معنىٰ د مکتوب دے او مراد ترينه فرض کړے شويدے۔ او مَوْقُوْتًا په معنىٰ د مؤقتة يا محدودة باوقات دے يعنې اوقات ورله ذکر شويدی چه هغه په قرآن کريم کښې اجمالاً ذکر دی لکه سوره بقره ۲۳۸، سوره روم ۱۸، ۱۷۔ سوره هود ۱۱۴، سوره اسراء ۷۸ او سوره طه ۱۳۰ کښې او په صحيح احاديثو کښې د هغې پوره تفصيل ذکر دے تر دے پورے چه په سفر کښې د دوه مونځونو په يو وخت کښې يو ځاے کول دا هم شرعي وخت دے پشان د عرفات او مزدلفه نو هغه هم په موقوتًا کښې داخل دی۔ موقوتًا د كتٰبًا د پاره صفت دے د دے وجې نه مذکر صيغه ذکر شوه۔

# عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱۰۴﴾

| پوهه | حکمتونو والا - |
|---|---|

سـ۱۵ : ربط :- هرکله چه په مونځ کولو باندے ترغیب ذکرشونو هسے نه چه په مونځ باندے داسے مشغول شی چه دَ دشمن سره جهاددرنه پاتے شی نوځکه اوس ورپسے تیزی او تشجیع په قتال باندے ذکرکوی نو اوفرمائیل ئے چه وَلَا تَهِنُوْا، دا دَ مخکښ په معنیٰ باندے عطف دے یعنی مونځ او ذکرکوئ او په قتال کښ سستی مه کوئ - دوهن معنیٰ دَ سوره آلعمران په تفسیرکښ تیره شویده یعنی دَعدم وهن نه مراد ترک دَاسبابو دَ وهن دے یعنی محبت دَ دنیا اوخوف دَ مرګ او په نورو عبادتونو کښ داسے مشغولیدل چه جهاد تریته پاتے شی -

فِي ابْتِغَآءِ الْقَوْمِ، ابتغاء په معنیٰ دَ طلب دے اومرادترینه دَ هغوی لټون کول دی دَپاره دَقتل کولو په هرهغه ځائے کښ چه ګمان کیدلشی چه دوی په دغلته وی -

اِنْ تَكُوْنُوْا تَاْلَمُوْنَ فَاِنَّهُمْ يَاْلَمُوْنَ كَمَا تَاْلَمُوْنَ، دا ترغیب دے په ابتغاء القوم باندے یعنی دردونو او تکلیفونو دَ جنګ کښ تاسو شریک یئ اودا دَ سوره العمران سـ۱۴۰، سـ۱۴۵ پشان دے اواشاره ده چه هغوی په دغه دردونو باندے صبرکوی نو تاسو خوخامخا صبر اوکړئ ځکه چه وَتَرْجُوْنَ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا يَرْجُوْنَ، په صفت دَ درد کښ دَاشتراک نه روستو امتیاز دَ مؤمنانو ذکرکوی په امید دَ ثوابونوکښ دَالله تعالیٰ نه - آلوسی وئیلی دی چه تاسو طمع لرئ دَ الله تعالیٰ نه دَ هغه څیز چه دَ کافرانو په خیال کښ هم نه تیریږی چه هغه غلبه دَدین ستاسوده په ټولو ادیانو باطله باندے او ډیر ثوابونه او په جنت کښ همیشه نعمتونه دی - نو په تاسو باندے خو شجاعت اوصبرکول خامخا واجب دے - یا رجاء په معنیٰ دَ خوف سره ده یعنی ستاسو په زړونوکښ دَعذاب دَ الله تعالیٰ نه یره ده نو دَ هغے وجے نه تاسو

إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ
یقینًا مونږ نازل کړیدے تا ته کتاب په رشتیا سره
لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا
د دے د پاره چه ته فیصلے اوکړے په مینځ د خلقو کښں په هغه طریقه
أَرَاكَ اللَّهُ ۚ وَلَا تَكُن لِّلْخَائِنِينَ
چه خودلے ده تا ته الله تعالیٰ او مه کیږه د خیانت کرو
خَصِيمًا ﴿١٠٥﴾
طرف دار .

ومن تشئ کولے .

وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ، ستاسو په نیتونو او پټو حالاتو (چه رجاء ده) عالم دے - او د هغه په امر او نهی کښں حکمتونه دی -

ف ۱۰۵ :- په دے آیت کښں اتم امر سیاسی دے یعنی په فیصله کولو کښں په کتاب الله باندے د هیڅ طرفداری (خصوصًا د خیانت والو) جائز نه ده -

ربط ۱ :- هر کله چه مخکښں آیت کښں تشجیع په جهاد باندے او رجا د مؤمنانو ذکر کړه نو اوس ذکر کوی چه د دغه مخکښں صفاتو سره چه کافرانو په مقابله کښں دی په تاسو لازم دے ځان ساتل د طرف دارئ نه او د منافقانو د صفاتو نه -

ربط ۲ :- دا رنګ مخکښں احکام د جهاد ، هجرت او د مونځ د خوف او د سفر ذکر شول نو اوس ترغیب ورکوی چه په دا سے ټولو احکامو کښں کتاب الله او سنت رسول (صلی الله علیه وسلم) ته رجوع کوئ او په دیکښں د منافقانو پشان خیانت مه کوئ -

إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ ، بَاء د ملابست د پاره ده یعنی متلبس او مشتمل دے په حق باندے یعنی هیڅ غلطه او باطله او شکمنه خبره پکښں نشته -

لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ، دا يو مقصد دے دَ مقاصدو دَ انزال دَ قرآن نه او دا مقصد دَ ټولو الهي کتابونو دے لکه سورة بقره ۲۱۳ کښ تیر شویدی - بعضے نور مقاصد دَ انزال په نورو آیتونو کښ دی - په خلقو باندے قرآن کریم لوستل په سورة اسراء ۱۰۶ کښ او تشریح کول دَ کتاب الله په سورة نحل ۴۴ ۶۴ کښ، یره او زیرے ورکول په سوره کهف ۳، ۲ او سورة شعراء ۱۹۳ او سورة فرقان ۱ کښ، خلق دَ تیارو نه رڼا ته راویستل سورة ابراهیم ۱ کښ، او چه خلق په انصاف او عدل باندے قائم شی سورة حدید ۲۵ - او نور هم ډیر مقاصد دی -

بِمَآ اَرٰىكَ اللّٰهُ، دَ رویت نه اخستلے شوے چه په معنیٰ دَ علم سره دے او علم دَ نبی صلی الله علیه وسلم وحی وه او علم ته رویت دَ دے وجے نه ویلے شی چه علم یقینی سره یو ځیز معلوم شی نو داسے وی لکه چه په سترګو باندے لیدلے شوے وی - ابن کثیر ذکر کړیدی چه په اراک الله کښ دَ نبی صلی الله علیه وسلم اجتهاد داخل دے او دَ هغه اجتهاد دَ پاره هغه ډیر احادیث ذکر کړیدی هغه هلته اوګورئ لیکن اجتهاد دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ نص پشان دے ځکه چه الله تعالیٰ خپل نبی لره په خطائی باندے باقی نه پریږدی - امام بیهقی او ابن عبد البر دَ عمر رضی الله عنه اثر ذکر کړیدے چه هیڅوک په داسے نه وائی چه ما فیصله کړیده په هغے چه الله تعالیٰ ماته خودلے دی ځکه دا خصوصیت دَ نبی صلی الله علیه وسلم دے چه دَ هغه رائے ضرور حق وی او زمونږ خو ګمان او تکلف وی (قرطبی، زمخشری، قاسمی)

فائده :- ما اراک وحی خفی ده چه هغه سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم دے که دَ دینه مراد قرآن وے نو په لفظ دَ انزل یا اوحی سره به ئے ویلے وے - نو دا دلیل دے چه سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم په دین کښ دَ قرآن کریم پشان حجت دے -

وَاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ

او بخنه غواړه دَ الله تعالىٰ نه، يقيناً الله تعالىٰ دے

غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿١٠٦﴾

بخنه كوونكے رحم كوونكے.

وَلَا تَكُنْ لِّلْخَآئِنِيْنَ خَصِيْمًا، لِلْخَآئِنِيْنَ متعلق دے په خصيماً پورے او لام دَ تعليل دَپاره دے او دا اول ادب دے. يعنى دَ خيانت دَ وجے او دَ هغوى دَ مدافعت كولو دَپاره جګړه مار مه جوړيږه او دَ هغوى طرف دارى مه كوه. خائنين عام دے كه غلا ئے كړى وى يا ئے دَ غلا كر ملګرتيا كړے وى يا ئے بله ګناه كړے وى نو جمع ئے دَ دے وجے نه ذكر كړه.

فائده:- ابو حيان وئيلى دى چه مفسرينو دَ دے په سبب نزول كښ اوږده روايات ذكر كړيدى ليكن دَ هغے خلاصه دا ده چه طعمه بن ابيرق دَ قتاده بن نعمان زغره دَ اوړو په ګوډى كښ پټه كړيوه او بيا ئے دَ يو يهودى په كور كښ (په طور امانت سره) كيخودلے وه - او هغه يهودى نه دَ دے علم نه وو. نو قتاده چه په طعمه باندے دَ غلا دعوىٰ اوكړه نو هغه انكار اوكړو او قسم ئے اوكړو چه ما ته دَ دے هيڅ علم نشته - نو دوى تفتيش شورو كړو نو دَ اوړو نخه دَ يهودى دَ كور پورے معلومه شوه نو طعمه او دَ هغه ملګرو په هغه يهودى باندے بد نامه اولګوله نو يهودى اووئيل چه دا طعمه ما سره امانت كيخودلے دے نو دَ طعمه دَ قسم دَ وجے نه نبى صلى الله عليه وسلم اراده كړيوه چه دَ طعمه طرف دارى اوكړى او هغه برى كړى او غلا په يهودى باندے ثابته شى (ځكه چه نبى صلى الله عليه وسلم غيب دان نه وو) نو الله تعالىٰ دا آيا تونه (يوه ركوع پورے) په دے باره كښ نازل كړل.

ملا :- وَاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا، دا دويم ادب دے.

وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ
او جګړه مه کوه د هغه کسانو د طرف نه چه نقصاني کوي
اَنْفُسَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ
ځانونه خپل، يقيناً الله تعالیٰ مينه نه کوي

سوال:- امر په طلب د مغفرت باندې دلالت کوي چه نبي صلی الله عليه وسلم ګناه کړيده؟
جواب:- هرکله چه ثابته شوې ده چه نبي صلی الله عليه وسلم عالم الغيب نه دې نو هغه د ظاهر په موافق سره اراده د حکم اوکړه په يهودي باندې ځکه چه سامان د هغه سره بيکاره شو او د طعمه د برئ کولو نو دا صريح ده چه نبي صلی الله عليه وسلم ګناه نه ده کړې نو ضروري ده چه د استغفار تاويل اوکړې شي. نو امام رازي او صاحب اللباب او نورو مفسرينو مختلف توجيهات ذکر کړي دي.
اوله توجيه، مشهور قول دې چه د عامو نيکانو خلقو نيکئ د مقربينو د پاره بدئ شمارلې کيږي يعنې د هغوي خلاف اولیٰ کار (چه جائز دې) استغفار ته محتاج دې.
دويمه توجيه، دا استغفار په طريقه د تعبد سره دې د پاره د حکم د الله تعالیٰ.
دريمه توجيه، دا استغفار دې د هغه چا د پاره چه د طعمه طرف داري ئې کوله يعنې د هغوي د پاره استغفار اوغواړه.
څلورمه توجيه، دا استغفار د غين (خفګان او ساړولي) لرې کولو د پاره وي ځکه چه حديث کښ راغلي دي. نبي صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي چه زما په زړه غين راشي (ساړولي د خلقو د کاروبار نه) نو زه اويا کرته استغفار غواړم. نو حاصل دا دې چه استغفار د ډيرو وجوهو د پاره راځي نو دا د ګناه د پاره مستلزم نه دې.

# مَنْ كَانَ خَوَّانًا اَثِيْمًا (۱۰۷)

دَ هغه چا سره چه وی ډیر خیانتګر ګنهګار۔

ربط:۔ دادریم ادب دے۔

وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَهُمْ، مجادله په معنٰی دَ بحث کولو او دلیلونه پیش کولو دے که صحیح وی او که غلط وی دَخیانت ګرو دَ بچ کولو دَپاره۔

سوال:۔ لاتکن للخائنین خصیمًا او په دے جمله کښ څه فرق دے؟

جواب:۔ هلته خاص خیانتګر مراد وُو چه دَ هغوی په باره کښ دا آیتونه نازل شوے وو او دلته دَ الَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ نه عام خیانتګر مراد دی۔ یا اوله جمله کښ صرف طرف داری مراد ده او په دے جمله کښ دَ هغوی دَطرف نه بحث کول او وکالت کول مراد دی۔ یا په هغه جمله کښ دَخائنینو سره صرف دله بازی او طرف داری مراد وه او په دے جمله کښ دَ سزا نه بچ کول مراد دی۔ دا آیت دلیل دے چه دَ چا جرم ښکاره وی نو دَ هغه دَپاره قصداً دَ بچ کولو وکالت کول یا نور څه ذرائع استعمالول نه دی جائز۔

الذین یختانون، مراد هغه څوک دی چه غلا کوی یا په دروغه قسم کوی یا دَ غلا ګرو دله او پیره کوی۔ او دَ هغوی باره کښ ئے اوئیل چه دوی دَځان سره خیانت کوی دَ دے وجے نه چه په دغه ګناهونو سره ئے ځان دَ ثواب نه محروم کړو او ځان ئے دَعذاب مستحق اوګرځو نو دائے دَځان سره خیانت اوکړو۔

اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ خَوَّانًا اَثِيْمًا، دا دلاتجادل دَپاره علت دے۔ خَوَّانًا، صیغه دَ مبالغے ده یعنی ډیرخیانت کوونکے، افراط کوونکے په خیانت کښ۔ اَثِيْمًا هم دَ مبالغے صیغه ده یعنی په ګناهونو کښ ورننوتلے دے۔ دَ دے دواړو صفتونو جمع په دے وجه ده چه په اول کښ مراد غلا کول او دَ امانت نه انکار کول دی او په دویم صفت کښ مراد پاک امن شخص باندے

يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ النَّاسِ وَلَا

دوی ځان پټوی دَ خلقو نه او نه شي

يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ اللّٰهِ وَهُوَ مَعَهُمْ

پټیدی لے دَ الله تعالیٰ نه ځکه چه هغه دَ دوی سره دَے

اِذْ يُبَيِّتُوْنَ مَا لَا يَرْضٰى مِنَ الْقَوْلِ

کله چه دوی جرګه کوی دَ هغه څه چه نه خوښوی الله تعالیٰ دَ هغه ویناله ،

بدنامه لګول دی ردا روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه آلوسی ذکر کړیدے) - یا اول صفت په اعتبار دَ ډیرو غلاګانو او دَ دروغو قسمونو سره دے رچه دا په طعمه بن ابیرق کښ موجود وو) او دویم په اعتبار دَ جدال او د له ګولو دَ طرف دَ هغه نه - او اول صفت په اصل کښ سبب دے دَ دویم دَ پاره دَ دے وجے نه هغه ئے مخکښ ذکر کړیدے - ابوحیان وئیلی دی چه خوان او اثیم دَ مبالغے صیغے ئے دَ دے وجے نه ذکر کړیدی چه څوک یو کرت خیانت یا غلا اوکړی په غفلت سره یا بغیر دَ قصد نه نو دَ هغه حکم دا سے نه دے -

سوال :- سورة انفال ۵۸ کښ فرمائیلی دی ان الله لا یحب الخائنین - هغه دلالت کوی چه صرف خیانت هم سبب دَے دَ پاره دَ عدم محبت دَ الله تعالیٰ ؟

جواب :- هلته دَ خیانت نه مراد دَ وعدے ماتول دی او دغه دَ نفاق دَ پاره خاص علامت دے دَ مؤمن دَ شان سره نه خائیږی او دلته دَ خیانت مصداق غلا کول دی اګرچه هغه ګناه کبیره دے لیکن په غلا ماتو دَ نفاق کښ شمار نه دے (والله اعلم)-

۱۰۸ :- په دے آیت کښ دَ هغه منافقانو نور قبیح صفات ذکر کوی -

يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ النَّاسِ ، دا جمله مستانفه ده یا حال دے دَ لفظ مَنْ نه په مخکښ آیت کښ - استخفاء ځان پټول دی

وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطًا ﴿۱۰۸﴾

او دے اللہ تعالیٰ دَدوی عملونو لره راگیر وونکے۔

لکه په مستخفٍ بالليل سورة رعد کښ۔ نو معنیٰ دا ده چه ځان پټوی دَ خلقو نه۔ او دَ ابن عباس رضی اللہ عنهما نه یو روایت دے چه دَ دیته مراد استحیاء کول دی۔ واحدی وئیلی دی چه دغه معنیٰ ده تفسیر نه دے یعنی ځان پټول دَ حیاء دَ وجے نه وی یعنی په خلقو کښ دَ شرمیدلو نه ځان پټ کوی۔ دَ دے وجے نه دَ غلا کولو نه په دروغه قسم سره انکار کوی او په بل چا باندے بهتان لگوی۔

وَلَا يَسْتَخْفُونَ مِنَ اللّٰهِ ، دلته مراد عدم استطاعت دے یعنی دَ اللہ تعالیٰ نه ځان نشی پټولے په سبب دَ وَهُوَ مَعَهُمْ سره۔ یا دَ دیته مراد استحیاء ده نو صرف نفی مراد ده یعنی حیاء نه کوی دَ اللہ تعالیٰ نه۔ مَعَهُمْ ، دا معیت عامه دَ اللہ تعالیٰ صفت دے۔ په دیکښ دَ سلفو صالحینو دوه اقوال دی۔ اول قول دا چه دا دَ متشابهاتو نه دے یعنی دا سے معیت چه دَ اللہ تعالیٰ دَ ذات سره مناسب دے بغیر دَ تحریف او تاویل او بغیر دَ تشبیه او تمثیل نه۔ دویم قول دا دے چه دا مشترک دے نو دا په یو معنیٰ باندے حمل کول تاویل حقه دے۔ دَ دے وجے نه قرطبی وئیلی دی چه دَ دینه مراد معیت دے په علم سره اولیدلو او اوریدلو سره۔ او دا قول دَ اهل سنت والجماعت دے۔ او جهمیه، معتزله او قدریه وئیلی دی چه اللہ تعالیٰ په هر مکان کښ دے او دَ دے آیت نه استدلال کوی لیکن دا خو صفت دَ اجسامو دے او اللہ تعالیٰ دَ هغے نه پاک دے۔ او بشر معتزلی چه په مناظره کښ دا آیت ذکر کړے وو چه مَا يَكُونُ مِنْ نَجْوَىٰ ثَلَاثَةٍ إِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ نو خصم (اهل سنت) ورته أووئیل چه آیا اللہ تعالیٰ ستا په ټوپۍ کښ دے او ستا په گیډه او ستا دَ خر په گیډه کښ دے بلکه پاک دے

هَاَنْتُمْ هٰؤُلَآءِ جٰدَلْتُمْ عَنْهُمْ

خبردار تاسو اے خلقو ! جګړه کوئ د دوی د طرف نه

فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا فَمَنْ یُّجَادِلُ

په ژوندِ دنیوی کښې نو څوک به جګړه اوکړی

اللّٰهَ عَنْهُمْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ اَمْ مَّنْ

د الله تعالیٰ سره د دوی د طرف نه په ورځ د قیامت کښې، بلکه څوک

یَّکُوْنُ عَلَیْهِمْ وَکِیْلًا ﴿۱۰۹﴾

به وی د دوی ذمه وار۔

الله تعالیٰ د دے صفت نه، دا روایت د وکیع رحمه الله نه روایت کړے شوے دے۔

اِذْ یُبَیِّتُوْنَ مَالَا یَرْضٰی مِنَ الْقَوْلِ، تبییت شپے تیرولو ته وئیلے شی او د شپے کارکول او د شپے مشوره کول۔ یعنی د طعمه ملګرو د هغه د بچ کولو د پاره په یوکور کښې د شپے مشوره کړے وه۔ من القول نه مراد په دروغه قسمونه او شهادت کول دی د مجرم د بچکولو د پاره او د غیر مجرم د بے نامولو د پاره۔ او قرطبی وئیلی دی چه د قول نه مراد رائے او اعتقاد دے۔

وَکَانَ اللّٰهُ بِمَا یَعْمَلُوْنَ مُحِیْطًا، یعنی اګرچه د دوی کارونه (غلا کول او مشورے کول وغیره) پټ وو لیکن د الله تعالیٰ نه پټ نه دی۔ هر کله چه د دوی په دے صفاتو کښې بعضے اقوال او بعضے اعمال دی او دغه دواړه د زورنے د پاره لائق دی نو د اقوالو په باره کښې (اِذْ یُبَیِّتُوْنَ مَالَا یَرْضٰی مِنَ الْقَوْلِ) سره زورنه ورکړه او د دوی د اعمالو په باره کښې په دے جمله وَکَانَ اللّٰهُ بِمَا یَعْمَلُوْنَ مُحِیْطًا کښې سخت وعید ذکر کړے شوے۔ دا هغه کسانو ته خطاب دے چه د طعمه نه ئے دفاع کوله او مقصد پکښې زجر دے۔

# وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ

| او څوک چه | عمل اوکړو | بد | یا ئې | ظلم اوکړو |
|---|---|---|---|---|

هٰٓاَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ جٰدَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا، جدال په اصل کښ درسئ (رسۍ) کلک او دلو ته وئیلے شی او په عرف کښ جګړے ته وئیلے شی ګویا که هر یو د جګړه کوونکو نه بل جانب لره د خپل مقصد نه اړوی - دا قول د زجاج دے. یا دا لفظ د جدال نه اخستلے شوید ے یعنی په مخ د زمکه باندے غورځول نو مراد دا چه هر یو د طرفینو نه بل جانب او طرف لره ذلیل کول غواړی لکه چه په زمکه باندے او غورځیږی.
فَمَنْ يُّجَادِلُ اللّٰهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ، دا استفهام د توبیخ (زورنے) د پاره دے او په معنیٰ د انکار دے یعنی هیڅوک د الله تعالیٰ سره مجادله (جنګ) نشی کولے - یعنی الله تعالیٰ عالم دے په هر څیز باندے د هغه نه هیڅ پټ او پناه نشته - نو په هغه باندے هیڅ تلبیس نشی کیدے او نه ورسره څوک جګړه کولے شی په ورځ د قیامت - او تخصیص د قیامت د ورځے ئې، د دے وجے نه اوکړو چه الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ حساب کوی نو هغه نه څوک جواب نشی کولے داسے جواب چه الله تعالیٰ لره چپ او غلے کړی -
اَمْ مَّنْ يَّكُوْنُ عَلَيْهِمْ وَكِيْلًا، اَمْ په معنیٰ د بَل آ دے - او دلته استفهام کښ معنیٰ د انکار موجود ده وکیل هغه څوک وی چه هغه ته کار اوسپارلے شی او دلته په معنیٰ د بچ کوونکی دے د حساب او د عذاب الهی نه - دلته په صله د وکیل کښ علیٰ ذکر کړے دے ځکه چه متضمن دے معنیٰ د ولایت لره یا په معنیٰ د لام سره دے -

نَفْسَهٗ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ يَجِدِ

| په ځان خپل بيا بخنه اوغواړي د الله تعالیٰ نه او به موقي |
|---|

اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿١١٠﴾

| الله تعالیٰ لره بخونکے رحم کوونکے۔ |
|---|

ت۱۱۰: د وعيدونو د ذکر کولو نه روستو اوس ترغيب ورکوي توبے کولو ته۔

وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ، مفسرينو په ديکښ په ډيرو وجوهو سره فرق ذکر کړيدے۔

اوله وجه سوء هغه بدکار دے چه بل شخص خفه کوي لکه چه دوي په يهودي او قتاده بانديے بدنامه اولګوله۔ او ظلم، په نفس باندے هغه ګناه ده چه خاص وي په نفس پورے لکه په دروغه سره قسم کول۔

دويمه وجه سوء هره ګناه ده بغير د شرک نه او د ظلم نه مراد شرک کول دي۔

دريمه وجه سوء ګناه صغيره ده او ظلم ګناه کبيره ده۔

څلورمه وجه سوء غلا کول دي يا هره ګناه ده او ظلم په چا باندے تهمت او بهتان لګول دي۔

ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ، قرطبي وئيلي دي چه د استغفار سره قيد د توبے مراد دے ځکه چه استغفار بغير د توبے نه فائده نه ورکوي او دارنګ د دے سره قيد د مشيت د الله تعالیٰ مراد دے په قرينه د نورو نصوصو سره۔

يَجِدِ اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا، تعبير کے په صيغه د وجدان سره اوکړو اشاره ده چه ګويا مغفرت او رحمت د الله تعالیٰ تيار موجود دے د طلب کوونکو د پاره۔

قرطبي او صاحب اللباب د سفيان عن ابن مسعود رضي الله عنهما روايت ذکر کړيدے چه چا دا آيت او آيت نمبر ۶۴ اولوستلو او بيا مغفرت اوغواړي نو الله تعالیٰ ورته مغفرت کوي۔

وَمَنْ يَّكْسِبْ اِثْمًا فَاِنَّمَا

او چا چه | او کړه | ګناه | يقيناً

يَكْسِبُهٗ عَلٰى نَفْسِهٖ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ

کوي هغه چه (ضرر ورکوي) ځان خپل ته | او | دے | الله تعالیٰ

عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱۱۱﴾

پوهه | حکمتونو والا۔

سلا :۔ مخکښ آيت کښ ترغيب وۀ او په ديکښ تخويف دے چه دَ ګناه کولو سزا په کوونکي دَ ګناه پورے لازم ده۔ او مقصد دَ آيت دفع دَ وهم ده که څوک وهم اوکړي (لکه دَ طعمه دله کوونکي) چه موږ دَ بل چا دَ بچ کولو دَ پاره ګناه کړيده نو په موږ باندے دَ هغے وبال نشته نو دَ هغے جواب اوشو چه وَمَنْ يَّكْسِبْ اِثْمًا فَاِنَّمَا يَكْسِبُهٗ عَلٰى نَفْسِهٖ ، کسب، هر هر هغه قول يا عمل ته وئيلے شي چه مقصد پکښ دَ ځان دَ پاره فائده راښکل وي يا دَ ځان نه دفع ضرر وي۔ دَ دے وجے نه دَ الله تعالیٰ کارونو ته کسب نشي وئيلے کيدے۔ اِثْمًا هره ګناه ته شامل دے که صغيره وي او که کبيره وي نو په ديکښ دَ خيانت دَ پاره خصومت او جدال کول هم داخل دي۔ عَلٰى نَفْسِهٖ ، علیٰ دَ استيلاء (غلبے) دَ ګناه دَ پاره دے په ګنهګار باندے دے او دَ ضرر دَ پاره دے نو په دے کښ اشاره ده (لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى) ته۔

وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ، يعني په هره ګناه او هر ګنهګار باندے عالم دے او سزا ورکول يا معافي ورکول دَ هغه په حکمت باندے بناء ده۔

وَمَنْ يَّكْسِبْ خَطِيْٓـَٔةً اَوْ اِثْمًا

او چا چه اوکړه وړوکے ګناه یا لوے ګناه

ثُمَّ يَرْمِ بِهٖ بَرِيْٓـًٔا فَقَدِ

بیا بدنام کړی په هغے پاک دامن لره نو یقیناً

احْتَمَلَ بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا ﴿۱۱۲﴾

پورته کړه ده لویه بدنامه او ګناه ښکاره۔

۱۱۲:۔ دا زجر دے بهتان لګوونکو ته او دا بل قسم ګناه دے او په واقعه دَ طعمه کښ دا واقع شوې چه هغه او دَ هغه ملګرو په یهودی باندے دَ غلا کولو بهتان لګولے وو۔

دَمَنْ يَّكْسِبْ خَطِيْٓـَٔةً اَوْ اِثْمًا، په دے دواړو کښ فرق دے په ډیرو وجوهو سره۔

اول وجه، طبری وئیلی دی چه خطیئة عام دے که په قصد سره وی او که بغیر دَ قصد نه وی او اثم خو خامخا په قصد سره وی۔

دویمه وجه، خطیئه هغه ده چه بغیر دَ قصد نه وی او اثم هغه دے چه په قصد سره وی۔

دریمه وجه، خطیئه ګناه صغیره ده او اثم ګناه کبیره ده او دا هغه ګناهونو ته عام دی چه په واقعه دَ طعمه کښ ذکر شوی دی۔

ثُمَّ يَرْمِ بِهٖ بَرِيْٓـًٔا، بِهٖ ضمیر اثم ته یا خطیئه یا هر یو ته یا کسب ته راجع دے۔ برئ، هغه څوک دے چه جرم ئے نه وی کړے او نسبت ورته کیږی او دیته بهتان لګول وئیلے شی۔

فَقَدِ احْتَمَلَ بُهْتَانًا، احتمل کښ معنیٰ دَ مبالغے دَ حمل ده یعنی دا دروند بوج دے۔ بهتان دَ بهت نه اخستلے شوے دے او بهت حیرانتیا ته وئیلے شی نو بهتان داسے دروغ دی چه اوریدونکے حیران کړی۔ او حدیث دَ مسلم کښ راغلی دی

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ

او كه نه وے فضل دَ الله تعالیٰ په تا باندے

وَرَحْمَتُهٗ لَهَمَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ

او رحمت دَ هغه (نو دوی به نه خطا کړے وے) ځکه چه يو ټځ قصد کړے وو يو ډلے دَ دوی

أَنْ يُّضِلُّوْكَ ۭ وَمَا يُضِلُّوْنَ إِلَّآ

چه خطا کړی تا (په فیصله کښ) او نه خطا کوی دوی مگر

أَنْفُسَهُمْ وَمَا يَضُرُّوْنَكَ مِنْ شَيْءٍ ۭ

ځانو له خپل او ضرر نشی رسولے تا ته دوی هیڅ ضرر

وَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ

او نازل کړیدے الله تعالیٰ په تا باندے کتاب

چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه غیبت دبته وئیلے شی چه یو ورور مسلمان په هغه صفت سره یاد کړے شی چه هغه پرے خفه کیږی - نو یو صحابی رضی الله عنه تپوس اوکړو چه یا رسول الله (صلی الله علیه وسلم) که هغه صفت پکښ موجود وی نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه هغه صفت پکښ موجود وی نو دغه غیبت دے او که هغه صفت پکښ نه وی نو هغه خو بهتان دے -

وَإِثْمًا مُّبِيْنًا ۔ یعنی دغه شخص گنهګار شو په دوه گناهونو سره یو کسب دَ هغه گناه او دویم گناه دَ بهتان - او بهتان ئے مخکښ ذکر کړو ځکه چه دا ډیر خطرے والا اوهیبت ناک گناه ده - یا دا چه بهتان صریح گناه ده ځکه چه په دے کښ دروغ او دَ مسلمان بے عزتی لازمیږی -

وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ

او سنت او پوهه ئې درکړېده دَ هغه څه چه نه پرے

تَعْلَمُ ؕ وَكَانَ فَضْلُ اللّٰهِ

نه پوهيدے او دے فضل دَ الله تعالىٰ

عَلَيْكَ عَظِيْمًا ﴿١١٣﴾

په تا باندے لوے ۔

۱۱۳ :- دا آيت هم دَ مخکښ واقعے سره متعلق دے او په دے کښ دَ نبی کريم صلى الله عليه وسلم عظمت شان او عصمت ذکر کوی په ښېر طريقو سره ۔

۱ :- فضل دَ الله تعالىٰ ۲ :- رحمت دَ هغه ۳ عصمت دَ ضلال نه ۴ :- کتاب او حکمت نازليدل ۵ علم دَ مالا يعلم ۶ فضل عظيم ۔

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهٗ ، شهاب وئيلی دی چه په جواب دَ لَوْلَا کښ دوه وجے دی اوله دا چه لَهَمَّتْ جواب دے ۔ دويمه وجه دا چه جواب دَ لَوْلَا پټ دے يعنی لَاَضَلُّوْكَ (خامخا دوی به نه خطا کړے وے په فيصله کښ دَ دروغو قسمونو دَ وجے نه)۔

په اوله وجه سوال وارديږی چه هرکله دا جواب دے نو دَ لَوْلَا دَ وجے نه دَ هَمَّ انتفاء معلوميږی؟

جواب دا دے چه دلته نفی دَ هم خاص ده چه اَنْ يُّضِلُّوْكَ ۔ يعنی دوی اګرچه هَم کړيدے ليکن دا ضلال هم ئے نه دے کړے ۔

او دَ فضل نه دلته مراد وحی راليږل دی دَ دے آيتونو خصوصًا چه په دے کښ دَ مجرم معلوميدل اوشول ۔ او دَ رحمت نه مراد عصمت دَ نبی صلى الله عليه وسلم دے يعنی دَ غلطے فيصلے نه هغه لرے بچ ساتل (ابوحيان) ۔

يا دَ فضل نه مراد عامه وحی دَ قرآن ده او دَ رحمت نه مراد دَ دے خاص آيتونو وحی ده ۔ يا مراد دَ فضل نه وحی جلی او دَ رحمت نه خفی وحی مراد ده ۔

لَهَمَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ اَنْ يُّضِلُّوْكَ ، داصلال نه مراد خطا کول دي په فيصله کښې چه په بري شخص باندې يې دَ غلا اودَ لاس پرې کولو حکم کړے وے او خيانت کړے بچ کړيوے.
وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ ، دَ دے وجے نه چه وبال او سزا دَ گمراه کولو په دنيا او آخرت کښې په دوى باندے واپس راگرځي ځکه څوک چه بل چا لره گمراه کوى نو دغه شخص اول پخپله گمراه شو. او په آخرت کښې هم ده لره دَ گمراه کولو سزا ورکوى. او دا دَ (وَمَا يَخْدَعُوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ) سوره بقره ۹ او دَ سوره آلعمران ۶۹ پشان دے.
وَمَا يَضُرُّوْنَكَ مِنْ شَيْءٍ ، صاحب اللباب وئيلي دي چه دَ دے دوه وجے دي.
اوله وجه دا چه الله تعالىٰ دَ طرف نه دَ خپل نبي صلی الله علیه وسلم سره په مستقبل کښې دَ عصمت وعده ده.
دويمه وجه دا چه دا په موجوده واقعه کښې مراد دے. يعني دوى اگرچه کوشش اوکړو ليکن ته يې په گناه کښې واقع نه کړے ځکه چه تا په اعتبار دَ ظاهر سره فيصله کوله او قاضي چه په ظاهر شواهدو باندے فيصله اوکړى او خطا شي نو هيڅ گناه ورباندے نه وى.
وَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ، دا دَ مخکښې جملے تاکيد دے يعني الله تعالىٰ په تا باندے کتاب او حکمت نازل کړيدے او په تا باندے دَ هغې تبليغ او په هغې باندے فيصلے کول فرض کړيدى. نو خامخا به ستا عصمت کوى او خامخا به ته دَ هغې په ظاهر باندے فيصلے کوے. دَ کِتَاب نه مراد قرآن کريم او دَ حکمت نه مراد احاديث (سنت) دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم دي. او دا دليل دے چه احاديث صحيحه هم نازل شوے وحي ده ليکن هغې ته وحي خفي وئيلے شي.
وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ ، دا جمله هم دَ تير شوو جملو دَپاره تاکيد دے په دوو طريقو سره.

اوله طریقه دا چه دَ عالم تکن نه امور دَ دین مراد دی چه هغه اسرار (رازونه) او حکمتونه دَ قرآن او سنت دی چه هغه تا ته معلوم نه وو۔ نو آئنده دَ پاره به هم تا ته علم درکوی نو منافقان تا تشی گمراه کولے۔
دویمه طریقه داده چه دَ دیته مراد اخبار دَ اولینو دی (دَ تیر شوو پیغمبرانو او دَ هغوی دَ قومونو حالات) نو دا رنگ تا ته دَ منافقانو حیلے او مکرونه بنائی دَ دے دَ پاره چه ځان ترینه بچ اوساتے۔
سوال:۔ بعضے جاهلان دَ دے آیت نه دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ پاره علم کلی (علم غیب) او علم دَ جمیع ما کان او ما یکون دَ پاره استدلال کوی۔ دَ استدلال طریقه ئے دا سے ده چه دَ علم فاعل الله تعالی دے او مفعول اول ئے نبی صلی الله علیه وسلم دے او لفظ دَ ما دَ عموم دَ پاره دے نو معلومه شوه چه هر هغه څیز او کار چه مخکښ دَ نزول دَ دے آیت نه نبی صلی الله علیه وسلم ته معلوم نه وو نو دَ هغه ټولو څیزونو علم ئے ورکړے دے۔ دا استدلال بریلیانو په تفسیر نعیمی صفحه ع۱۳ ع۱۲۱ کښ او په کتاب جاء الحق صفحه ع۵ ،ع۱۹ او میقاس حنیف صفحه ع۲۷۳ کښ ذکر دے؟
جواب ع۱:۔ دا قاعده چه دَ علم فاعل الله تعالی وی او مفعول ئے نبی صلی الله علیه وسلم وی نو علم کلی مراد وی دا خود ساخته قاعده ده دَ دے دَ عربیت او اصول فقه په کتابونو کښ هیڅ ثبوت نشته۔ بلکه په داسے مقام کښ دَ قائدے دارومدار ثانی بانـدے وی۔ دا رنگ لفظ دَ ما دَ عموم دَ پاره نه دے وضع شوے لکه چه دَ اهل تحقیق مذهب دے۔ بلکه شرح مواقف صفحه ع۲۳ کښ لیکلی دی چه موصولات (چه حرف ما پکښ شمار دے) دَ جنس دَ پاره وضع کړے شوی دی دَ عموم او خصوص دَ پاره نه دی وضع شوی۔ او په قرآن کریم کښ دَ خصوص په ځائے کښ ډیر استعمال کړے شوی دی لکه (وَاٰتٰىكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ سوره مائده ع۲۰) كَمَا عَلَّمَكُمْ

مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ سوره بقره سلا۲۳۹) (وَعُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوْا اَنْتُمْ وَلَا اٰبَآؤُكُمْ سوره انعام سلا۹) او (عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ سورة العلق سلا۵) ابن کثیر وئیلی دی چه دَ الانسان نه مراد جنس دے او په دے آیتونو کښ که ما دَ عموم دَپاره شي نو دَ ټول امت بلکه دَ بني اسرائیلو هم بلکه دَجنس انسان دَپاره په علم کلی ثابت شي۔

جواب عـ۲ :- دا آیت او سورت دَ هجرت په څلورم کال نازل شوے دے نو که نبی صلی الله علیه وسلم ته علم کلی حاصل وے۔ نو دَ دینه روستو ډیر سورتونه نازل شویدی نو دَ هغے نزول ته هیڅ ضرورت نه وو۔ دارنګ دَ دینه روستو سوره توبه نازل شویدے او په هغے کښ فرمائیلی دی چه (لَا تَعْلَمُهُمْ نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ سوره توبه سلا۱۰۱) نو دا خو دَ هغے سره ښکاره تعارض راځي۔

جواب عـ۳ :- مفسرینو په دے آیت کښ دَ لفظ ما سره دَ تخصیص دَپاره قیودات ذکر کړی دی۔ قرطبی وئیلی دی چه مِنَ الشَّرَائِعِ وَالْاَحْكَامِ۔ ابوحیان دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل ذکر کړیدے چه هُوَ الشَّرْعُ او دَ ابوسلمان نه ئے نقل راوړیدے اَخْبَارُ الْاَوَّلِيْنَ وَالْاٰخِرِيْنَ۔ او امام رازی دَ قفال نه نقل کړیدی چه مَا يَتَعَلَّقُ بِاُمُوْرِ الدِّيْنِ او یل قول اخبار الاولین دے۔ او په کومو تفسیرونو کښ چه مِن علم الغیب ذکر دے دَ هغے نه مراد بعضے علم دے چه هغه په وحی سره ورکړے شویدے۔

وَكَانَ فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ عَظِيْمًا ، دَ دینه مراد هغه انعامات دی چه هغه خاص دی په آخری نبی پورے چه هغه دَ هغه دَ بعثت عموم او ختم نبوت دے۔ او کثرت دَ معجزاتو سره دَ معجزے دَ قرآن او بقاء دَ امت دَ هغه تر قریب دَ قیامت پورے او نور هم دَ هغه ډیر خصائص شته دے (صلی الله علیه وسلم)۔

لَا خَيْرَ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰهُمْ

او نيشته هيڅ فائده په ډيرو جرګو د دوی کښ

اِلَّا مَنْ اَمَرَ بِصَدَقَةٍ اَوْ مَعْرُوْفٍ

مګر جرګه د هغه چاچه حکم کوی په صدقې سره يا په نيک کار

اَوْ اِصْلَاحٍۢ بَيْنَ النَّاسِ وَمَنْ

يا په صلح کولو سره په مينځ د خلقو کښ او چاچه

يَّفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ

کوی دا کار دپاره د طلب د رضاء د الله تعالیٰ

فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۱۴﴾

نو زر دے چه ورته کړو مونږ هغه ته ثواب لوئے۔

۱۱۴:۔ په دے آيت کښ د نجوی کولو په باره کښ د ادب ذکر دے۔
ربط :۔ هر کله چه په تير شوے واقعه کښ معلومه شويده چه د طعمه ملګرو د هغه د بچ کولو او د بری شخص د راګيرولو دپاره جرګے کولے نو په دے مناسبت سره ذکر د اقسام د جرګے ته ضرورت واقع شو۔ اکثرو مفسرينو وئيلی دی چه په نجواهم کښ ضمير طعمه او د هغه ملګرو ته راجع دے او ابن عطيه وئيلی دی چه ضمير عام انسانانو ته راجع دے او دا استيناف (د سره کلام) دے۔ ليکن غوره دا ده چه حکم عام دے اګر چه مخکښ واقعه پکښ هم داخله ده۔
لَا خَيْرَ ، دا لفظ د تاکيد په مقام کښ ذکر کيدے شی ځکه چه لَا د نفی د جنس دپاره دے نو نفی د جنس خير سره وجود د شر لازم دے۔
فِيْ كَثِيْرٍ ، دا دليل دے په طريقه د مفهوم صفت سره چه لږو (بعضے) اقسامو د جرګو کښ خير شته دے۔
مِنْ نَّجْوٰهُمْ ، واحدی وئيلی دی چه نَّجْوٰی په لغت کښ

پټ راز دے په مینځ دَ دوه کسانو کښ - او زجاج وئیلی دی چه نجوٰی داده چه دوه تنه یا زیات ځان له شی یعنی دَ خلقو نه جدا شی، پټ وی اوکه ښکاره وی - او دا لفظ کله مصدر وی لکه په سوره مجادله ۸ کښ. اوکله اشخاصو ته مجازًا وئیلے شی لکه (اِذْ هُمْ نَجْوٰی) سوره اسراء ۴۷ - اوکرمانی وئیلی دی چه نجوٰی کله جمع وی دَ پاره دَ نجی - دلته غوره دا ده چه نجوی په معنیٰ مصدری سره دے او جائز ده چه په معنیٰ دَ اشخاص دے او اضافت په معنیٰ دَ من سره دے -
اِلَّا مَنْ ، دا استثناء متصل ده لیکن په حذف دَ مضاف سره یعنی الا نجوٰی من - یا استثناء منقطع ده نو اِلَّا په معنیٰ دَ لکن سره دے - او دا دواړه اقوال بناء دی په دے خبره چه نجوی په معنیٰ مصدری سره شی - اوکله چه مراد اشخاص وی مجازًا نو بیا استثناء متصل ده -
سوال :- دَ کثیر نه په طریقه دَ مفهوم صفت سره معلومه شوه چه په بعضے نجوی کښ خیر شته نو په دے استثناء کښ څه فائده ده ؟
جواب :- دَ مفهوم صفت نه دَ بعضے حکم معلوم شو لیکن هغه بعضے مجمل دی نو په استثناء کښ تفصیل اوشو دَ هغے په ذکر دَ درے اقسامو سره لیکن تخصیص دَ دے دریو دَ ډیر اهتمام دَ وجے نه دے ، دَ حصر دَ پاره نه دے -او هره نجوٰی دَ هغه خیر دَ پاره چه فائده پکښ وی او دینی ضرر پکښ نه وی نو هغه په جواز کښ داخل ده -
اَمَرَ بِصَدَقَةٍ اَوْ مَعْرُوْفٍ، په امر سره مراد تیزی ورکول دی ، او صدقة فرض او نفل دواړو ته شامل ده - او معروف هره نیکئ ته شامل دے لکه چه په حدیث کښ وارد دی چه دَ مسلمان ورور سره په فراخ او رونړندی سره مخامخ شئ نو دا هم معروف دے - او آلوسی وئیلی دی چه معروف هر هغه قول او فعل دے چه په دلیل

شرعي سره دَ هغې ښائست (ثواب) ثابت وي نو ټول اقسامو دَ نيکئ ته شامل دے لکه چا ته قرض ورکول، دَ محتاج امداد کول او بے لارے شخص ته ارشاد او هدايت کول وغيره۔
سوال :- په نيکئ کښ اصلاح او صدقه داخل دي نو هغه ئے جدا ولے ذکر کړل ؟
جواب ۱:- دَ دغه دوارو دَ ډير اهتمام دَ پاره۔
جواب ۲ :- زمخشري وثيلي دي چه دَ صدقه نه مراد فرض صدقه ده او دَ معروف نه نفلي صدقه مراد ده ليکن اول جواب اصح دے۔ او قرطبي په دے کښ ډير بحث ذکر کړے دے۔
اَوْ اِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ ، اِصْلَاحٍ عامه ده په باره دَ وينو (قتل) کښ او دَ مالونو کښ او دَ عزتونو کښ، او دَ مسلمانانو په مينځ کښ په هر اختلاف کښ۔ او تخصيص دَ دے درے قسمونو دَ دے وجے نه شوے دے چه عمل دَ خير (متعدي) يا په نفع رسولو سره دے يا په ضرر دفع کولو سره دے۔ او نفع رسول يا به دَ منافع جسماني سره تعلق لري يا دَ روحاني سره نو اول قسم صدقه ده او دويم قسم معروف دے۔ او چه دَ دفعے دَ ضرر سره وي نو دا اصلاح ده۔ دا رنګ عمل دَ خير يا به نفع متعدي وي دَ طرف دَ مامور نه بل چا ته نو دا صدقه ده يا به لازم وي دَ مامور سره نو معروف دے او يا به دفع کول وي دَ مامور نه پخپله يا په واسطه دَ مامور سره دَ بل چا نه نو دا اصلاح ده۔
سوال :- سوره مجادله ۹ کښ په جانب دَ نهي دَ مجادله دَ اثم دَ عدوان او معصيت رسول او په جانب دَ امر کښ دَ بِر او تقوي تخصيص کړے دے او صريح امر او نهي ئے ذکر کړي دي نو دَ دے آيت سره وجه دَ فرق څه ده ؟
جواب :- هلته خطاب دے مؤمنانو ته دَ هغوي دَ شان سره صريح امر او نهي مناسب ده ځکه چه هغوي دَ الله تعالیٰ

او دَ رسول صلی الله علیه وسلم دَ امر او نهي پوره لحاظ کوي.
او دلته دا آیت په باره دَ معاملې دَ منافقانو کښې ذکر دے نو په طریقه دَ اخبار سره یې اوئیل چه دوي ډیرے بے خیره جرګے کوي او دا دَ منافقانو شان دے. اګرچه دا اخبار هم مستلزم دے معنیٰ دَ انشاء لره دا رنګ دَ هغوي (منافقانو) جانب ته یې دَ ممنوع نجوي اجمالي ذکر اوکړو چه عموم پکښې راشي او هلته یې تخصیص اوکړو چه دَ اثم او عدوان او معصیت رسول چه دا دَ ایمان سره منافي امور دي دا رنګ هلته لفظ بر شامل دے صدقه، امر بالمعروف او اصلاح ټولو ته چه دا ټول خیر متعدي وو. او لفظ تقواي خیر لازمي دے. او دا عموم دَ مؤمنانو دَ شان سره موافق دے.
وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا، هر کله چه اعمال دَ خیر بغیر دَ نیت او اخلاص نه نه قبلیږي نو هغه شرط یې په دے جمله کښې ذکر کړو.
ذٰلِكَ اشاره ده دغه درے اعمالو ته. او په دے جمله کښې درے اقوال دي.
چه اول امر دَ آمر ذکر کړو نو اوس ثواب دَ فاعل (چه دغه عملونه کوي) ذکر کوي.
دویم قول، دلته یې یفعل په ځاے دَ یامر ذکر کړو اشاره ده چه دَ دے امورو دَ سبب دَ پاره تخصیص دَ صیغې دَ امر نشته بلکه په هره طریقے سره چه ترغیب ورکړیشي نو کافي دے ځکه لفظ دَ فعل عام دے دَ امر نه.
دریم قول، دَ امر نه مقصد فعل کول دي نو ځکه دَ امر نه تعبیر په فعل سره اوکړے شو.
ابتغاء طلب او لټون دَ یو څیز دے په کوشش سره او دا مفعول له دے، مرضاة مصدر میمي دے په معنیٰ دَ رضا سره او دَ رضا نه مراد خلوص دَ عمل دے دَ الله تعالیٰ دَ پاره بغیر دَ ریا او سمعت نه. اَجْرًا عَظِيْمًا، اجرا او عظیمًا

وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ
او چا چه خلاف اوکړ د رسول (صلی الله علیه وسلم) نه روستو د هغې نه
مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ
چه ښکاره شو هغه ته هدایت او روان شو په غیر
سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا
د لارې د مؤمنانو (صحابو) نو وا به ړوو دهٔ لره کوم خوا چه
تَوَلّٰى وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ ؕ وَسَآءَتْ
دے واوړیدو او داخل به کړو دے جهنم ته، او بد دے ځائے
مَصِيْرًا ۝۱۱۵ ع
د ورتللو (دا جهنم)

ع ۱۷ / ۱۴

نکره ده د پاره د تکثیر او تعظیم او تاکید په عظیما سره نور تاکید پیدا کوی۔

۱۱۵:۔ دا عطف دے په وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ باندے نو دا ذکر د یو ضد دے روستو د بل ضد نه۔ او په هغې کښ بشارت وو او په یکښ تخویف دے دا یو طریقه د ربط ده۔ بله دا ده چه هلته ئې د حصول د ثواب د پاره شرط د اخلاص ذکر کړو۔ او هغه مستلزم دے اتباع د رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابو لره۔ نو په دے آیت کښ د عمل او د هغې د ثواب د بربادئ مقابل ذکر کړو چه شقاق او ترک د اتباع ده۔

وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ، آیت اګرچه د واقعې د طعمه سره تعلق لری (لکه چه مفسرینو لیکلی دی) لیکن حکم ئې عام دے په سبب د عموم د الفاظو سره۔ د عربیت قانون دا دے چه فعل مضاعف په حال د جزم کښ په ادغام او فك ادغام دواړو سره جائز دے لیکن په ادغام کښ شدت د شقاق ته اشاره ده لکه چه په سورة حشر ۴ کښ دی

چه د یهودو شقاق سخت وو- او په فك ادغام کښې تخفیف ته اشاره ده لکه چه په سورة انفال ۱۳کښې دی- او دا رنګ په فك ادغام کښې انفکاک (جدا والی) ته اشاره وی نو دلته دا روستو نکته مراد ده چه شقاق کوونکی د رسول سره جدا کیدونکی دی د رسول صلی الله علیه وسلم نه - ابن کثیر وئیلی دی چه دیته شقاق ځکه وئیلے شی چه د مخالفت د وجې نه یو شخص یا یو فریق په یو شق (طرف) کښې پاتې شی او بل شخص یا فریق بل شق کښې پاتې شی نو دا دلالت کوی چه د شقاق اطلاق په ارتداد، کفر او په ابتداع یاندې کیږی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مخالفت کښې بله عقیده یا قول وعمل ته حق او دین وائی، صرف فسق کولو باندې د دې اطلاق نشته -

مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى ، دا قید د زیات قباحت د پاره دے یعنی هغه څوک چه حق ورته په دلیلونو سره ښکاره شویدے او بیا هم د حق نه اوړی نو هغه ډیر ګنهګار دے په نسبت د هغه چا چه حق ورته نه وی ښکاره شوے - یعنی عالم ډیر مجرم دے په نسبت د جاهل او بے علمه سړی سره -

وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ ، د مشاقة الرسول نه روستو دا د جهنم د دخول دویم سبب دے - د سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نه مراد دین حنیف دے (ابوحیان) عقیده او عمل د مؤمنانو، اصول او فروع ټولو ته شامل دے (آلوسی) - المؤمنین کښې الف لام د استغراق د پاره دی لار د هرے زمانے د مؤمنانو چه هغوی پرے جمع شوے وی - یا الف لام عهدی دی یعنی صحابه کرام فقط ، او دا قول غوره دے په دریو وجوهو سره -

اوله وجه دا چه د دے آیت د نزول په وخت کښې مصداق صحابه کرام وو-

دویمه وجه دا چه دا موافق دے د حدیث (مَا اَنَا عَلَيْهِ وَاَصْحَابِیْ) سره -

دریمه وجه دا چه دا موافق دے دَ حدیث دَ ابن مسعود رضی الله عنه چه (مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مُسْتَنًّا فَلْيَسْتَنَّ بِمَنْ قَدْ مَاتَ فَإِنَّ الْحَيَّ لَا تُؤْمَنُ عَلَيْهِ الْفِتْنَةُ أُولٰئِكَ أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ.... الحديث) (څوک چه ستاسو نه تابعداری کوونکے وی نو تابعداری دِ اوکړی دَ هغه کسانو چه مړه شویدی ځکه چه په ژوندی شخص دَ فتنو نه امن نشی کیدے او دغه کسان (چه مړه شویدی) اصحاب دَ محمد صلی الله علیه وسلم دی) - نو دَ دینه مراد هغه عقیده او عمل دے چه صحابه کرامو په هغې باندے اتفاق کړیدے - او آلوسی یو قول دا ذکر کړیدے چه دَ الهدی نه مراد توحید و سنت او عقیده ده او دَ دے جملے نه مراد فروع دی۔

سوال :- دا سے ئے ولے او نه وئیل يَتَّبِعْ سَبِيلَ غَيْرَ الْمُؤْمِنِينَ يا يُخَالِفُ سَبِيلَ الْمُؤْمِنِينَ ؟

جواب:- په دے جمله کښ دَ مؤمنانو دَ لار اهمیت ښکاره کول دی هغه په جمله دَ قرآن کښ دی دا رنګ مذموم اتباع ده دَ غلطے لارے او هغه خاص ده په مسلك او دین جوړولو پورے او هرچه مخالفت دے نو هغه عام دے - مخالفت په طور دَ فسق او په اجتهادی خطایئ سره نه شامل دے - ابن کثیر دَ دے آیت په تفسیر کښ لیکلی دی چه دا (يَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ) لازم دے دَ مخکښ صفت سره (چه هغه مشاقه دَ رسول صلی الله علیه وسلم ده) لیکن کله مخالفت دَ نص دَ شرع نه وی او کله مخالفت دَ هغه څیز نه وی چه په هغې باندے امت محمدیه اجماع کړیده چه اتفاق دَ هغوی په هغې باندے په حقیقت کښ معلوم وی ځکه چه الله تعالیٰ ضمانت کړیدے دَ عصمت دَ دے امت په وخت دَ اجماع دَ دوی کښ دَ خطایئ دَ وجے دَ شرافت دَ دوی نه او دَ وجے دَ تعظیم دَ نبی دَ دوی نه۔ او یقیناً په دیکښ ډیر احادیث صحیحه راغلی دی چه دَ هغې څه حصه په کتاب اصول الاحادیث کښ ذکر کړیده او بعضے علماؤ دَ دے معنیٰ دَ تواتر دعوی کړیده - او هغه چه امام

شافعی رحمه الله په هغې باندې اعتماد کړیدې په حجت نیولو کښ په دې خبره کښ چه اجماع حجت دے چه مخالفت دَ هغې حرام دے هغه دا آیت کریمه دے روستو دَ ډیر سوچ او فکر کولو نه نو دا ډیر ښائسته او قوی استنباطات دی اګرچه بعضے علماؤ (لکه امام راغب) په هغې باندې اشکال ذکر کړیدے. او مهائمی وئیلی دی چه په دے آیت کښ دلیل دے په حرمت دَ مخالفت دَ اجماع باندې ځکه چه الله تعالیٰ سخت وعید مرتب کړیدے په مشاقه الرسول او اتباع غیر سبیل المؤمنین باندې (په دواړو باندې) نو دا به خالی نه وی یا به دَ وجې دَ حرمت دَ یو نه وی نو دا خو باطل دے یا به دَ وجې دَ حرمت دَ جمع نه وی یعنی مجموعی دواړه به حرام وی او یو یو جدا جدا به حرام نه وی او دا هم باطل ده ځکه چه مشاقه دَ رسول خو حرام ده که دویم ورسره ضم (پیوست) وی او که نه وی. نو معلومه شوه چه حرمت دَ هر واحد مراد دے نو اتباع دَ غیر سبیل المؤمنین چه حرام ده نو معلومه شوه چه اتباع دَ سبیل دَ دوی واجبه شوه نو دا مقصد دے دَ دے خبرې چه اجماع دَ وجوب دَ پاره شرعی دلیل دے. او دَ دے وجې نه امام شافعی رحمه الله دَ دے آیت نه استدلال کړیدے دَ اجماع دَ حجتیت دَ پاره چه هغه مشهوره قصه ده چه خفاجی دَ امام مزنی نه (چه دَ امام شافعی شاګرد دے) نقل کړیده. آلوسی او قاسمی هغه قصه په تفصیل سره ذکر کړیده او ابن کثیر هغې ته اشاره کړیده لکه چه مخکښ ذکر شول. اګرچه په دے استدلال باندې امام راغب او ابن حاجب په مختصر الاصول کښ مناقشات کړیدی لیکن دَ دے دَ اثبات دَ پاره نور آیتونه لکه بقره ۱۴۳ او آل عمران ۱۱۰ او احادیث هم شته دے.

فائده :- امام ابن تیمیه رحمه الله په کتاب الفرقان بین الحق والباطل (چه دَ هغې نه قاسمی په تفسیر کښ تفصیل نقل کړیدے) کښ ډاآشنا مقاله لیکلې ده حاصل ئې دا دے چه

سره دَ دینه چه الله تعالیٰ او دَ هغه رسول الله صلی الله علیه وسلم په عقائدو او فروعو ټولو کښ دین کامل پیش کړیدے او دَ هغې دَ اثبات دَپاره یې ډیر آیتونه ذکر کړیدی لکه سوره مائده ۳، سوره یوسف ۱۱۱، سوره نحل ۸۹، سوره توبه ۱۱۵، سوره انعام ۱۱۹ اوسوره نساء ۵۹ لیکن بیا هم استدلال بالاجماع ته حاجت دے دَدے وجے نه چه دغه مستدل په نص نه وی مونده نوځکه په یې اجماع ته رجوع کړیوی (او هغه وئیلی دی) چه مونږ استقراء (تالاش) دَ مواردو دَ اجماع کړیدے نو هغه مونږ منصوص موندلے دی لیکن بعضے علماؤ دغه نص نه وی پیژندلے نوکله په اجماع استدلال کوی اوکله په قیاس باندے (او بیا یې وئیلی دی) چه څوک دَ استدلال دَ رائے او قیاس نه بالکل انکار کوی نو دا غلطه خبره ده ځکه چه ډیرو صحابه کرامو په قیاس باندے عمل کړے دے اوڅوک چه دا دعوی کوی چه په مسائلو کښ بعضے داسے شته چه بغیر دَ رائے او قیاس نه په هغې باندے هیڅ دلیل نشته نو دا قول یې غلط دے۔

قوله مَا تَوَلّٰی ، په دیکښ یو قول دادے چه سپارو مونږ ده لره په آخرت کښ عاقبت دَ هغه عمل ته چه په دنیاکښ اختیار کړے وو۔

دویم قول، چه پریږدو مونږ ده لره په هغه کارکښ چه ده اختیار کړے وی یعنی هغه بد اعمال ورته آسان کړو، دَ هغې اسباب ورته ډیر کړو په طریقه دَاستدراج سره۔

وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ ، صلی ادخال دے په اورکښ دَ سوځولو دَپاره۔

وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ، صیرورت دَ رجوع په معنیٰ سره دے۔

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ

يقيناً الله تعالى نه بخي چه شرک اوکړے شي د هغه سره

وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ

او بخي نور هغه ګناهونه چه کم دي د هغے نه چا لره

يَّشَآءُ ۚ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ

چه اوغواړي، او چا چه شرک اوکړو د الله تعالى سره

فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا ۢ بَعِيْدًا ﴿۱۱۶﴾

نو يقيناً ګمراه شو په ګمراهۍ لرے سره۔

مسئله ۱۱۶: ربط :- هر کله چه مخکښ مشاقة الرسول او اتباع غير سبيل المؤمنين ذکر اوشو نو اوس د هغے لوے مصداق بيانوي چه هغه شرک کول دي۔ او دا رنګ په دے آيت کښ تقسيم د شقاق دے دوه قسمونو ته اول قسم شقاق په عقيده کښ دے چه هغه شرک دے او دويم قسم د مغفرت اميد لته دے۔ او د آيت تفسير په دے سورة ۴۸ کښ ذکر شوے دے۔

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا ۢ بَعِيْدًا ، ضلال دوه قسمه دے اول هغه چه د ايمان سره نشي جمع کيدلے دويم قسم هغه دے چه د ايمان سره يوځاے کيدےشي نو اول قسم ته ضلال بعيد وئيلے شي چه د حق نه په ډيرو مرحلو سره لرے دے۔ او هر کله چه مشاقه کوونکے په خپل ځان بانده د هدايت خيال کوي نو الله تعالى د هغه په باره کښ حکم د ضلال ذکر کړو۔

مَّرِيْدًا ﴿۱۱۷﴾

سرکش لره -

۱۱۷:- دا بيان دَ مشرکانو دَ شرک دے او دا رنګ دَ ضلال بعيد دَ سبب ذکر دے - او په دے آيت کښ رد دے په شرک في الدعاء باندے او دعا هر عبادت ته شامل دے ځکه چه په حديث دَ ترمذی کښ وارد دی چه (اَلدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ) (دعا عبادت دے يعنی لوے فرد دَ عبادت دے)۔

اِنْ يَّدْعُوْنَ ، امام رازی وئيلی دی چه دَ دينه مراد عبادت دَے يعنی ذکر دَ خاص او مراد ترينه عام دے - يا دَ دُعا نه مراد استعانت او طلب کول دَ حاجت دی ځکه چه دا اصل معنیٰ دَ دعاء ده -

مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلَّآ اِنٰثًا ، دَ دے په تفسير کښ ډير وجوه دی - اوله وجه ، ابن ابی حاتم دَ عائشه رضی الله عنها نه روايت کړيدے چه دَ دينه مراد اوثان (بتان) دَ دوی دی - او دَ دے يو وجه دا ده چه دَ اکثرو نومونه مؤنث وو لکه لات او منات او عزی وغيره -

دويمه وجه دا ده چه دوی هغه بتان ښائسته کول پښان دَ ښائست دَ زنانو يعنی دَ سرو زرو او سپينو زرو کالی او دَ زنانو دَ جامو پښان به ئے په هغوی باندے اچولے - او په دیکښ دَ دے مشرکانو ډير توهين دے ځکه چه دوی په معاشره کښ زنانو له هيڅ حق نه ورکولو او سپکه ئے ګنړله ليکن بيا ئے هم دَ هغوی عبادت کوو -

دريمه وجه ، ابن جرير دَ ضحاک نه روايت کړيدی چه دَ دينه

مراد ملائک دی ځکه چه دَ دوی عقیده وه چه ملائک دَ الله تعالیٰ لونړه دی او زنانه دی او دَ هغوی عبادت ئے هم کولو او دَ هغوی صورتونه به یئے دَ زنانو پشان جوړول۔ ابن کثیر وئیلی دی چه دَ دے قول تائید په سورهٔ زحرف ۱۹ ، سورهٔ صافات ۱۳۷ او سورهٔ نجم کښ دے۔

څلورمه وجه، ابن ابی حاتم دَ ابی بن کعب رضی الله عنه نه نقل کړیدی چه دَ دینه مراد دَ دوی په اعتقاد کښ هغه پیرئ وه چه دَ هر صنم (بت) سره به وه او کله کله به دوی ته ښکاره کیدله او دَ دوی سره به یئے خبرے هم کولے لکه روستو جمله هم په دے یا ندے دلالت کوی۔

پنځمه وجه، ابن جریر وغیره دَ حسن او علی بن ابی طلحه، او ضحاک دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړے دے چه دَ اناث نه مراد مرده ګان دی۔ حسن بصری وئیلی دی چه اناث هر هغه څیز دے چه روح پکښ نه وی لکه لرګے یا ګټه، تمر او سپورمئ وی یا دَ قبرونو مرده ګان وی۔ هغوی ته اناث دَ دے وجے نه وئیلے شی چه هغوی کمزوری دی لکه چه زنانه دَ نارینه په نسبت کمزوری دی۔

شپږمه وجه، دا خاص دے په هغه کسانو پورے چه هغوی دَ زنانو (او دَ هغوی دَ شکلونو) عبادت کوی لکه عزیٰ مونث پیرئ وه، بعل مونث وه۔ یا اوس زمانه کښ هغه څوک چه بی بی زینب یا پیرے ابئ وغیره ته عبادت کوی او زامداد شه ورته وائی۔ او دا هم ډیر خلق دی۔

وَإِنْ يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَانًا مَّرِيدًا ، مرد په اصل کښ خویه او خالی ته وئیلے شی لکه امرد چه بے ږیرے هلک ته وئیلے شی، او مرید چه دَ خیر او دَ طاعت نه خالی ته وئیلے شی۔ او دغه مرد ته سرکش او نافرمان وئیلے شی چه مراد دَ هغے نه صرف ابلیس دے یا دَ هغه اولاد ته عام دے او دغسے انسی سرکشانو ته هم عام دے۔

سوال :- مشرکانو خو شیطان ته رامد ذشه نه دی وئیلی او نه ئې دَ شیطان عبادت کړیدے نو دَ دے جملې څه مطلب دے ؟

جواب :- (په دیرو وجوهو سره دے) اوله وجه ، دَ دُعاء نه مراد اطاعت دے ځکه چه اطاعت هم عبادت دے نو معنیٰ دا ده چه دوی په شرک کولو کښ اطاعت نه کوی مګر دَ شیطان سرکش اطاعت کوی چه جنی یا انسی شیطان دے۔

دویمه وجه، ابوحاتم دَ سفیان نه نقل کړیدی چه په هر صنم کښې شیطان جنی داخلیږی او مشرکانو ته ښکاره کیږی (یا ورسره خبرې کوی) او هغوی ته دَ شرک دعوت ورکوی لکه چه بعضے واقعاتو کښ بیانیږی چه فلانے قبر والا بزرګ فلانی ته ښکاره شو یا دَ قبر نه آواز راغے یا ئې دَ قبر نه لاس راویستلو نو هغه په اصل کښ شیطان جنی وی - نو معنیٰ دا چه عبادت دَ دغه بتانو (اناثو) په اصل کښ عبادت دَ شیطان دے۔

دریمه وجه، ما په معتمد ذرائعو سره اوریدلے دی چه بعضے ملکونو کښ (مصر، لیبیا وغیره) داسے خلق شته چه هغوی دَ ابلیس عبادت کوی او دَ هغه په نوم بانډے ذبح او نذرونه کوی۔ او دَ جنانو، پیریانو والا نه ‌ئې هم اوریدلے دی چه بعضے پیریان دَ شیطان عبادت کوی - او په سوره یٰسین ۶۰ کښ ښکاره ده - نو په دے جمله کښ خاص دغه قسم خلق مراد دی -

سوال :- مخکښ جمله کښ دَ دوی دَ دعا حصر په اناث کښ اوکړو او په روستو کښ حصر په شیطان کښ اوکړو او حال دا دے چه دَ دوه ځیز حصر په جدا جدا ځیزونو کښ نه صحیح کیږی ؟

جواب :- (په دوه وجوهو سره دے) اوله وجه دا چه مخکښ معلومه شوه چه په اول کښ دَ دعا نه عبادت مراد دے او په دویم کښ اطاعت مراد دے۔

دویمه وجه دا چه په اول کښ هغه خلق مراد دی چه دَ اناثو عبادت کوی او په دویم کښ هغه خلق مراد دی چه دَ ابلیس عبادت کوی -

لَّعَنَهُ اللّٰهُ ۘ وَقَالَ لَاَتَّخِذَنَّ

لعنت کړیدے په هغه باندے الله تعالیٰ، او ده وئیلی دی خامخا جوړوم

مِنْ عِبَادِكَ نَصِيْبًا مَّفْرُوْضًا ﴿۱۱۸﴾

دَ بندګانو ستانه برخه مقرر۔

۱۱۸ :- دا جمله دَ شیطانا ںا دَپاره صفت دے یا جمله مستانفه ده په طریقه دَ اخبار سره یا په طریقه دَ دعاء سره۔ او دویمه جمله (وقال) هم عطف ده په اوله جمله باندے۔

لَّعَنَهُ اللّٰهِ، دا تصریح ده چه شیطان ملعون دے او په هغه باندے په خصوص او تعین سره لعنت وئیل جائز دی بلکه پکار دی۔

وَقَالَ لَاَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيْبًا مَّفْرُوْضًا، ابن عطیه وئیلی دی چه دَ مفروض نه مراد جدا کړے شوے دے یا په معنیٰ دَ مقرر کړے شوے دے یا په معنیٰ دَ واجب او ضروری دے۔ او دا قول دَ ده بنا وو په هغه قول دَ ملائکو باندے چه هغوی وئیلی وو (اَتَجْعَلُ فِيْهَا مَنْ يُّفْسِدُ فِيْهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَآءَ) او دغه (فساد او سفك الدماء) دَ شیطان په وسوسو سره پیدا کیږی نو دَ دے نصیب مفروض نه مراد ګمراهان خلق دی او دَ اتخاذ طریقے په وړبسے آیت کښ ذکر دی او په سوره اسراء ۶۲ کښ)

سوال :- لفظ دَ نصیب دلالت کوی چه دَ ابلیس حصه به لږه وی او نقل او عقل دلالت کوی چه ګمراهان ډیر دی دَ اطاعت والو نه۔ نقل دا دے چه (قَالَ اَرَاَيْتَكَ هٰذَا الَّذِيْ كَرَّمْتَ عَلَيَّ لَئِنْ اَخَّرْتَنِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَاَحْتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهٗ اِلَّا قَلِيْلًا سورة اسراء ۶۲) او (قَالَ رَبِّ بِمَآ اَغْوَيْتَنِيْ لَاُزَيِّنَنَّ لَهُمْ فِي الْاَرْضِ وَلَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ سورة الحجر ۳۹) او عقلی دلیل دا دے چه په مسلمانانو کښ فساق او

وَلَاُضِلَّنَّهُمْ وَلَاُمَنِّيَنَّهُمْ

او خامخا گمراه به ئې کړم دوی لره او خامخا امیدونه به ورکوم دوی ته

وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ اٰذَانَ

او خامخا بنائیم به دوی ته نو پرې کوي به غوږونه

الْاَنْعَامِ وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ

دَ څارو او خامخا بنائیم به دوی ته نو بدلوي به

خَلْقَ اللّٰهِ ؕ وَمَنْ يَّتَّخِذِ الشَّيْطٰنَ

جوړښت دَ الله تعالٰی ، او چا چه اونیو شیطان

وَلِيًّا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَقَدْ خَسِرَ

دوست (تابعداري کړے شوے) سوا دَ الله تعالٰی نه نو یقیناً تاوان ئې اوکړ

خُسْرَانًا مُّبِيْنًا ﴿۱۱۹﴾

تاوان ښکاره -

فجار دا هم حزب الشیطان دی نو دوی چه کافرانو سره یوځائے شمارشي نو دا خو ډیر زیات دی ؟

جواب ۱ :- ابوحیان وئیلی دی چه لفظ دَ نصیب عام دے قلیل اوکثیر دواړو کښ استعمالیږی لکه (لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ وَلِلنِّسَآءِ نَصِيْبٌ النسآء) او حال دا چه حصه دَ ناریتو په میراث کښ ډیره ده دَ حصے دَ زنانو نه -

جواب ۲ :- په عباد الصالحین کښ ملائک او مؤمنانو جنات هم شامل دی نو دوی چه دَ انسانانو مؤمنانو سره یوځائے شمار شي نو دوی ډیر دی دَ شیطان دَ ډلے نه -

س۱۱۹ :- په دے آیت کښ طریقه دَ اتخاذ دَ نصیب ذکر ده په خلور قسمه سره :

اول طریقه وَلَاُضِلَّنَّهُمْ ، دَ دے نه مراد اړول دَ خلقو دی

دَ لارے دَ هدایت او دَ توحید نه په وسوسو او په دعوت سره۔ او په نسبت دَ اضلال کښ الله تعالیٰ او غیر الله ته دا تفصیل په تفسیر دَ سورهٔ بقره ۲۶ کښ تیر شوے دے۔

دویمه طریقه، وَلَاُمَنِّیَنَّهُمْ، خواهشات او آرزوګانے دَ خلقو په زړونو کښ غورځول۔ قرطبی وئیلی دی چه دا په یو نوع کښ حصر نه لری بلکه دَ هر چا دَ حال مناسب جدا جدا امنیه ورکول دی چا ته دَ اوږد عمر چا ته دَ حاجت نفسانیه پوره کیدل وغیره۔ او په دے کښ روستو کول دَ توبے، انکار دَ جنت او جهنم، بعث بعد الموت او حساب ته دا رنګ سره دَ کفر او شرک نه جنت ته داخلیدل دی او استحقاق دَ شفاعت دعوی کول دا ټول په دیکښ داخل دی۔

دریمه طریقه، وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَیُبَتِّکُنَّ اٰذَانَ الْاَنْعَامِ، دَ اٰمُرَنَّهُمْ، مامور په پټ دے یعنی بالبتك غوږونه پریکول او بالضلال رنوړے کمراهئ)۔ بتك دَ ابوعبید الله په نیز په معنیٰ دَ پریکولو دے او دَ زجاج په نیز په معنیٰ دَ سیرے کولو دے۔ او حرف دَ فاء دلالت کوی چه زما دَ امر نه روستو سمدستی به دا عمل کوی بغیر دَ فکر کولو نه دَ دے په قباحت باندے۔ او دا دَ مشرکانو دَ جاهلیت رسم وو چه یو اوښے به پنځه بچی زاوړل او آخری به مذکر وو نو دوی به هغه اوښه دَ خپلو اصنامو په نومونو باندے منسوب کړه او دَ هغے نه فائده اخستل به یئے په ځان باندے حرام کړل او بیا هغے ته به یئے بحیره وئیله (دا قول دَ واحدی او دَ ډیرو مفسرینو دے) او سورهٔ مائده ۱۰۳ کښ هم ذکر دی۔ او دَ امر نه مراد وسوسه اچول دی او ترغیبات ورکول دی لیکن په لفظ دَ امر کښ اشاره ده چه مشرکان اولے دیته خلق دَ شیطان په دغه خبره او وسوسه باندے داسے عمل کوی چه په امر او حکم باندے عمل کول واجب وی۔

زمونږ زمانه کښ بعضے خلق یو څوے دَ یو بابا په نوم باندے

نذر کړی او دَ علامت دَ پاره دَ هغه غوږ سورے کړی او کله کله پکښ دَ سپینو زرو یا سرو زرو والۍ هم واچوی، یا ورته څه بل څه خاص نخه واچوی دا هم لوے جهل او دَ مشرک عمل دے۔
څلورمه طریقه، وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَیُغَیِّرُنَّ خَلْقَ اللّٰهِ، دا تعمیم دے روستو دَ تخصیص نه ځکه چه په بتک کښ هم تغیر دَ خلق الله وو په خاص طریقے سره او په دے جمله کښ ئے په عموم سره ذکر کوی۔ دَ مخکښ په مناسبت سره زمخشری وئیلی دی چه دَ دینه مراد دا دے چه دَ حام (چه یو قسم څاروے دے) سترګه به ئے ویستله۔ لیکن دا په دے پورے خاص نه دے۔ په خلق الله کښ دَ مفسرینو دوه اقوال دی۔ اول قول دا چه مصدر په معنیٰ دَ مفعول دے یعنی مخلوق دَ الله تعالیٰ۔ او آلوسی وئیلی دی چه بدلون دَ خلق په صورت او صفت دواړو کښ منعه دے نو دَ حام نه سترګه ویستل په دیکښ داخل دی او مریان خصی کول، خالونه لګول، زنانه خپل صورت دَ نارینه پشان جوړوی او نارینه خپل صورت او لباس دَ زنانه پشان جوړوی، او لواطت او سحق (زنانه چه بله زنانه استعمالوی) او عبادت کول دَ نمر او سپوږمۍ او دَ اور یا دَ کټو، بتانو وغیره دا ټول په بدلون دَ پیدائش دَ الله تعالیٰ کښ راځي۔ او دَ حلال څارو و په خصی کولو کښ دَ علماؤ اختلاف دے۔ او قرطبی وئیلی دی چه وصل دَ ویښتو په دیکښ داخل دے چه یو زنانه خپلو ویښتو سره دَ زینت او بنائست یا دَ سیالۍ دَ پاره نور ویښته لګوی۔ او نسفی په مدارک او ابوحیان په خپل تفسیر کښ وئیلی دی چه په دیکښ په ږیره یا نورے خضاب (تور رنګ) لګول داخل دی۔ امام مسلم په خپله کتاب کښ باب تړلے دے۔ (بَابُ اِسْتِحْبَابِ خِضَابِ الشَّیْبِ بِالصُّفْرَةِ وَالْحُمْرَةِ وَتَحْرِیْمُهُ بِالسَّوَادِ) او حدیث ئے ذکر کړیدے (۲۴ باب کتاب اللباس والزینة) او ابو داؤد او ترمذی هم صحیح حدیث دَ منعے دَ تورولو ذکر کړیدے۔ په دے مسئله کښ نور تفصیل په فتح الباری

اول جلد صفحه ۲۹۳، او تهذیب السنن دَ ابن قیم او نیل الاوطار دَ شوکانی کښې اوګورئ - او دا رنګ په تغیر دَ خلق الله کښې کیره دَ قبضې نه کمول یا صفا خرئیل داخل دی ( دَ خصاء په باره کښې قول دَ ابن عباس، ابن عمر او انس رضی الله عنهم او سعید بن المسیب، عکرمه، ابوعیاض، قتاده، ابوصالح او ثوری رحمهم الله نه نقل دی - او دَ خالوتو په باره کښې قول دَ ابن مسعود رضی الله عنه او حسن بصری رحمه الله نه نقل دے - او دَ نمر سپوږمۍ معبود دَ جوړولو باره کښې قول دَ زجاج نه نقل دے - دا تیر شوی امور اکثر آلوسی او ابوحیان وغیره ذکر کړیدی.

دویم قول په باره دَ تغیر دَ خلق الله کښې دا دے چه مراد دین دَ الله تعالی بدلول دی - او دا قول په یو روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما، مجاهد، عکرمه، ابراهیم نخعی، حسن، قتاده او حکم نه نقل دے او دَ سورة روم ۳۰ پشان دے (ابن کثیر وغیره) نو دین ته خلق په دے اعتبار سره وئیلے شوے چه دَ انسان پیدائش فطرت دے، خلق په دے معنی سره نه دے چه دین مخلوق دے ځکه چه دین په اصل کښې قرآن دے او هغه مخلوق نه دے - صاحب اللباب وئیلی دی چه بدلول دین (فطرت) په دوه طریقو سره دے -

اول دا چه الله تعالی انسانان په توحید او اسلام باندے پیدا کړی دی نو څوک چه کفر او شرک او نورہ بے دینی کوی نو هغه بدلول اوکړل دَ خلق الله -

دویم دا چه دَ دینه مراد بدلول دَ حرام دی په حلال او دَ حلال په حرام باندے - او زهٔ وایم چه دواړه معنے یو بل ته نیژدے دی ځکه چه خصی کول، خالو ته کیخودل، لواطه، عبادت دَ شمس و قمر، قطع دَ کیرے، او نور خضاب لګول وغیره دا هم تغیر دَ دین دَ الله تعالی کښې داخل دے ځکه دَ دینه ځان ساتل دین دے او دغه چه څوک کوی نو هغه

يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيهِمْ ۖ وَمَا يَعِدُهُمُ

وعدې کوي شيطان دوی سره او اميدونه اچوي دوی ته، او وعده نه کوي د دوی سره

الشَّيْطٰنُ اِلَّا غُرُوْرًا ﴿۱۲۰﴾

شيطان - مگر دهوکې والا -

دين بدل کړو او د بې دينۍ مرتکب شو - آلوسي او ابن عاشور وئيلي دي چه په تغير خلق الله کښې ختنه کول او کيره د قبضې نه زيات قنچې کول او د تور رنگ نه سوا بل رنگ لگول لکه نکريزه اوکتم لگول او د زنانه غوږونه سورې کول د کالو اچولو د پاره او د بدن نه زيات ويښته خرئيل، نوکونه پرېکول وغيره داخل نه دي ځکه چه دا په شرع کښې ثابت دي -

وَمَنْ يَّتَّخِذِ الشَّيْطٰنَ وَلِيًّا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ، په دې جمله کښې تحذير دې د الله تعالىٰ د طرف نه بندگانو ته د اتباع د شيطان نه روستو د ذکر د عزم د هغې نه په گمراه کولو د خلقو سره، مقاتل وئيلي دي چه د ولي نه مراد رب دې يعنې اطاعت مطلقه د هغه کوي او ابو سلمان وئيلي دي چه وليًا په معنىٰ د دوست دې -

فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُّبِيْنًا، او وجه د دې دا ده چه په اطاعت د الله تعالىٰ کښې منافع د دنيا او آخرت هميشه دي - او په اطاعت د شيطان کښې منافع لږ دي او ضررونه او غمونه بې شماره او د آخرت عذاب دې نو په سبب د دويم سره اول پرېښودل لوئي نقصان دې -

ن۱۲۰ :- دا د خسر د پاره علت دې د شيطان په وعدو کښې غرور او دهوکه ده نو دا سبب د خسران دې -

يَعِدُهُمْ، دا بيان د اضلال دې چه مخکښې آيت کښې لا ضلنهم کښې فرمائيلي وو يعنې اضلال کوي په دروغو وعدو سره - او دويم مفعول د دې پټ دې يعنې د دوی سره باطلې وعدې کوي، او د مدد او سلامتيا وعدې کوي،

أُولَٰٓئِكَ مَأْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ وَلَا

دغه کسان ځاے د دوی جهنم دے او نه

يَجِدُوْنَ عَنْهَا مَحِيْصًا ﴿۱۲۱﴾

به موندی دوی د هغے نه ځاے د تیختې۔

یا یره ورکوی دوی لره د فقر او غریبۍ نه په سبب د انفاق فی سبیل الله۔ او د شیطان د وعدو مجمل او مفصل ذکر په سورة ابراهیم ۲۲، سورة بقره ۲۶۸ او سورة اسراء ۶۴ کښ دے۔
وَيُمَنِّيْهِمْ، دا بیان دے د ولامنینهم د پاره یعنی د ده قول واقع شوے دے په تمنا اچولو سره د خلقو په زړونو کښ د امنینهم او د یمنیهم په مینځ کښ فرق دا دے چه اول خو عزم د شیطان وو او دویم وقوع د هغے ده، دا رنګ اول امانی په عقائدو کښ مراد دی او په دیکښ امانی د اعمالو مراد دی۔ او دا وعدے او تمنیه په وسوسو سره او په واسطه د اولیاء الشیطان سره ده۔
وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطٰنُ اِلَّا غُرُوْرًا، هر کله چه شیطان پخپلو کارونو کولو قسمونه کړے وو) لام او نون ئې د تاکید د پاره لګولے وو نو الله تعالٰی د هغے د رد د پاره تاکید په طریقه د حصر سره ذکر کړو۔ د غرورا معنٰی دا ده چه په ظاهر کښ نفع ورکول وی او په حقیقت کښ ضرر ورکول وی۔ دا سے په سورة اسراء ۶۴ سورة فاطر ۵ کښ دی۔ او غرورًا مفعول له دے، یا صفت دے د په تقدیر د ذا غرور سره۔
۱۲۱: په دے آیت کښ شیطان او د هغه تابعدارو لره تخویف دے۔
أُولَٰٓئِكَ مَأْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ وَلَا يَجِدُوْنَ عَنْهَا مَحِيْصًا، مَحِيْصًا، دا ظرف مکان یا مصدر میمی دے یا د حاص یحیص نه دے په اصل کښ تختیدل په نفرت سره او هیڅ کیدلو ته وئیلے شی۔ او واحدی وئیلی دی چه د دے جملے مطلب دا دے چه

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

اوهغه کسان چه ایمان یې راوړیدې او عمل یې کړیدې په طریقه د نبي (صلی الله علیه وسلم)

سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ

سره زر دې داخل به یې کړو جنتونو ته چه بهیږي

مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ

لاندې د هغې نه ویالې همیشه به وي

فِيْهَآ اَبَدًا ؕ وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ؕ

په هغې کښې همیشه ، وعده د الله تعالیٰ یقیني ده ،

وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ قِيْلًا ﴿۱۲۲﴾

او څوک دې ډیر رښتینې د الله تعالیٰ نه په وینا کښې .

خامخا او ورته داخلیږي یا مطلب دا دې چه همیشه به په اور کښې دي .

۱۲۲ :- د تخویف اخروي نه روستو په دې آیت کښې اوس بشارت اخرویه ذکر کوي .

وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ، دا دواړه مصدرونه دي د تاکید د نفس فعل د پاره چه پټ دې یعني وَعَدَ وَعْدًا وحق ذالك حقا . او په دې وعدې سره مراد د سندخلهم وعده ده او د حقًّا نه مراد د هغې ذکر دې ډیر کرته په قرآن کریم کښې .

وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ قِيْلًا ، دا دریم تاکید دې ، قِيْلًا تميز دې ، قول قیلا او قال مصدرونه دي د جمهورو علماؤ په نیز باندې ، لکه چه په سوره زخرف ۸۸ کښې دي . او ابن السکیت وئیلي دي چه قیل او قال اسمونه دي او قول مصدر دې . او د دې تاکید اتو د ذکر کولو دلته فائده دا ده چه مخکښې د شیطان قسمونه ذکر وو په دروغو وعدو او په باطلو امانی کښې نو د هغې په مقابله کښې الله تعالیٰ د خپلې وعدې په جنت

لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ وَلَآ اَمَانِيِّ

نه دے دین او جزا موقوف په خواهشاتو ستاسو او نه په خواهشاتو

اَهْلِ الْكِتٰبِ ط مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا

د کتاب والو، هرچا چه عمل اوکړ بد عمل (شرک)

يُّجْزَ بِهٖ لا وَلَا يَجِدْ لَهٗ مِنْ

بدله به ورکړے شی د هغے او نه به مومی څان لره سوا

دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۲۳﴾

د الله تعالیٰ نه دوست ہیڅ کوونکے او نه امدادی۔

سره ډیر تاکیدات ذکر کړل، دا سے آیت د دے سورت ۱۲۲ کښ
هم دے۔ فرق دا دے چه هلته ئے حدیثاً ذکر کړے وو او
دلته ئے قیلاً ذکر کړو، وجه د فرق دا ده چه هلته حدیث نه
مراد کلمه د لا اله الا هو ده او دغه کلمه د ټولو انبیاء کرامو
نه نقل ده او نقل شوے کلام چه همیشه وئیلے کیږی هغے ته
حدیث وئیلے شی۔ او دلته د قول نه مراد وعده ده په ستن
خلهم سره۔ او په عرف کښ د قول اطلاق په وعدے باندے
کیدیشی (والله اعلم)

۱۲۳:- ربط:- هرکله چه مخکښ ذکر شو چه شیطان د امانی
وسوسے اچوی انسانانو ته نو په دے آیت کښ د دغه امانی
حکم ذکر کوی چه په شرع کښ د هغے هیڅ اعتبار نشته۔

لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ، د مجاهد او ابن زید نه روایت دے چه دا
خطاب مشرکانو ته دے چه مخکښ د هغوی شرک ذکر شو ان
یدعون سره۔ او د بعضو په نیز دا خطاب دے مؤمنانو ته
بلکه غوره دا ده چه خطاب عام دے غیر کتابیانو ته هم، د لَيْسَ
په اسم (فاعل) کښ درے اقوال دی۔
اول قول، دا هغه وعده ته راجع دے چه په وعدالله کښ دے

(زمخشري) يعنې دغه وعده ډجنت وثواب په اماني سره نه حاصليږي.
دويم قول، دا راجع دے ايمان ته چه په لفظ د امنوا کښ ذکر دے يعنې ايمان په تمناګانو سره نه حاصليږي او دا قول د حسن بصري دے،
دريم قول، دا راجع دے د مؤمنانو او کتابيانو هغه خبرو اترو ته چه مؤمنانو وئيل چه زمونږ کتاب ستاسو په کتاب باندے حاکم دے او زمونږ نبي خاتم الانبياء دے او اهل کتابو (يهوديانو) وئيل چه نحن ابناء الله واحباءه او مونږ جنتيان يو - نو اوئيلے شو چه ستاسو دغه دعوى په صرف اماني (ارزوګانو) سره نه حاصليږي - آلوسي وئيلى دي چه اماني جمع د امنيه ده هغه صورت ډيوخيز (تصور) ته وئيلے شي چه په نفس کښ حاصل شي يعنې نفس د هغے تقدير او تصور کړے وي او حقيقت يے نه وي او اکثر اطلاق يے په دروغو باندے کيږي.
وَلَآ اَمَانِيِّ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ، اشاره ده چه د هغوى دعوى د جنت خاص کول د خيل قوم ډپاره په (لن يدخل الجنه الا من كان هودًا ونصارى) او دا قول د هغوى چه نحن ابناء الله واحباءه، او دا قول چه سيغفرلنا، دا ټول دروغ تصورات دي.
مَنۡ يَّعۡمَلۡ سُوۡٓءًا يُّجۡزَ بِهٖ، دا جمله مستانفه ده چه تاکيد کوي د حکم د مخکښ جملے - دا جمله د اکثرو مفسرينو په تيز عام ده، مؤمنانو ته هم شامل ده په شرط د توبه نه کولو سره.
سوال:- دا جمله دلالت کوي چه هيڅ سوء عمل نه معاف کيږي بلکه په هغے باندے به خامخا سزا ورکيدے شي، او حال دا دے چه په ډيرو آياتونو کښ ذکر د عفو او مغفرت شته بغير د توبے نه لکه په دے سورت کښ دوه ځله اوفرمائيل (وَيَغۡفِرُ مَا دُوۡنَ ذٰلِكَ لِمَنۡ يَّشَآءُ)؟
جواب:- د مسند احمد او ابن حبان په روايت د حديث د

وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ
او چا چه عمل اوکړو د نیکو اعمالونه
مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ
نارینه وی او که زنانه وی، او دے وی
مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ
مؤمن (موحد) نو دغه کسان به داخلیږی
الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ نَقِيْرًا ﴿۱۲۴﴾
جنت ته او ظلم به نشی کیدے په دوی باندے په قدر د داغ د هډوکی د کجورے۔

دَ ابوبکر رضی الله عنه کښ ثابت ده چه دَ جزاء نه مراد دَ دُنیا مرضونه او مصیبتونه دی دغسے په حدیث دَ عائشه رضی الله عنها کښ دی چه ابن جریر ذکر کړے دے او دغسے په حدیث دَ ابوهریره رضی الله عنه کښ راغلی دی چه امام احمد او امام مسلم ذکر کړیدی۔ او دَ بعضے مفسرینو په نیز چه ابن جریج دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے، او دا رنګ سعید بن جبیر، چه دَ سوء نه مراد شرک او کفر دے چه په هغے باندے ( په شرط دَ توبه نه کولو) خامخا سزا ملاویږی۔ لیکن اول قول غوره دے۔

وَلَا يَجِدْ لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا، ولی هغه دے چه دفع او حفاظت کوی سره دَ مدد کولو نه او نصیر هغه دے چه صرف مدد کوی اګرچه حفاظت نشی کولے۔

۱۲۴:- دا عطف دے په من یعمل سوءً باندے هغه تخویف وؤ۔ او دا بشارت دے۔ دَ بشارت کامله دَ پاره په عمل کښ دوه شرطونه ذکر کوی۔ اول شرط ایمان دے او دویم صالحیت (اتباع دَ سنت) په عمل کښ۔

وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ، دا مِنْ دَ تبعیض دَ پاره دے

وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ

او څوک ښائسته دين والا دے د هغه چا نه چه تابع يې کړو

وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ

مخ خپل خاص الله تعالیٰ ته او دے وو ښائسته عمل والا او تابعدار وی

مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ؕ وَاتَّخَذَ

د دين د ابراهيم عليه السلام چه پوخ مؤحد وؤ، او نيولے دے

اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا ﴿۱۲۵﴾

الله تعالیٰ ابراهيم عليه السلام لره دوست۔

ځکه چه يو انسان ټول اعمال صالحه نشي کولے يا د هغه د وس او طاقت نه بهر وی لکه زکوٰة او حج او جهاد د پاره شرطونه دی۔ يا د هغه نه ساقط وی د عذر د وجے نه لکه مونځ په بعضے حالاتو کښ په نيز د بعضے علماؤ۔ او ابن جرير د بعضے علماؤ نه نقل کړيدی چه دا مِنْ زائده دے ليکن دا قول ضعيف دے (ابو حيان)۔

او مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى، کښ مِنْ د پاره د بيان دے او داسے په سورة آل عمران ۱۹۵ کښ شته دے۔ او ذکر د لفظ د اُنثیٰ رد دے په جاهليت والو باندے چه زنانه يې وژلے او د ميراث نه يې محروم کړے وے نو اسلام د هغوی حقوق ثابت کړيدی۔ په دے باب کښ نارينه او زنانه يو شان دی۔

وَهُوَ مُؤْمِنٌ ، دا جمله حال دے او حال قيد وی په کلام کښ نو اشاره ده چه عمل صالح په فائده ورکولو کښ موقوف دے په ايمان باندے او دا اجماعی مسئله ده۔

فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ نَقِيْرًا ، وَلَا يُظْلَمُوْنَ کښ ضمير ايمان والو ته راجع دے۔ يا من يعمل سوءً او من يعمل من الصالحات دواړو ته راجع دے

ځکه چه الله تعالیٰ په هیڅا باندے ظلم نه کوی لکه په سوره آلعمران ۱۰۸ اوسوره حٰمٓ سجده ۴۶ کښ دی - او د تقدیر تفسیر مخکښ ذکر شوے دے۔

۱۲۵ :- هر کله چه په مخکښ آیت کښ ئے د نجات د حصول د پاره ایمان او عمل صالح شرط کړو، نو اوس د هغے شرح او فضیلت ذکر کوی او د فضیلت دوه وجے ذکر کوی۔ اوله وجه دا دین مشتمل دے په انقیاد او عبودیت باندے، دویمه وجه چه په دینکښ متابعت د ابراهیم خلیل الله دے او د فضیلت نه ئے تعبیر په احسن سره کړے دے، صاحب اللباب وئیلی دی چه وجے د احسنیت د دین دوه دی یو دا چه دین اسلام په اعتقاد او عمل صالح باندے بنا دے، په لفظ د اسلم کښ اعتقاد ته اشاره ده ځکه چه دلته اسلام په معنیٰ د انقیاد او عاجزئ کولو سره دے او د انقیاد په اصل کښ په ټول بدن سره دے لیکن ذکر د وجه د دے وجے نه شوے دے چه په اعضاؤ کښ احسن (ښائسته) اندام ځ دے۔ دا ذکر د جز او مراد ترینه کل دے، نو هر کله چه انسان په زړه سره خپل رب پیژنی او په ژبے سره د هغه د ربوبیت او عبودیت اقرار اوکړی۔ نو دا سے شخص خپل مخ منقاد کړو الله تعالیٰ ته، او په لفظ د محسن کښ اشاره ده اعمالو ته ځکه چه احسان په معنیٰ د فعل د حسناتو او ترک د سیئاتو دے نو دا شامل دے ټولو اعمالو صالحه ته نو په دے دواړه شرطونو (اسلم، محسن) کښ رد دے په ټولو فرقو د ګمراهانو باندے چه د هغوی طریقے فاسد دی ځکه هغوی ټول شرک فی الاستعانت کوی، مشرکان استعانت په خپلو معبودانو سره کوی، او دهریان (طبیعون) استعانت په افلاکو، ستورو او طبائعو سره کوی او یهودیانو استعانت په دفع د عذاب کښ کوی په دے خبره باندے چه موند اولاد د انبیاؤ یو، او نصاری په تثلیث سره استعانت کوی، او معتزله خپل طاعات موجب د ثواب او ګناهونه موجب د عذاب ګنړی - نو دوی الله تعالیٰ ته هیڅ توجه نه کوی، نو

موصوف په اسلم او محسن سره صرف اهل سنت والجماعت دی۔
دویمه وجه دَ احسنیت اتباع دَ ملت ابراهیم علیه السلام ده
په دے قول سره

وَاتَّبَعَ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا، ځکه چه دین دَ محمد صلی الله
علیه وسلم شرع دَ ابراهیم علیه السلام ته ډیر نزدے دے په
باره دَ قبلے کښ په مناسک دَ حج، ختنه کولو او هغه کلماتو (افعالو)
کښ چه (وَإِذِ ابْتَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ) کښ ذکر دی او دین
ابراهیم مقبول وو په نیز دَ یهودو، نصاری او دَ مشرکینو عرب
ځکه چه دوی ټول فخر کوی په نسبت خپل سره ابراهیم علیه السلام
ته، او دَ دے وجے نه چه دین ابراهیم دَ ټولو په نیز (دعوی په حیثیت
سره) مقبول دے نو الله تعالیٰ دَ آخری نبی دین دَ هغه دین سره
مشابه کړیدے او دے مشابهت ته اتباع وئیلے شی، نو دین دَ
آخری نبی مستقل دے لیکن مشابه دے دَ دین ابراهیم
سره او په (أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ) کښ دریم قول
دَ مفسرینو دَ مخکښ په عکس سره دے یعنی په اول کښ اشاره
ده اعمال صالحه ته او په دویم (محسن) کښ اشاره ده عقیدے
دَ توحید ته، او تفسیر دَ حنیف په سورة بقره کښ تیر شویدے
او دلته ابن کثیر وئیلی دی چه دَ حنیف معنیٰ مائل دَ شرک
نه قصدًا یعنی پریخودونکی دَ شرک په پوهے سره او توجه
کوونکی الله تعالیٰ ته چه نه منع کوی هغه لره هیڅ منع
کوونکی۔

وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا، زمخشری وئیلی دی چه دا
جمله معترضه ده او فائده دَ دے تاکید دَ وجوب دَ اتباع دَ
ملت ابراهیمی ده، ځکه څوک چه مرتبے دَ خلیل ته رسیدلی
دی نو دَ هغه تابعداری کول لائق دی، او ابوحیان وئیلی دی
چه دا جمله استفهامیه (من احسن) باندے چه هغه په
معنیٰ دَ خبر کښ ده عطف ده، او دا جمله معترضه عرفیه
نه ده، په اشتقاق دَ خلیل کښ اقوال دی، دَ جمهورو قول

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا

او خاص د الله تعالیٰ اختیار کښ دی هغه څه چه آسمانونو کښ دی او هغه څه چه

فِي الْأَرْضِ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ

په زمکه کښ دی او دے الله تعالیٰ په هر

شَيْءٍ مُّحِيطًا ﴿١٢٦﴾

څیز باندے راګیروونکے۔

۱۸ ع ۱۱ ۱۵

دا دے چه دا دخُلة نه اخستلے شوی دے، هغه دوستی چه په هغے کښ هیڅ خلل نه وی، دویم قول چه دا ماخوذ د خُلة نه دے په معنیٰ د فقر او حاجت، یعنی ابراهیم علیه السلام خالص دوست د الله تعالیٰ دے، یا دا چه ابراهیم علیه السلام خپل هیڅ حاجت سوا د الله تعالیٰ نه بل هیچا ته نه دے ښکاره کړے ثعلب وئیلی دی چه خلیل هغه څوک دے چه دوستانه د هغه زړه ته دننه داخله شوے وی۔ زجاج وئیلی دی چه خلیل هغه دے چه د هغه په دوستانه کښ هیڅ خلل (نقصان) نه وی۔ قرطبی وئیلی دی خلیل په معنیٰ د فاعل دے یعنی محب (محبت کوونکے) یا په معنیٰ د مفعول دے یعنی محبوب او په ابراهیم علیه السلام کښ دواړه صفتونه موجود وو۔ پدے معنیٰ چه محبت د الله تعالیٰ د ده په ټولو قوتونو کښ داخل شوے وو، نو د هغه لیدل، سکون، اوریدل، هر حرکت صرف د الله تعالیٰ د پاره او ئیمدبد د الله تعالیٰ سره وو، او عامو مفسرینو د هغه د جود او سخاوت او میلمستیا قصے ذکر کړی دی چه هغه سبب د خلیل کیدو او ګرځیدو او مقام د حبیب د خلیل نه اوچت دے د دے وجے نه زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم په صفت کښ حبیب الله په صحیح حدیث کښ وارد دے۔

۱۲۶:- په دے آیت کښ توحید فی التصرف او فی العلم ذکر کوی۔

ربط:- ربط د ماقبل سره (صاحب اللباب) په څلورو وجوهو سره ذکر کړی دے اوله وجه چه دا جواب د یو وهم دے۔ که څوک وهم

اوکړي چه الله تعالیٰ ابراهیم علیه السلام خلیل جوړ کړیدے دَ وجے دَ احتیاج خپل نه حاصل جواب دا دے چه نه دَ هر څه ملک دَ الله تعالیٰ دے دَ هغه هیڅ ته حاجت نشته هغه یې خلیل کرځولے دے دَ وجے دَ کرم خپل نه - دویمه وجه الله تعالیٰ دَ ابتداء دَ سورت نه تر دے آیت پورے ډیر اوامر نواهي او وعد وعید ذکر کړل نو په دے آیت کښ ذکر کوي چه الله تعالیٰ خالق او مالک او اله دَ ټول کائنات دے نو دَ هغه دَ ټولو احکامو دَ پاره انقیاد په بندګانو ضروري دے - دریمه وجه هر کله چه مخکښ وعد وعید (بشارت او تخویف) ذکر شول نو اوس ذکر کوي چه دَ دے دَ پوره کولو دَ پاره قدرت تامه کامله او علم دَ ټولو جزئیاتو کلیات ضروري دے نو په دے آیت دَ هغه کمال قدرت په اوله جمله کښ او کمال علم په دویمه جمله کښ ذکر شو -

څلورمه وجه هر کله چه خُلَّة دَ ابراهیم علیه السلام ذکر کړو نو اوس اشاره کوي چه هغه سره دَ صفت دَ خُلة نه بنده او مملوک دَ الله تعالیٰ دے ځکه چه دَ الله تعالیٰ په ملک کښ هر څه داخل دي نو ابراهیم علیه السلام پکښ داخل دے -

پنځمه وجه (رازي وایم) چه هر کله اسلم وجهه یې ذکر کړو نو دَ انقیاد او احسان اول بنیاد ذکر کوي چه هغه عقیده دَ توحید ده چه بغیر دَ دے عقیدے نه دین دَ هیڅ نه قبلیږي -

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ، لفظ دَ مَا کښ ذوي العقول او غیر ذوي العقول او ذوي الارواح او غیر ذوي الارواح ټول حقیقتًا (په نیز دَ سیبویه) داخل دي نو دا اشاره ده قدرت او تصرف کامله دَ الله تعالیٰ ته -

وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيطًا ، ابن کثیر وثیلي دي چه مراد دَ دے نه احاطه علمي دَ الله تعالیٰ ده یعني دَ هغه دَ علم نه هیڅ ذره بهر نه ده -

وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِى النِّسَآءِ ۭ قُلِ اللّٰهُ

او تپوس کوی دوی ستا نه په باره د زنانو کښې، ته او وایه الله تعالیٰ

يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ ۙ وَمَا يُتْلٰى

پوځ حکم کوی تاسو ته په باره د دوی کښې او هغه حکم (هم دے) چه بیانیږی

عَلَيْكُمْ فِى الْكِتٰبِ فِىْ يَتٰمَى

په تاسو باندے په دے کتاب کښې (د دے سورت کښې) په باره د یتیمو

النِّسَآءِ الّٰتِىْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ

زنانو کښې هغه زنانه چه نه ورکوئ تاسو هغوی ته

مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ

هغه (مهر) چه مقرر کړے شوے دے هغوی لره او غواړئ تاسو

اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ

چه او کړئ د دوی سره نکاح او په باره د کمزورو

مِنَ الْوِلْدَانِ ۙ وَاَنْ تَقُوْمُوْا

ورو کښې او دا (حکم) چه کلک شئ

لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ ۭ وَمَا تَفْعَلُوْا

د پاره د یتیمانو په انصاف سره او هغه چه کوئ تاسو

مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِهٖ

څه نیک کار نو یقینًا الله تعالیٰ دے په هغے باندے

عَلِيْمًا ﴿۱۲۷﴾

پوهه ـ

۱۲۷ :- دا نهم حکم دے د احکامو سیاسیه نه چه تعلق لری

دَ رعیت دَ کمزورخلقو سره چه زنانه او یتیمان او داره. یعنی دی یعنی بادشاه له پکاردی چه دَ دوی نه دَ مظالمو دفع کولو دپاره کوشش اوکړی۔
ربط له :- هرکله چه مخکښ آیت کښ دَ دین اسلام احسنیت ذکر شو نواوس دَ هغې یوه وجه ذکر کوی چه هغه خلاف دَ مظالمو دَجاهلیت دے په دین اسلام کښ۔
ربط ۲ه :- اوهرکله چه تصرف کلی او علم کلی دَ الله تعالی ذکر کړے شو نو الله تعالی دَخپل الوهیت دَ اظهار دَپاره خاص حکم ذکر کوی دَپاره دَ احیاء (ژوندی کولو) دَ حقوق دَ ضعیفانو او اشاره کوی چه په دے حکم باندے عمل کول لازم دی ځکه چه دا حکم دَ لوے ذات دے۔
وَيَسْتَفْتُونَكَ ، استفتاء طلب دَ فتوی ته وئیلے شی دَ فتیٰ نه اخستلے شوے دے ځوان ته وئیلے شی نو دارنګ په فتوی سره اشکال دَ مستفتی زائله شی نو خبره قوی شی ۔ او په شریعت کښ فتوی هغه جواب دے چه په دلیل دَ کتاب الله او سنت سره ثابت او پوخ شی صرف په نقل دَ اقوالو دَ فقهاؤ سره جواب ورکول فتوی نه ده دَ دے وجے نه فقهاء احناف وغیره وئیلی دی چه مفتی مجتهدین وی صرف نقل کوونکے دَ اقوالو دَعلماؤ ته مفتی نشی وئیلے دا ابن همام او ابن عابدین په کتاب القضاء کښ لیکلی دی۔
فِي النِّسَاءِ ، په باره دَ میراث ورکولو کښ زنانه ته چه دا مخالف دے دَ عادت دَ جاهلیت نه ۔
قُلِ اللهُ يُفْتِيكُمْ فِيهِنَّ ، بعض مفسرینو وئیلی دی چه مراد دَ دینه هغه احکام دی چه دَ دے سورت په ابتداء کښ ذکر دی لیکن دا قول ضعیف دے ځکه چه روستو په ما یتلی علیکم کښ دغه اشاره مراد ده نو تکرار لازمیږی بلکه مراد دَ دینه (مهائمی وئیلی دی) په کتابونو او صحیفو منزلو کښ ذکر کول دی۔

ها په دواړه قولونو کښې يفتيكم فعل مضارع په معنی د فعل ماضی ده او لفظ الله ځکه د تاکید دپاره مخکښې راوړېدے.
وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ فِيْ يَتٰمَى النِّسَآءِ، دا عطف دے په لفظ الله باندے نو يفتيكم خبر پټ دے يا عطف دے په ضمير د فاعل چه پټ دے په يفتيكم کښې چه هغه الله تعالى ته راجع دے (او په دے کښې صاحب اللباب نور وجوه د اعراب ذکر کړيدى).
دلته الْكِتٰبِ نه مراد قرآن دے او د دے سورت ابتداء په باره د يتامى زنانو کښې چه ۳ دے - په هغه آيت کښې د دوی سره د قسط (انصاف) کولو طريقه ذکر شويده.
الّٰتِيْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ، په دے کښې اشاره ده هغه ظلم کولو ته چه الا تقسطوا ۳ کښې هغے ته اشاره ده او مراد د ما کتب نه ميراث او مهر او نفقه ورکول دی.
وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ، په دیکښې دوه اقوال دی اول د حديث عائشه رضى الله عنها (چه بخاری او مسلم ذکر کړيدے) نه معلوميږی چه لفظ د عَنْ پټ دے نو رغبت په معنیٰ د اعراض سره دے يعنی تاسو د هغوی د نکاح نه اعراض کوئ د وجے د کم والی د مال د هغے يا د وجے د عدم حسن نه - دويم قول د سعيد بن جبير او مجاهد دے چه دلته فِيْ پټ دے او رغبت په معنیٰ د مينه کولو دے يعنی تاسو مينه کوئ په نکاح د هغوی کښې د وجے د ډير مال او د حسن د هغے نه.
وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْوِلْدَانِ، دا عطف دے په يتامى النساء باندے يعنی هغه حکم چه ابتداء د سورت کښې په باره د ميراث د کمزورو بچو کښې ذکر شويدے په ۱۱ کښې يا عطف دے په ضمير د فِيْهِنَّ باندے او په باره د وړو بچو کښې د حکم مطلب دا دے چه دوی ته حصه په ميراث کښې ورکوئ او د جاهليت په طريقے سره دوی د ميراث نه مه محروم کوئ.
وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ، د دے په عطف کښې هم دغه دوه اقوال دی. دريمه توجيه دا ده چه دلته فعل د يامرکم

وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا
او که یو زنانه یریږی دَ خپل خاوند
نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ
دَ بے خوښئ (طبعًا) نه یا دَ مخ ګرځولو (رقصدا) نه نو ګناه نشته
عَلَيْهِمَا أَنْ يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا
په دغه دواړو باندے چه روغه اوکړی په مینځ خپل کښی
صُلْحًا ۚ وَالصُّلْحُ خَيْرٌ ۗ وَأُحْضِرَتِ
روغه کول ، او روغه کول غوره کار دے ، او کیخودلے شوی دے
الْأَنْفُسُ الشُّحَّ ۚ وَإِنْ تُحْسِنُوا
په زړونو کښی حرص ، او که ښه ژوند کوئ دَ دوی سره
وَتَتَّقُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا
او ځان بچ کوئ (دَ اختلافات نه) نو یقینًا الله تعالیٰ دے ستاسو
تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿١٢٨﴾
په عملونو باندے خبردار - -

پټ دے قیام په معنیٰ دَ اهتمام اوکوشش کولو دے او یتامیٰ عام دے هلکانو اوجینکو دواړو ته او دَ قسط نه مراد هغوی ته پوره میراث ورکول او دا رنګ مهر او نفقه ورکول دی په وخت دَ نکاح کښی۔

وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِهِ عَلِيمًا ، دَ خیر په ذکر کښی اشارہ دہ رغبت ورکولو دَ خیر ته اګرچه الله تعالیٰ دَ دوی په شر باندے هم عالم دے او دَ خیر نه مراد په دغه احکامو باندے عمل کول او نور احسانات کول دَ دغه ضعفاؤ سره یا عام کارونه دَ خیر مراد دی۔

س ۱۲۸ :- په دے آیت کښ ذکر دَ یو طریقے دَ دفع دَ ظلم دَ زوج دے په خپله ښځه باندے۔

وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ ، په معنٰی دَ علم یا دَ گمان - یا خپله معنٰی ده یعنی هر کله چه په خاوند کښ علامات دَ نشوز قولی یا فعلی اووینی نو ښځه دَ هغه نشوز نه ویره اوکړی۔

مِنْ بَعْلِهَا ، خاوند او سردار ته ویلے شی او دا مختص صفت دے په سړی پورے۔

نُشُوْزًا ، نشوز په اصل کښ پورته والی ته ویلے شی یعنی خاوند ځان پورته اوګڼړی دَ ادائیګۍ دَ حقوق دَ زوجے نه نزدیکت او محبت ورسره نه کوی۔

اَوْاِعْرَاضًا ، یعنی مخ ترینه اړوی خبرے او کیناستل ورسره نه کوی - نشوز خاص دے او اعراض عام دے - یا نشوز اعلٰی دے او اعراض ئے ادنٰی دے۔

فَلَاجُنَاحَ عَلَيْهِمَآ اَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا ، مراد دَ صلح نه پرېخودل دَ بعض حق خپل دے دَ ښځے حق مهر او تفقه او قسم (نمبر دَ طرف دَ خاوند ته) او دَ خاوند حق اطاعت دَ ښځے دے خاوند لره په غیر دَ معصیت نه ، او بعض خدمتونه کول وغیره - نو هر یو طرف بعضے بعضے پرېږدی - هر کله چه دَ لاجناح نه معلومیږی چه صلح کول رخصت دے ګناه پکښ لشته دے نو اوفرمائیل وَالصُّلْحُ خَيْرٌ ، یعنی په صلح کښ ډیرے فائدے دی او معنی دا ده چه صلح کول دَ ښځے او خاوند غوره ده دَ جدائی نه - یا دَ نشوز او اعراض نه - او دا حکم ښځه او خاوند پورے خاص نه دے بلکه الف لام په الصلح کښ دَ پاره دَ استغراق دی۔

وَاُحْضِرَتِ الْاَنْفُسُ الشُّحَّ ، الانفس ، په اصل کښ مفعول اول دے او الشح دویم مفعول دے دا مشهور قول دے او دویم قول دَ دے برعکس دے او مراد دَ احضار دَ شح نه دا دے چه شح دَ نفس دَ پاره امر طبعی دے دَ هغه نه نه جدا کیږی۔

وَلَنْ تَسْتَطِيْعُوْٓا اَنْ تَعْدِلُوْا

او هيڅکله به طاقت نه لرئ تاسو چه انصاف اوکړئ

بَيْنَ النِّسَآءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ

په مينځ دَ زنانوکښ (په مينه کولوکښ) اګر چه حرص کوئ تاسو

فَلَا تَمِيْلُوْا كُلَّ الْمَيْلِ

نو مه کږيږئ پوره ته په پوره کږيدلو سره

فَتَذَرُوْهَا كَالْمُعَلَّقَةِ ؕ وَاِنْ

چه پريږدئ هغه بله پشان دَ ځوړندې، او که

تُصْلِحُوْا وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ

اصلاح کوئ تاسو او ځان ساتئ (ظلم دَ شخوند) نو يقيناً الله تعالیٰ

كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۲۹﴾

دے بخښه کوونکے رحم کوونکے۔

قرطبی وئيلی دی چه دا جمله خبريه دَه ۔ الشح حرص کول دی په منع دَ خير بانديے (اللباب)۔ ابن فارس وئيلی دی چه بخل دے سره دَ حرص نه (ابوحيان)۔ دا چه هرکله په منع دَ حقوقو شرعيه کښ (راشی نو مذموم دے په سورة تغابن کښ دی ومن يوق شح نفسه فاولئك هم المفلحون ۱۶۔
وَاِنْ تُحْسِنُوْا وَتَتَّقُوْا ، دا خطاب دے خاوندانو ته يعنی که چرے تاسو احسان اوکړئ دَ خپلے ښځے سره په ساتلو دَ هغے سره دَ بدلګنړلو نه او ځان بچ کړئ دَ نشوز او اعراض نه . يا عام خطاب دے غير دَ خاوندانو ته يعنی که نور خلق احسان اوکړی په صلح کولو سره او ځان بچ کړی دَ ميلان نه يو طرف ته۔
فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ، خبير هغه دے چه عالم وی په پټ حالت او رازونو بانديے او هرکله چه شح

باطنی څیز دے دا رنګ دَ ظاهر او باطن دواړو سره تعلق لري نو دَ هغې سره لفظ دَ خبیر مناسب دے۔

سولا۔ په دے آیت کښې ذکر کوی دفع دَ ظلم دَ زنانهٔ په هغه کارونو کښې چه دَ انسان دَ وس برابر وی۔ او کوم چه دَ وس نه بهر دی نو په هغې کښې عذر ذکر کوی۔

وَلَنْ تَسْتَطِيعُوٓا اَنْ تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَآءِ، یعنی دا سے عدل چه په هر څیز کښې دی چه متعلق دی دَ حال دَ ښځو سره۔ تقسیم، نفقه، نظر، رعایت، أنس کول، خوش طبعی (الوسی) او دَ بیهقی روایت کښې محبت او جماع ذکر دی۔ لیکن دَ دے برابری دَ انسان دَ قدرت نه بهر ده ځکه چه دا امور غیر اختیاری دی۔ تر دے پورے چه زیاته مینه کول دَ عائشه رضی الله عنها سره دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ اختیار نه بهر وو لکه چه په حدیث دَ ابوداؤد او ترمذی کښې دَ عائشه رضی الله عنها روایت دے چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیل (اَللّٰهُمَّ هٰذَا قَسْمِيْ فِيْمَا اَمْلِكُ فَلَا تَلُمْنِيْ فِيْمَا تَمْلِكُ وَلَا اَمْلِكُ) (اے الله دا زما تقسیم دے په هغه کار کښې چه زهٔ ئے وس لرم نو ما مه ملامت کوے په هغه کار (محبت دَ زړهٔ) چه ته ئے اختیار لرے او زهٔ ئے اختیار او وس نه لرم)۔

وَلَوْ حَرَصْتُمْ، غوره دا ده چه واو وصلیه دے یعنی اګر چه تاسو حرص کوئ په عدل کولو کښې او کوشش کوئ۔ په دیکښې اشاره ده اګر که دغه عدل دَ انسان دَ طاقت نه بهر دے لیکن بیا هم ضروری دے چه خپل کوشش دَ عدل په باره کښې صرف کوی او دا حرص محمود دے۔

فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ، دا نهی تعلق لری دَ هغه کارونو سره چه دَ طاقت دَ لاندے وی یعنی قسم (شمیر ساتل) او نفقه۔ قرطبی وثیلی دی معنیٰ دا ده چه قصد مه کوئ دَ بد کار نو مقصد دا دے چه بلا قصد سره میلان مه کوئ هغه ښځے ته چه دَ زړهٔ محبت ورسره ډیر دے۔ تر دے پورے چه تاسو فرق په قول او عمل کښې ښکاره کړئ دا منع دے۔ كُلَّ الْمَيْلِ لفظ

کل چه په مصدر بانده داخل شي نو په معنی مصدري کښې په کمال بانده دلالت کوي - او د کمال میلان نه دا ده چه فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ ، فَتَذَرُوهَا ، په حال د نصب کښې دے په تقدیر د اَنْ سره په جواب د نهی کښې یا مجزوم دے عطف دے په تمیلو بانده نو بناء په اول بانده جمع کول د دواړو کارونو منع دی اوبناء په دویم بانده هر یو کار جدا جدا منع او حرام دے.
هَا ضمیر راجع دے دویمے ښځے ته چه د هغې نه میلان کړے شوے دے یلے ښځے ته - كَالْمُعَلَّقَةِ ، کاف د پاره د تشبیه دے او مراد د دینه تشبیه ده د هغه څیز سره چه د آسمان او زمکے په مینځ کښې زوړند وی نه زمکے ته رسیږی چه قرار حاصل کړی او نه بره طرف ته څه څیز پورے انختلے وی نو ښځه معلقه نه مطلقه دی او نه خاوند والا وی - او قتاده وئیلی دی چه مراد د دے مسجونه ده چه په جیل کښې ساتلے وی - او دا ډیر ظلم کولو ته اشاره ده-
وَاِنْ تُصْلِحُوْا وَتَتَّقُوْا ، اصلاح ، نه مراد عدل دے په قسم او نفقه کښې او تقوی نه مراد ځان د میل او ظلم نه بچ کول دی. یا مراد د اصلاح نه توبه کول دی د مخکښې میلان کولو نه او تقوی نه مراد په راتلونکے وخت کښې ځان د میل نه ساتل دی (اللباب)-
سوال :- تیر شوی آیت کښې وان تحسنوا وئیل او دلته وان تصلحوا ؟
جواب :- په هغه آیت کښې سره د کراهیت د ښځے نه نشوز او اعراض پریخودل او دے ته په عرف کښې احسان وئیلے شي او نشوز او اعراض اساءت دے (بد کار کول) او اساءت مقابل د احسان وی- او په دے آیت کښې منع ده د جور او ظلم نه او مقابل د جور اصلاح ده په عدل کولو سره نو هر یو سره مناسب فعل ذکر شوید ے۔

# وَاِنْ يَّتَفَرَّقَا يُغْنِ اللّٰهُ كُلًّا

او كه جدا شول دواړه نو بې پرواه به كړي الله تعالىٰ هر يو لره

# مِّنْ سَعَتِهٖ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ وَاسِعًا

په وجه دَ فضل خپل ، او دے الله تعالىٰ فراخ فضل والا

# حَكِيْمًا ﴿۱۳۰﴾

حكمتونو والا -

ف۱۳ :- دا عطف دے په ما قبل باندے يعنى چه اصلاح نشى كيدے نو دويم حال جدائى كول دي په طريقه دَ طلاق شرعى سره نو اوفرمائيل وَاِنْ يَّتَفَرَّقَا ، اشاره ده چه طلاق وركول دَ ډيرے مجبورئ په حال كښں پكار دے -

يُغْنِ اللّٰهُ كُلًّا مِّنْ سَعَتِهٖ ، نو په وخت دَ طلاق كښں دواړه په الله تعالىٰ باندے حسن ظن اوكړئ چه الله تعالىٰ به دغه خاوند ته بله دَ خوښے ښځه وركړي او دغه ښځے له به دَ خوښے خاوند وركړي يا به په بله طريقے سره دَدوى مدد اوكړي -

وَكَانَ اللّٰهُ وَاسِعًا حَكِيْمًا ، وَاسِعًا ، مطلق ذكر دے يعنى واسع الفضل ، واسع الرزق ، واسع النعمة ، واسع الرحمة ، واسع القدرة ، واسع العلم - واسع په ټولو كمالاتو كښں او حَكِيْمًا كښں اشاره ده چه وسعت په مناسبت دَ حكمت سره كوى چه په هغه باندے اعتراض نشى كيدے -

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا

او خاص دَ الله تعالیٰ په اختیار کښې دي هغه څه چه په آسمانونو کښې دي او هغه څه چه

فِي الْاَرْضِ ط وَلَقَدْ وَصَّيْنَا

په زمکه کښې دي او یقیناً پوخ حکم ورکړے مونږ

الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ

هغه کسانو ته چه ورکړے شوے ورته کتاب

قَبْلِكُمْ وَاِيَّاكُمْ اَنِ اتَّقُوا اللّٰهَ ط

مخکښې ستاسو نه او تاسو ته چه یره کوئ دَ الله تعالیٰ نه،

وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا

او که کفر اوکړو تاسو نو یقیناً دَ الله تعالیٰ اختیار کښې دي هغه څه چه

فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ط

په آسمانونو کښې دي او هغه څه چه په زمکه کښې دي،

وَكَانَ اللّٰهُ غَنِيًّا حَمِيْدًا ﴿۱۳۱﴾

او دے الله تعالیٰ بے حاجته ستائیلے شوے.

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا

او خاص دَ الله تعالیٰ په اختیار کښې دي هغه څه چه په آسمانونو کښې دي او هغه څه چه

فِي الْاَرْضِ ط وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿۱۳۲﴾

په زمکه کښې دي او پوره دے الله تعالیٰ کارجوړونکے.

س۱۳۱، س۱۳۲: ربط: دَ مخکښې سره ربط په څو وجوهو سره دے۔

اوله وجه دا ده چه مخکښې آیت کښې يُغْنِ اللّٰهُ كُلًّا مِّنْ سَعَتِهٖ او صفت دَ واسع بیئې ذکر کړے دے نو په دے آیاتونو کښې

دَ هغۀ دلیل ذکر کوی چه وَلِلّٰه ما فی السموٰت آه. دے یعنی دَ هرځه مِلک او مُلک دَ هغه دے نو یقینًا واسع علم او قدرت او فضل والا دے۔
دویمه وجه داده چه تیر شوی احکام چه په باره دَ عدل دَ زنانو او یتامٰی ذکر شول نو دَ دے وجه دا نه ده چه الله تعالٰی کمزورے او محتاج دے بلکه دَ هغه خو پوره قدرت او علم ثابت دے لیکن دا احکام دَ مصلحتونو او دَ حاجاتو دَ انسانانو دَ وجے نه دی۔
دریمه وجه داده چه دَ تیر شوے احکامو دَ عمل کولو دَ پاره دَ تقوٰی ضرورت دے نو دَ دے وجے نه دلته وصیت په تقوٰی سره ذکر کوی۔
وَلِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ، لام دَ پاره مِلک او مُلک او عبدیت دے او په ذکر دَ آسمانونو او زمکو سره وسط (مینځ) داخل دی۔ او دا جمله بناء په اول دوه وجو دَ ربط سره متعلق ده دَ ماقبل سره او په دریمه وجے سره تعلق لری دَ روستو جملے سره۔
وَلَقَدْ وَصَّیْنَا الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْکِتٰبَ، وصیت دَ الله تعالٰی پوخ امر دَ هغه دے چه نسخ پکښ نه راځی۔ اُوْتُوا الْکِتٰبَ، نه مراد یهود او نصارٰی او ټول امتونه چه تیر شویدی چه دَ هغوی سره صحیفے دَ الله تعالٰی وی یا دَ مخکښ رسول کتاب ورسره پلے شوے وو او الْکِتٰبَ، نه مراد جنس کتابونه دَ الله تعالٰی دی (ابو حیان)۔
مِنْ قَبْلِکُمْ، دا لفظ دلیل دے چه دَ اُوْتُوا الْکِتٰبَ په وخت دَ اطلاق کښ قرآن والو ته شامل دے دَ دے وجے نه دا قید یې ذکر کړلو۔
وَاِیَّاکُمْ، دا عطف دے په الذین (موصول) باندے او داسے عطف په فصیح کلام کښ جائز دے او هر کله چه اوتوا الکتاب (یهود او نصارٰی وغیره) په زمانه کښ مخکښ وو دَ دے وجے نه یې هغوی مقدم ذکر کړل۔

اَنِ اتَّقُوا اللّٰهَ ، باء په دیکښ پټه ده یعنی بان اتقوا الله یا ان تفسیریه دے او په دیکښ اشاره ده چه تقوی دین د ټولو انبیاء علیهم السلام کښ مامور بهٖ ده او تقوی نه مراد د کفر او شرک او ټولو گناهونو نه ځان بچ کول او په ټولو ماموراتو باندے راتلل کولو ته شامل ده۔

وَاِنْ تَكْفُرُوْا ، دا عطف دے په وصینا باندے په تقدیر د قلنا سره او خطاب موجوده او تیر شوے ټولو ته دے په طریقه د تغلیب سره ۔ او مراد د کفر نه انکار کول دی د وصیت او د امر د تقوی نه ۔ او جزا د دے شرط پټه ده یعنی فَلَا يَضُرُّهٗ كُفْرُكُمْ رهیڅ ضرر نه ورکوی الله تعالیٰ ته کفر ستاسو او

فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ، دا علت دے د پټے جزا د پاره او دا دلالت کوی په استغناء د الله تعالیٰ باندے د ټول مخلوق نه ۔

وَكَانَ اللّٰهُ غَنِیًّا حَمِیْدًا ، او دا جمله تاکید د ماقبل جملے دے غَنِیًّا ، د الله تعالیٰ صفت د غنا په معنیٰ د عدم حاجت او عدم پرواه ده یعنی د مخلوق عبادت کولو ته الله تعالیٰ محتاج نه دے او ترک د عبادت د دوی الله تعالیٰ ته هیڅ نقصان نشی ورکولے او حمید ، دے د وجے د بے شماره نعمتونو نه یعنی سره د دے چه مخلوق ته ئے حاجت نشته لیکن د حمد ویلو مستحق دے او د انسانانو اغنیاؤ اکثر خلق ستائنه نه کوی د هغوی د بد اخلاقئ د وجے نه ۔

وَلِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ، دا هم تعلق لری د ماقبل سره او دا رنگ د روستو د پاره هم تمهید دے او هر کله چه ملکیت د ټول عالم د الله تعالیٰ د پاره ثابت دے نو معلومه شوه چه هغه انتظام کوونکے د ټول عالم د پاره کافی دے نو وروستو ئے او فرمائیل وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِیْلًا ، مراد د وکیل نه په صفت د الله تعالیٰ کښ انتظام کوونکے د ټولو موجوداتو دے

او په هغې کښې هيڅ نائب مشير وزير ته حاجت نه لري دا معنی دَ کفايت ده -
فائده :- په دے آيا تو کښې جمله دَ لِلّٰه ما في السمٰوٰت وما في الارض درے کرته ذکر کړے ده دَ دے ډير وجوه دي - اوله وجه، ابن عطيه ذکر کړيده چه په اول کرت راوړلو دَ دے جمله کښې تنبيه ده په ځائے دَ اميد ساتلو چه په وخت دَ تفرق کښې فائده ورکوي چه هغه الله تعالىٰ دے او په دويم کرت کښې تنبيه ده په استغناء دَ الله تعالىٰ دَ بندګانو نه او په دريم کرت کښې مقدمه ده (تمهيد) دے دَپاره دَ وعيد (عذاب) او راغب وئيلي دي چه په اول ځل کښې تسلي دَ قوت شوي خيز - او په دويم کښې اشارهِ ده چه وصيت دَ الله تعالىٰ دَ وجے دَ رحمت دَ هغه نه دے او په دريم کښې دليل دے چه الله تعالىٰ غني دے - او رازي وئيلي دي چه په اول کښې تاکيد دے دَ وسعت جود دَ الله تعالىٰ او په دويم کښې استغناء ښکاره کول دي دَ طاعت دَ مطيعينو نه - او په دريم کښې بيان دَ قدرت دَ هغه دے په فنا کولو او موجودولو باندے - او مکي وئيلي دي چه په اول کرت کښې تنبيه راکوي موږ ته په ملک او وسعت دَ هغه او په دويم کښې تنبيه ده چه موږ هغه ته محتاج يو او هغه غني دے او په دريم کښې تنبيه ده چه الله تعالىٰ زموږ حفاظت کوي او عالم دے په تدبير زموږ باندے (ابوحيان) - او بيله وجه دا ده چه اول کرت کښې داعلت دے دَپاره دَ امر دَ تقوىٰ او په دويم کرت کښې دليل دے دَپاره دَ غنا دَ الله تعالىٰ او په دريم کښې علت دے دَپاره دَ کفايت او وکالت دَ الله تعالىٰ دَپاره دَ ټولو بندګانو - او بله وجه دا ده چه په اول کرت کښې وسعت ملکيت دَ الله تعالىٰ ته اشاره ده او په دويم کښې مُلک کلي دَ هغه ته اشاره ده چه دليل دے دَ استغناء دَ هغه او په دريم کښې تدبير او انتظام دَ کل مخلوق ته اشارهِ ده چه دَ هغې دَپارهِ الله تعالىٰ کافي دے او په ټولو وجوهو کښې ردّ دے په شرک في التصرف باندے

إِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ أَيُّهَا النَّاسُ

| کہ اوغواړی الله تعالیٰ فنا به کړی تاسو اے خلقو! |
|---|

وَيَأْتِ بِآخَرِيْنَ ۚ وَكَانَ اللهُ

| او راپه ولی نور خلق ، او دے الله تعالیٰ |
|---|

عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ﴿١٣٣﴾

| په دے باندے قدرت والا ۔ |
|---|

۱۳۳۔ په دے آیت کښ تخویف دنیوی دے په شرط د نافرمانئ کولو د وصیت د تقوٰی نه او خطاب عام دے اهل کتابو او دے امت ټولو ته ۔ او قرطبی وئیلی دی چه دا آیت پشان د سورۃ محمد ۳۸ دے تخویف او تنبیه ده والیانو او امیرانو بادشاهانو ته چه عدل د رعیت سره نه کوی یا عالم چه په علم باندے عمل نه کوی او خلقو ته دعوت د حق نه کوی۔

اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ ، حرف عطف ئے نه دے ذکر کړے اشاره ده چه مخکښ آیاتونو کښ چه عموم تصرف او ملکیت د الله تعالیٰ ذکر کړو نو دا اذهاب او اتیان د هغے د لاندے داخل دی ۔ يُذْهِبْكُمْ، دا لفظ هلاکول په عذاب سره او صرف فنا کولو او غلبه او تسلط زائل کولو ته شامل دے۔

نو أَيُّهَا النَّاسُ ، کښ کافران ، مشرکان او ګنهګار مؤمنان ټول داخل دی د هر یو اذهاب د هغوی مناسب دے د دے وجے نه اهلاک ئے نه دے ذکر کړے ځکه هغه اکثر په عذاب کښ او کله په فنا کښ ذکر کیږی ۔

وَيَأْتِ بِآخَرِيْنَ ، ابوحیان وئیلی دی چه غیر کم ئے نه دی وئیلی ځکه د آخَرِيْنَ نه مراد هغه څوک دی چه د نورے د انسانانو نه دی او غیر کم غیر انسانانو ته هم شامل دے او غیر انسانان دلته مراد نه دی۔

وَكَانَ اللهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ، ذٰلِكَ اشاره ده اذهاب او اتیان

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا

څوک چه طلب کوی (په عمل خپل سره) بدله دَ دنیا

فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا

نو دَ الله تعالیٰ سره بدله دَ دنیا

وَالْاٰخِرَةِ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا

او آخرت دواړه ده (نو دواړه د طلب کړی) او دے الله تعالیٰ آوریدونکے

بَصِيْرًا ﴿۱۳۴﴾

لیدونکے دَ هر څه۔

نه او په دے جمله کښ تاکید دے دَ ما قبل تخویف دَ پاره۔ ۱۳۳۔ روستو دَ تخویف دنیوی نه ترغیب دے آخرت ته۔

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ، ابن عطیه وثیلی دی چه معنیٰ دا ده چه څوک چه عقیده لری صرف دَ بدلے دَ دنیا او دَ دینه علاوه بل څه دَ ده په گمان کښ نه دی نو دا سے شخص ته تبکاره کوی چه دا گمان دَ ده غلط دے بلکه دَ الله تعالیٰ سره ثواب دَ دنیا او آخرت شته دے بناء په دے قول جزاء دَ مَنْ پټه ده (فَلَيْسَ كَمَا ظَنَّ)۔ او قرطبی وئیلی دی چه معنیٰ دا ده څوک چه عمل کول دَ پاره دَ طلب دَ دنیا یا دَ ریا دَ پاره نو ده لره په آخرت کښ هیڅ حصّه دَ ثواب نشته لکه په سورۃ هود ۱۵ - بلکه اراده دِ اوکړی دَ ثواب دَ دنیا او آخرت یا صرف آخرت نو ثواب دَ دنیا او آخرت به دواړه ورته ملاؤ شی بناء په دے قول تقدیر عبارت دا دے (مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا فَلَيْسَ لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ ثَوَابٌ فَلْيُرِدْ بِعَمَلِهٖ ثَوَابَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ)۔ او دَ ما تریدی نه ابوحیان نقل کړی دی چه معنیٰ دا ده چه څوک طلب کوی په عبادت دَ اصنامو

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا

اے ایمان والو! تئی

قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ

کلک په انصاف حق بیان کوونکی دپاره د الله تعالیٰ

وَلَوْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ اَوِ الْوَالِدَيْنِ

اگر چه نقصان وی په تاسو باندے یا په مور او پلار باندے

وَالْاَقْرَبِيْنَ ۚ اِنْ يَّكُنْ غَنِيًّا

یا په خپلوانو ستاسو باندے که وی هغه غنی

اَوْ فَقِيْرًا فَاللّٰهُ اَوْلٰى بِهِمَا ۫

یا فقیر نو الله تعالیٰ زیات مهربان دے په دے دواړو باندے

سره عزت لره نو دا ورته نشی حاصلیدے ځکه چه عزت د دنیا او آخرت د الله تعالیٰ په اختیار کښ دے بلکه معنیٰ دا ده چه څوک طلب کوی په عبادت د غیر الله سره تقرب او شفاعت نو دا نشی کیدے لیکن چه بندګی د الله تعالیٰ کوی نو ثواب د دنیا او آخرت په هغې سره ملا ویږی - ابوحیان وئیلی دی چه د دے جزاء پټه ده (فَلَا يَقْتَصِرُ عَلَيْهِ وَلْيَطْلُبِ الثَّوَابَيْنِ) - نو کوتاهی دِ نه کوی صرف په دنیا باندے بلکه دواړه ثوابونه د طلب کړی - راغب وئیلی دی چه په دیکښ اشاره ده چه څوک خسیس څیز طلب کوی او حال دا چه د نفیس د طلب امکان وی نو دا سے شخص سپک همت والا دے -

وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ، هر کله چه د اراده کولو نه روستو ژبه او نور اندامونه ضرور استعمالیږی د دے وجے نه ذکر کړو چه سَمِيْع (د اقوالو) او بَصِيْر (د افعالو) دے -

فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوٰى اَنْ تَعْدِلُوْا ۚ
تو تابعداری مه کوئ دَ خواهش چه او به نه کړئ انصاف

وَاِنْ تَلْوٗٓا اَوْ تُعْرِضُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ
او که ژبه اړوئ یا مخ اړوئ (دَ حق بیان نه) نو یقیناً الله تعالیٰ

كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿۱۳۵﴾
دے ستاسو په عملونو باندے خبردار ـ

۱۳۵: ربط ۱:- هر کله چه په دے سورت کښ احکام شرعیه انتظامیه ذکر کړے شول نو وهم پیدا کیدلو چه په دے احکامو کښ دَ والدینو او خپلوان یا دَ فقیر یا دَ غنی طرف داری او دَ هغه سره مصالحه په جائز وی نو په دے آیت کښ دَ هغے جواب اوشو چه په حق حکم کښ دَ هیچا رعایت جائز نه دے ـ

ربط ۲:- هر کله چه مخکښ آیت کښ ترغیب ذکر کړو دَ پاره دَ ثواب دَ دنیا او آخرت نو په دے آیت کښ دَ هغے دَ حصول طریقه ذکر کوی چه هغه قیام بالقسط او شهادت لِلّٰه او اجتناب دے دَ اتباع دَ هوی نه ـ

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ، دا روستو ذکر کړے شوے حکم دَ ایمان تقاضا ده دَ دے وجے نه دا خطاب ئے ذکر کړو ـ

كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ ، قوام ، صیغه دَ مبالغے ده دَ قیام نه او په دے صیغه راوړلو کښ اشاره ده چه په یو حکم یا دوه حکمونو کښ قیام بالقسط فائده نه کوی ځو پورے چه بار بار او ټولو احکامو کښ قیام بالقسط ئے کړے نه وی ـ قِسْطِ ، انصاف او عدل دے په حقوق الله او په حقوق العباد ټولو کښ او دَ قیام په صله کښ چه باء ذکر شی نو اهتمام او اصرار (ټینګیدل) مراد دی ـ

شُهَدَآءَ لِلّٰهِ ، لِلّٰهِ معنیٰ ده دَ الله تعالیٰ دَ رضا دَ پاره چه په هغے کښ هیڅ دنیوی غرض نه وی ـ او شهادت ګواهی کول یا بیان کول دَ حق ته یا اقرار کولو ته شامل دے ـ شهداء دا دویم

خبر دے دَ کونوا دَ پاره یا صفت دے دَ پاره دَ قوامین یا حال دے
دَ پټ ضمیر دَ قوامین نه - او ابن عطیه وئیلی دی چه شهداء لله
نه مراد شهادت دے په توحید سره یعنی هغے ته هم شامل دے.
فائده :- قیام بالقسط سبب دے دَ پاره دَ شهادت دَ حق او سبب
مقدم وی په مسبب باندے دا رنګ قیام بالقسط عام دے
قول او فعل دواړو ته او شهادت خاص دے په قول پورے او
عام مخکښ وی دَ خاص نه په اکثرو اوقاتو کښ -

وَلَوْ عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ ، په حرف لَوْ کښ دوه وجے دی - اول دا شرطیه
دے او جزاء ئے حذف ده یعنی او که چرے تاسو شهادت کوئ
په ځانونو خپلو باندے نو واجب دے په تاسو دغه شهادت -
دویم لَوْ وصلیه دے معنیٰ دا چه اګرچه وی شهادت ستاسو
په نفسونو باندے شهادت په خپل نفس باندے په دوه طریقو
سره دے اول دا چه اقرار دَ حق دَ بل چا په خپل ځان باندے
دویم دا معنیٰ اګرچه دغه بیان دَ حق ضرروی ستاسو په
نفسونو باندے یعنی په خپل ځان باندے شهادت کول دی
چه ما دا فلانے جرم کړیدے (اللباب)

أَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ ، یعنی اګرچه په شهادت دَ حق
کښ والدینو ته او اقرباء ته ضرر او نقصان وی لیکن شهادت
کول واجب دی او بل قسم شهادت دے دَ پاره دَ والدینو او اقرباؤ نو
هغه په شرع کښ صحیح نه دے ځکه چه مقام دَ تهمت دے.

إِن يَكُنْ غَنِيًّا أَوْ فَقِيرًا ، یکن ضمیر راجع دے مشهود علیه ته یعنی
که چا ته په ضرر ورکولو کښ چه شهادت ورکیدیشی غنی وی نو
دَ هغه نه ویره کیدیشی یا تر یته څه امید کیدیشی یا فقیر وی نو
په هغه باندے رحم او ترس کیدیشی لیکن بیا هم دَ هغوی رعایت
کول په شهادت حقه کښ جائز نه دی-

فَاللَّهُ أَوْلَىٰ بِهِمَا ، بهما ، ضمیر جنس غنی او فقیر ته راجع
دے او دلته معنیٰ دَ اولی دا ده چه الله تعالی چه قانون شهادت

مقرر کړېدلے نو په دیکښې دَ غني او فقیر دواړو رعایت او مصلحت موجود دے نو بنده له اجازت نشته چه دَ هغه مصلحت خلاف دَ ځان دَ طرف نه دَ هغه رعایت اوکړي۔

فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوَىٰ أَنْ تَعْدِلُوا ، هر کله چه امر ئې اوکړو په قیام بالقسط او شهادت لله نو اوس نهي کوي دَ مانع دَ هغې نه چه اتباع هوی دہ او هوی هغه خیز دے چه نفس هغې ته میلان کوي او شرعًا جائز نه وي۔ أَنْ تَعْدِلُوا ، په دیکښې دوه احتمالونه دي اول دا چه دا دَ عدول نه اخستلے شوېدلے په معنی دَ حق نه اوړېدل یعنې ظلم او جور کول۔ دویم دا چه دَ عدل (انصاف) نه ماخوذ دے او دا په ځائے دَ مفعول له دے دَ لاتتبعوا دَپاره نو په دے معنی کښې څلور وجوه دي۔

اوله وجه دا چه تابعداري دَ خواهش مه کوئ دَ وجے دَ اوړېدلو دَ حق نه په دے معنی کښې تقدیر ته حاجت نشته۔

دویمه وجه تابعداري دَ خواهش مه کوئ (کراهة ان تعدلوا) دَ وجے دَ بدګڼړلو دَ عدل نه۔

دریمه وجه چه تابعداري دَ خواهش مه کوئ (منع کووم تاسو لره) دَ وجے دَ بدګڼړلو زما عدول دَ حق نه۔ په دے توجیه کښې هم کراهیه لفظ پټ دے۔

څلورمه وجه منع کووم تاسو لره دَ اتباع دَ هوی دَ وجے دَ عدل زما نه۔

او ابوالبقاء پنځمه وجه ذکر کړېده په تقدیر دَ في اولا سره یعنې تابعداري دَ خواهش مه کوئ په عدل نه کولو کښې دَ دے نه علاوه نور وجوه هم شته دے لیکن هغه ضعیفې دي۔

وَإِنْ تَلْوُوا أَوْ تُعْرِضُوا ، دا هم تاکید دے دَ قیام بالقسط او شهادت لله او نهي دَ اتباع هوی نه او زجر دے دَ پټولو دَ قسط او شهادت حقه نه په دوه طریقو سره۔

اوله طریقه تَلْوُوا دَ لَيُّ اللِّسَان (ژبه اړول) نه اخستلے شوے

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ

اے ایمان والو (په زړه) یقین اوکړئ (په زړه کښ) په الله تعالیٰ

وَرَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْ نَزَّلَ

او په رسول دَ هغه او په کتاب دَ هغه چه نازل کړے دے

عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْٓ

په رسول باندے او په هغه کتاب

اَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ ؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ

چه نازل کړے دے دَ دینه مخکښ ، او چاچه کفر اوکړو

بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ

په الله تعالیٰ او په ملائکو دَ هغه او په کتابونو دَ هغه او په رسولانو دَ هغه

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَقَدْ ضَلَّ

او په ورځ روستنئ نو یقیناً گمراه شو

یعنی دَ شهادت بالحق نه زړه وارړوئے یعنی داسے الفاظ اووائی چه مخاطب په هغے باندے پوهه نشی چه ده حق پټ کړو او مطلب ئے پټول دَ حق وی۔

اودریمه طریقه تعرضوا یعنی ښکاره مخ کرځول دَ ادا دَ شهادت حقه نه په مختلف بهانو اوعذرونو سره۔ او بعضے مفسرینو وئیلی دی چه تلووا دلی العنق (رسټ اړول) نه ماخوذ دے او خطاب حاکم ته دے یعنی روستو دَ شهادت نه حاکم دَ حق فیصلے نه سټ وارړوی یا اعراض اوکړی (ابوحیان)۔

فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ، په دے جمله کښ تخویف دے په لی اللسان او په اعراض کولو دَ حق شهادت نه۔

# ضَلٰلًۢا بَعِيْدًا ﴿۱۳۶﴾

| پہ گمراهئ لرے سره - |
|---|

۱۳۶ :- خلاصه :- دَ دے آیت نه دریمه حصه دَ سورت شروع کیږی دَ سورت دَ اختتام پورے په دیکښ زجرونه دی په هغه چا باندے چه په تیر شوی نظام کښ فساد او خلل پیدا کوی چه هغه منافقان او یهود او نصارٰی دی او په دے حصه کښ درے بابونه دی۔
اول باب تر ۱۵۹ پورے دے په دے باب کښ زجرونه دی په منافقانو باندے۔ نو اول پکښ دعوت دے استقامت ته په اصولو دَ ایمان باندے په خلاف دَ منافقانو باندے ۱۳۶ کښ بیا زجرونه دی منافقانو ته په ذکر دَ دیارلس قباحتونو دَ هغوی سره - په ۱۳۷ آیت کښ یو قباحت ، په ۱۳۸ آیت کښ دویم قباحت او په ۱۳۹ آیت کښ دوه قباحتونه - او په ۱۴۰ آیت کښ زجر ورکوی په شرکت دَ مجلس دَ کافرانو او مبتدعینو کښ په تاکید سره او په ۱۴۱ کښ درے قباحتونه دی او تخویف اخروی او په ۱۴۲ آیت کښ شلور قباحتونه او په ۱۴۳ آیت کښ دوه قباحتونه ذکر کوی - بیا په ۱۴۴ آیت کښ منع دَ مؤمنانو دَ دوستانے دَ کافرانو او منافقانو نه - بیا تخویف اخروی په ۱۴۵ او ورپسے ترغیب ورکول توبے ته په ذکر دَ څلورو شرطونو سره په آیت ۱۴۶، ۱۴۷ کښ - بیا جواب دَ یو وهم په ۱۴۸ ، ۱۴۹ کښ۔
ربط :- هر کله چه امر او شو په قیام بالقسط سره نو په دے آیت کښ سبب دَ هغے ذکر کوی یعنی قیام بالقسط موقوف دے په صحیح ایمان باندے چه په دے آیت کښ ذکر دے۔
يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اٰمِنُوْا ، په دے خطاب کښ اقوال دی اول قول چه دَ حسن بصری نه روایت دے چه دا خطاب دے تولو مسلمانانو ته او مقصد پکښ دوام او استقامت دے په ایمان باندے یا زیادت دَ یقین دے۔
دویم قول دَ زجاج دے چه دا خطاب دے منافقانو ته

او مراد دَ آمنوا نه اخلاص دَ ایمان دے۔
دریم قول چه دا خطاب دے اهل کتابو ته په روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما سره او نورا قوال هم شته دے آلوسی او صاحب اللباب ذکر کړیدی۔
بِاللهِ، په ایمان بالله کښ دَ هغه توحید او اسماء او صفات او احکام دَ هغه داخل دی۔
وَرَسُوْلِهٖ، دا اضافت عهدی دے مراد دَ دے نه آخری رسول محمد صلی الله علیه وسلم دے۔
وَالْكِتٰبِ الَّذِیْ نَزَّلَ عَلٰى رَسُوْلِهٖ، مراد دَ دیته قرآن کریم دے۔ او اَلَّذِیْ نَزَّلَ کښ اشاره ده چه په ایمان بالقرآن کښ شرط دا دے چه په صفت دَ منزل علی الرسول سره به ایمان راوړلے کیږی۔
وَالْكِتٰبِ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ، مراد دَ اَلْکِتَاب نه جنس کتاب دے یعنی تورات انجیل زبور ټولو ته شامل دے۔ او زمخشری وجه دَ فرق دَ نزل او انزال ذکر کړیده چه قرآن کریم لږ لږ نازل کړے شوے دے په دیرویشت کلونو کښ او نزل باب تفعیل هم په لږ لږ نازلیدلو باندے دلالت کوی او مخکنی کتابونه هر یو په یو کرت ټول نازل کړے شویدی نو دَ هغے دَ پاره انزل رباب افعال) راوړلو او دا بحث په ابتداء دَ تفسیر دَ سورة بقرة کښ ذکر شویدے۔

وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاللهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًاۢ بَعِيْدًا، په دے جملے راوړلو کښ تاکید دَ امر دَ ایمان دے یعنی په ترک دَ ایمان سره کفر او ضلال بعید حاصلیږی۔ آلوسی وئیلی دی چه دَ واو عطف سره دلته دَ مجموع دَ پاره نه دے بلکه دَ هر واحد دَ پاره دے یعنی په دیکښ که په یو یو باندے چا کفر اوکړو نو هغه به گمراه وی او بعض علماؤ وئیلی دی چه مجموع مراد دے ځکه چه ضلال سره بعید وئیلے دے۔ او ضلالا بعید دا دے چه ایمان سره هیڅ تعلق پاتے نشی۔

فائده ع۱:- په جانب دَ ایمان کښې ایمان بالله او بالرسول او بالکتاب ذکر کړو او په جانب دَ کفر کښې پنځه امور ذکر کړل وجه دا ده چه ایمان بالله او رسول او کتب مستلزم دے ایمان لره په ملائکو او په ورځ دَ آخرت پانډے۔ لیکن بعضے وخت یو شخص دعوی دَ ایمان بالله او بالرسول او بالکتب کوی لیکن ملائک او قیامت نه منی نو دغه دعوی دَ تردید دَپاره په جانب دَ کفر کښې دَ ملائکو او ورځ دَ قیامت ذکر اوکړو۔

فائده ع۲:- کتب او رسل ئے جمع ذکر کړل اشاره ده چه کفر په یو کتاب یا په یو رسول پانډ کفر دے په ټولو پانډے او په جانب دَ ایمان حقیقی کښې ایمان په آخری رسول او قرآن پانډے مستلزم دے ایمان لره په ټولو رسولانو پانډے۔

فائده ع۳:- او په جانب دَ ایمان کښې رسول مقدم کړے شوے په کتاب او جانب دَ کفر کښې برعکس دے وجه دا ده چه ایمان په رسول مخکښې دے په ایمان بالقرآن پانډے ځکه چه قرآن نازل کړے شوے دے په هغه پانډے۔

فائده ع۴:- او ملائک ئے مقدم کړی دی په کتب او په رسل پانډے ځکه چه هغوی واسطے دی په انزال دَ وحی کښې په مینځ دَ الله تعالی او دَ رسولانو کښې۔

فائده ع۵:- آلوسی وئیلی دی چه ایمان په قرآن مقدم ذکر کړے دے په ایمان په نورو کتابونو مخکښو پانډے پس یکښې اشاره ده چه مونږ په هغه کتاب (منزل) پانډے ایمان راوړو چه قرآن کریم کښې دَ هغه ذکر موجود وی او دَ دے تفصیل په تفسیر دَ سورة بقره ۳۸ کښې تیر شوے دے۔

۱۳۷ :. هر کله چه امر او شو په ثبات (ټينګوالی) سره په ايمان باندے نو اوس زجر ورکوی هغه چاته چه ايمان باندے ثابت قدم نه وی۔

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا ثُمَّ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا ، مراد په دے سره هغه شخص يا قوم دے چه مکرر واقع شوے وی د هغے نه ارتداد که اعتقادی منافقان وی او که اهل کتاب وی۔(آلوسی) منافقان په وخت د حصول د نفع دنيوی کښ مؤمنانو ته ايمان ښکاره کوی او بيا د کافرانو په مخکښ کفر ښکاره کوی دا رنګ بعضے کتابيانو دا کار د دے د پاره کوو چه مؤمنانو لره په شک کښ واچوی او مراد د دينه دوه کرته ايمان او کفر نه دے بلکه ډير تکرار مراد دے دا قول د ابن عباس رضی الله عنهما او حسن بصری او مجاهد، او ابن زيد نه نقل دے او د زجاج او فراء نه نقل دے چه چه دا يهود او نصارٰی دی چه ايمان ئے په موسٰی عليه السلام باندے لرلو بيا ئے په عيسٰی عليه السلام کفر اوکړو او بيا ئے په محمد صلی الله عليه وسلم باندے هم کفر اوکړو ليکن ابن عطيه دا قول ضعيف ګرځولے دے۔

ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا ، مراد د دينه کلک پاتے کيدل دی په کفر

بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ

زيرے ورکړه منافقانو ته چه یقینًا دوی لره

عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿١٣٨﴾

عذاب دے دردناک -

باندے تر مرګه پورے یعنی دَ مرګ نه مخکښ توبه دَ کفر نه او نه کړی (ابوحیان)-

لَمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ، په دا سے عبارت کښ په تیز دَ بصریانو خبر دَ یَکُن دَپاره پټ دے یعنی مریدًا لیغفر لهم او په تیز دَ کوفیانو لام زیاتی دے دَپاره دَ تاکید -

سوال :- په یکن کښ خو نفی دَ تاکید ده او دا خو دے مقام سره مناسب نه ده ؟

جواب :- دا نفی دَ تاکید په طریقه دَ تهکم سره ده او دا مستلزم ده تاکید دَ نفی لره - او آیت دلیل دے چه موت علی الکفر سبب دے دَ عدم مغفرت دَپاره لکه په (اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ) کښ ذکر دی -

وَّلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيْلًا، په دے کښ دوه احتمالونه دی - اول دا چه روستو دَ مرګ نه الله تعالی دوی لره دَ جنت په لارے باندے نه روانوی بلکه جهنم کښ به همیشه وی او دا هدایت وُصُول اِلَى الجنة ته شامل دے - دویم احتمال دا دے چه مراد دَ ازدیاد دَ کفر نه په ضد او عناد باندے پاخه کیدل دی نو هغوی ته په دنیا کښ توفیق دَ هدایت نه ورکوی او په دے آیت کښ دَ منافقانو اول قباحت او تعریف ذکر دے -

١٣٨ :- دا تخویف اخروی دے روستو دَ زجر نه - بَشِّرِ، دیته بشارت په تهکم سره ویلے دی (زجاج) - یا بشارت هر هغه خبر دے چه په هغے سره رنګ دَ بُشرے (دَ مخ) بدلیږی که دَ خوشحالی خبر وی یا دَ غم نو دے ته هم بشارت ویلے شوید ے (اللباب) - او په دے آیت کښ دَ منافقانو دویم صفت او نوم ذکر دے -

الَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ

دا هغه خلق دي چه نيسي كافرانو لره

اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ

دوستان سوا دَ مؤمنانو نه

اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ

آيا غواړي دوی دَ هغوی سره عزت.

فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ؕ ﴿۱۳۹﴾

نو يقينًا اختيار دَ عزت خو خاص الله تعالٰى لره دے ټول.

۱۳۹ :- په دے آيت كښ زجر دے منافقانو ته او دَ هغوی دوه صفات قبيحه ذكر كوی۔

الَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ، كافران عام دی يهوديان او نصارٰی او مشركان اميانو ته شامل دی او تفسير دَ دے په سورة العمران ۲۸ كښ تير شوے دے ابوحيان وئيلی دی چه دا وصف دَ منافقانو سخت ضرر وركوونكی دی مؤمنانو لره او په دے كښ تنبيه ده مؤمنانو ته چه دوی په دے وصف كښ واقع نشي۔

اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ، په دے كښ بل وصف دَ منافقانو دے او همزه دَ استفهام توبيخی (زورنے) دَپاره دے۔ عِزَّةَ، په معنٰی دَ قوت حفاظت او مدد دے او دفع دَ مصيبت ته وئيلے شی لكه په سورة مائدة ۵۲ كښ دی۔ او عزت په لغت كښ شدت (سختوالی) ته وئيلے شی۔

فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا، يعنی اختيار دَ عزت وركولو الله تعالٰى پورے خاص دے او دا سے په سورة فاطر ۱۰ كښ دی۔

سوال :- په سورة منافقون ۸ كښ ذكر كړيدی ولله العزة

وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ

او يقينًا نازل كړى دے الله تعالىٰ په تاسو باندے په دے كتاب كښې

اَنْ اِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ

دا چه كله واورئ تاسو ايا تونه د الله تعالىٰ چه كفر كيږى

بِهَا وَيُسْتَهْزَاُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوْا

په هغے باندے او ټوقے كيږى په هغے پورے نو مه كينئ تاسو

مَعَهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ

د هغوى سره ترد دے چه مشغول شي دوى په خبرو

غَيْرِهٖٓ ۖ اِنَّكُمْ اِذًا مِّثْلُهُمْ ۭ

نورو كښې يقينًا تاسو په دغه وخت د دوى پشان يئ،

اِنَّ اللّٰهَ جَامِعُ الْمُنٰفِقِيْنَ

يقينًا الله تعالىٰ جمع كوونكے دے منافقانو

وَالْكٰفِرِيْنَ فِيْ جَهَنَّمَ جَمِيْعًا ﴿١٤٠﴾

او كافرانو لره په جهنم كښې يو ځائے۔

والرسوله وللمؤمنين) نو د دے څه تطبيق دے؟
جواب:۔ په دغه آيت كښې اتصاف مراد دے يعنى عزت د الله تعالىٰ صفت دے او دا رنګ د رسول او د مؤمنانو صفت دے او دلته مراد دا دے چه اختيار د عزت وركولو خاص دے په الله تعالىٰ پورے نو وركوى ئے رسول او مؤمنانو ته او كافرانو ته عزت نه وركوى نو منافقان د هغوى نه ولے عزت غواړى۔

ف۱۴۰:۔ دا هم زجر دے منافقانو ته هر كله چه مخكښې آيت كښې علم د نفع (حصول د عزت) د موالات د كافرانو ذكر كړو نو اوس د هغے مانع ذكر كوى يعنى د دوى دوستانه كښې خو فائده نشته

او حال دا چه الله تعالیٰ دَ دوی دَ مجلس دَ شرک نه هم منع کړے ده نو ولے دَ دوی سره دوستانے کوئ۔

وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ، خطاب دے منافقانو ته او هرهغه څوک چه ایمان ښکاره کوی۔

فِي الْكِتٰبِ، مراد دَدے نه قرآن کریم دے او سورۂ انعام ۶۸ دے چه په مکه کښ نازل شوے وُو۔

اَنْ اِذَا، اَنْ مخفف دے دَ مثقل نه او ضمیر شان پټ دے یعنی انّه۔

سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا، دا حال دے دَ آیات الله نه یعنی داورئ تاسو کفر کول په آیاتو دَ الله تعالیٰ پورے او اٰيٰتِ اللّٰهِ عام دے که آیاتو قرآنیه وی او که احکام دَ دین اسلام وی۔ او سَمِعَ عامه ده او ریدل او علم دواړو ته یعنی په بله طریقه معلومه شی چه په فلانی مجلس کښ په آیات الله پاندے کفر کولے شی۔ او دَدے وجے نه په سورۂ انعام کښ وَاِذَا رَاَيْتَ وئیلی دی چه لیدلو او علم ته شامل دے۔ وَيُسْتَهْزَاُ بِهَا،

سوال:۔ استهزاء په آیات الله پاندے هم کفر دے نو دَ يُكْفَرُ نه روستو ولے ذکر کړو؟

جواب:۔ کفر ښکاره انکار کول دی او استهزاء ښکاره انکار نه دے لیکن مستلزم دَ انکار دے دا رنګ کفر قولی انکار دے او استهزاء عملی کفر او انکار دے یا کفر خاص دے په کفر حقیقی پورے۔ او استهزاء عامه ده که په طریقه دَ سپکوالی او توهین سره وی چه حقیقتًا کفر دے یا په مخالفت عملی سره وی لکه بدعت او فسق او فجور کول شول۔ او په آیت دَ سورۂ انعام کښ دَ دے نه تعبیر کړیدے په (یخوضون فی آیاتنا) سره۔

فَلَا تَقْعُدُوْا مَعَهُمْ، دَ دینه مراد په مجلس کښ حصاریدل دی که ناست وی او که ولاړ وی او دا کنایه ده دَ اعراض کولو نه لکه چه په آیت دَ سورۂ انعام کښ فاعرض عنهم وئیلی دی۔

حَتّٰى يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ ، خُوضُ په لغت کښ په يو څيز کښ ننوتل او په اوبو کښ غوپه کيدل - غَيْرِهِ ، مراد د ديته غير د کفر او استهزاء ته يعنې خبرې د ايمان او د شرع - يا مباح خبرې چه په هغې کښ دين اسلام ته تعرض په طعن وغيره سره نه وي - خوض په قرآن کښ په مختلف تعبيراتو سره دولس کرته ذکر دے او په هرځائے کښ په عبث خبرو کښ مستعمل دے او دلته د غيره په قرينه سره مباح او شرعي خبرو ته شامل دے -

إِنَّكُمْ إِذًا مِّثْلُهُمْ ، دا علت دے د پاره د نهې (لا تقعدوا) إِذًا تنوين بدل دے د مضاف اليه نه يعني إِذَا قَعَدْتُمْ مَعَهُمْ او مراد د مماثلت نه مشابهت دے په گناه کښ ځکه چه سره د قدرت نه په اعراض او په انکار بانديے شرکت کوي په مجلس د گناه کښ - يا مراد ترينه مماثلت دے په کفر کښ په دے شرط چه رضا شي د هغوي په کفر کولو او استهزاء کولو بانديے ځکه چه رضا په کفر د غير بانديے کفر دے چه هغه جائز او مستحسن گنړي -

سوال :- دا خطاب خو منافقانو ته دے او هغوي خو هسے هم کافران دي که د کافرانو سره مجلس کښ شريک شي او که نه ؟

جواب :- دلته مماثلت ثابت شو په ښکاره کولو د کفر کښ ځکه چه د دوي کفر عامو خلقو ته معلوم نه وو - قرطبي وئيلي دي چه څوک په مجلس د گناه کښ کيني او په هغوي بانديے انکار او نه کړي نو په هغه گناه کښ دے برابر شريک دے او د ضحاک نه نقل دے چه داخل دي په دے آيت کښ هر هغه څوک چه احداث کوي او بدعت جوړوي په دين کښ تر قيامته پورے - او قرطبي او آلوسي د عمر بن عبد العزيز روايت ذکر کړے دے چه هغه روژه دار شخص وهلے وو چه د شرابيانو سره په مجلس کښ ناست وو او عمر بن عبد العزيز دا آيت په دليل کښ پيش کړے وو.

إِنَّ اللَّهَ جَامِعُ الْمُنَافِقِينَ وَالْكَافِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ، دا بيان دے د مماثلت په شرکت سره په سزا کښ - او مراد د مُنَافِقِينَ نه جنس

الَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ ۚ فَاِنْ

او دا هغه کسان دي چه انتظار کوي ستاسو په باره کښې نو که

كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ اللّٰهِ

وي ستاسو دپاره بريے د الله تعالىٰ د طرف نه

قَالُوْٓا اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ۖ

نو دوي وائي آيا نه وو موږ ستاسو ملګري ؟

وَاِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ ۙ

او که وي کافرانو لره څه برخه

قَالُوْٓا اَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ

وائي دوي او نه شو موږ زور آور کيدلے ستاسو باندے (که د مؤمنانو سره ملګرے وو)

وَنَمْنَعْكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ

او آيا نه يو بچ کړي موږ تاسو لره د مؤمنانو نه،

فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ

پس الله تعالىٰ به فيصله اوکړي په مينځ ستاسو کښې په ورځ

الْقِيٰمَةِ ؕ وَلَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ

د قيامت او هيچرے نه ده ورکړے الله تعالىٰ

منافقان دي او مخاطبين منافقان په هغوي کښې داخل دي۔ او دا سزا د جنس د عمل ده يعني په دنيا کښې د جمع کيدلو په مجلس کښې د هغے سزا په جمع کيدل وي په قيامت کښې په عذاب کښې۔

لِلْكٰفِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا ﴿۱۴۱﴾ ع ۲۰/۱۷

| کافرانو لره | په | مؤمنانو باندے | لار (غلبه). |
|---|---|---|---|

۱۴۱:- په دے آیت کښ هم زجر دے منافقانو ته او دَ هغوی دوه صفات قبیحه ذکر کوی.

اَلَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ، تَرَبُّص، انتظار کولو ته وئیلے شی او مفعول ئے پټ دے (الدوائر) دَ حادثاتو په باره کښ (دَ راتلونکی حالاتو)

فَاِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ، فاء، دَ پاره دَ تفصیل دَ حالاتو ده اول حال فتح دَ مسلمانانو ده.

مِنَ اللّٰهِ، دا قید دَ پاره دَ عظمت شان دَ فتح دے او اشاره ده چه فتح احسان دَ الله تعالیٰ دے.

قَالُوْٓا اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ، مقصد دَ دے پټ دے یعنی مونږ له په غنیمت کښ حصه راکړئ (قرطبی، ابوحیان) سبب ذکر دے او مراد ترینه مسبب دے.

وَاِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ، دا دویم حال دے - دیته نصیب اُوئیل ځکه چه دا یو تقدیری دنیوی حصه ده دَ کافرانو دَ پاره او دَ دے حصے دَ ذلت دَ وجے من الله ورسره او ته وئیل - ځکه چه په حدیث کښ وارد دی چه (اَلْحَرْبُ سِجَالٌ) جنګ خو بوقے دی.

قَالُوْٓا اَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ، دا قول دَ دوی کافرانو ته خطاب دے په هغوی باندے احسان کوی. استحواذ غلبه او احاطے ته وئیلے شی لکه په سوره مجادله ۱۹ کښ دی یعنی آیا مونږ په تاسو نه شو غالب کیدلے چه تاسو مو قتل کړے وئ یا قید کړے وئ په ملګرتیا دَ مؤمنانو کښ او استفهام تقریری دے او په دیکښ تقدیر دَ عبارت دے (وَ اَبْقَيْنَا عَلَيْكُمْ) مونږ په تاسو باندے ترس او رحم اوکړو.

وَ نَمْنَعْكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ، مراد دَ مَنْع نه بچ کول دی

دَ غلبې دَ مؤمنانو نه يعنې مونږ. يچ كړې تاسو دَ غالب كيدلو دَ مؤمنانو نه په تاسو په دے وجه چه مونږ دَ هغوی ملګرتيا پريخودله ستاسو په مقابله كښې او په ديكښې هم مقصد دَ دوی طلب دَ برخې دَ مال دے دَ هغوی نه په ذكر دَ سبب سره او مراد تربته مسبب دے - او په ديكښې بل قول دا دے چه منع كړے وے مونږ تاسو دَ اتباع دَ مؤمنانو نه او دَ قبوليت دَ دين دَ هغوی نه دا خو زمونږ احسان دے په تاسو باندے.

فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ، يعنې دنيا كښې عصمت دَ وينو او مالونو تاسو ټولو (مؤمنانو او منافقانو) ته شامل دے ليكن فيصله به ستاسو جدا جدا په قيامت كښې كيږى. بَيْنَكُمْ خطاب دے ټولو مؤمنانو او منافقانو او كافرانو ته يا بل جانب پټ دے يعنې بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ.

وَلَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكٰفِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا ، په دے كښې دوه اقوال دی دَ مفسرينو اول چه دَ علی او ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دے چه دا حكم په آخرت كښې دے په قرينه دَ مخكښې جملے سره او په دے وجه چه په دنيا كښې كله كله كافران غالب شی په مؤمنانو باندے په دليل دَ وَاِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ سره او دا قول ابن عطيه ټولو مفسرينو ته نسبت كړے دے اګرچه صحيح نه دے - دويم قول دَ سدی وغيره نه نقل دے چه دا په دنيا كښې دے او مراد دَ سبيل نه دا سے غلبه ده چه په هغے سره دولت دَ مسلمانانو او آثارو دَ هغوی بالكل ختم شی ځكه چه په حديث دَ مسلم كښې راغلی دی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم دَ الله تعالیٰ نه دعا اوكړه دَ امت په باره كښې چه يا الله په دوی باندے عام قحط مه راولے چه ټول هلاک شی (نو دا دعا قبوله شوه) او يا الله په دوی باندے دشمن دَ بهر دَ دوی نه دا سے مه غالب كوې چه دَ دوی ميدان بالكل ټول مباح او ختم كړی (نو دا دعا قبوله شوه) -

إِنَّ الْمُنَافِقِينَ يُخَادِعُونَ اللَّهَ
یقیناً منافقان دهوکه کوي د الله تعالیٰ سره
وَهُوَ خَادِعُهُمْ ۚ وَإِذَا قَامُوا
او هغه دهوکے ورکوي دوي لره او کله چه اودریږي
إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَىٰ
مانځه ته نو اودریږي ناراست
يُرَاءُونَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ
خودنه کوي خلقو ته او نه یادوي
اللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا (۱۴۲)
الله تعالیٰ لره مګر لږ۔

دریم قول ابن عربی غوره کړیدے چه دا کلام مقید دے په یو قید سره یعنی لَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا (منه) د طرف خپل نه مګرچه دوي په باطل باندے یو بل ته وصیت کوي او د منکراتو نه منع نه کوي او توبه نه کوي نو دشمن به په دوي باندے د دوي د عملونو د وجے نه غالب او مسلط شي۔

څلورم قول چه سبیل نه مراد حجت شرعیه او عقلیه دے یعنی په دلیل او حجت کښ باطل په حق باندے نشي غالب کیدلے۔ او علماؤ د دے آیت نه استدلال کړے دے چه ولایت د کافر په مسلمانانو باندے نه صحیح کیږي۔ ولی او متولی او مالک نشي کیدے او شهادت د کافرانو په مسلمانانو باندے نه صحیح کیږي۔

۱۴۲: په دے کښ هم زجر دے منافقانو ته او د هغوي صفاتِ قبیحه ذکر کوي۔

إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ ، تفسير دَ خداع په سوره بقره كښ
تير شوے دے او مخادعه دَ الله تعالىٰ سره دَ دوى په گمان كښ ده
يا تريته مخادعه دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مراد ده۔
او دَ مؤمنانو ذكر يے دلته او نكړو ځكه دَ هغوى سره معامله دَ
دهوكے په مخكښ آيت كښ ذكر شوه۔

وَهُوَ خَادِعُهُمْ ، دا په ظاهرى معنىٰ باندے حمل دے ليكن صفت
دَ الله تعالىٰ مشابه نه دے دَ صفت دَ مخلوق سره او دا په دنيا
كښ داسے ده چه دَ دوى دَ وينو او مالونو عصمت يے په دنيا كښ
كړيدے دَ وجے دَ ظاهرى ايمان نه او په آخرت كښ به ورله
عذاب دَ كافرانو پشان وركوى۔ او دا رنگ په آخرت كښ به
ورله يو ساعت نور وركړى نو بيا يے تريته مر كړى۔

وَإِذَا قَامُوْٓا إِلَى الصَّلٰوةِ قَامُوْا كُسَالٰى ، كسل ناراستيا او دروند
والى نه وئيلے شي۔ او وجه دَ دے دا ده چه دوى اراده دَ ثواب
نه لرى او په پريخودلو سره ويره دَ عذاب نه لرى (قرطبى)
او ابن كثير وئيلى دى چه دَ دوى نيت او ايمان په مونځ كولو
باندے نشته او نه په زړه كښ خشيت شته او نه په معنىٰ دَ
مونځ باندے پوهيږى او په ديكښ تحذير دے مؤمنانو
لره چه دوى دَ مونځ له په داسے حالت كښ نه او دريږى بلكه
بنه په خوشحالئ او په فراغ دَ زړه سره دِ اودريږى۔ او
ابو حيان وئيلى دى چه دَ خپلے زمانے دَ فلسفيانو په باره كښ
وئيلى دى۔ فَيَاْتُوْنَ الْمَنَاكِرَ فِىْ نِشَاطٍ۔ وَيَاْتُوْنَ الصَّلٰوةَ وَهُمْ كُسَالٰى
(راځى دوى بد كارونو ته په خوشحالئ او راځى مانځه ته په ناراستئ سره)

يُرَآءُوْنَ النَّاسَ ، مخكښ ظاهرى صفت وو او دا يے باطنى
قباحت دے او دا جمله حال دے يعنى سره دَ سستئ نه ريا
هم كوى قرطبى دَ ابن عربى نه نقل كړيدى چه ريا دا ده
چه مونځ ښكاره كوى خلقو ته دَ دے دَ پاره چه هغوى ښكار
كړى او خوراک تريته اوكړى۔

يُرَآءُوْنَ باب مفاعله دَ تاکید دَپاره ده یعنی دوی په مونځ کولو سره صرف دا ښکاره کوی چه موږ مسلمانان یو او دا رنګ په هرعمل دَخیرکښې دَ دوی ریا مقصد ده۔

وَلَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ اِلَّا قَلِيْلًا ، په دیکښې دوه توجیه دي، اول دا چه په مونځ کښې ذکر په قلت سره کوی قراءت او تسبیح پکښې نه کوی صرف الله اکبر وائی (قرطبی)۔
دویمه وجه دا ده چه بغیر دَ مونځ نه هم ذکر قلیل کوی او قلت دوه قسمه دے یو قلت په اعتبار دَ مقدار سره دے هغه دلته مراد نه دے ځکه بعضې منافقان ډیر ذکر کوی او هزار تسبیح پۀ لاس کښې نیولې وی بل قلت په اعتبار دَ کیفیت سره دے یعنی اګرچه په مقدار کښې ډیر وی لیکن اخلاص پکښې نه وی - په غفلت دَ زړه سره وی - په معنیٰ باندے نه پوهیږی - ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے که ذکر دَ دوی دَ الله تعالیٰ دَپاره وے (یعنی اخلاص) نو ډیر به وے دا رنګ ذکر دَ دوی دَ دنیا په غرض سره دے او دنیا خو متاع قلیل دے (ابوحیان)۔

# تَجِدَ لَهٗ سَبِيۡلًا (۱۴۳)

او په نه مومې هغه لره لار -

۱۴۳ :- په دېکښې هم صفات دَ منافقانو ذکر کوي -
مُذَبۡذَبِيۡنَ ، دا حال دے دَ ضمير دَ يراءُون يا ينکرون نه -
ذبذبۃ په اصل کښې آواز دَ حرکت دَ هغه څيز دے چه زوړند وي (راغب) - او دفع کول دي هر طرف نه نو منافقين هم دَ طرف دَ مؤمنانو نه دفع (شړلے) کيږي چه دوي زمونږ ملګري نه دي او هم دَ طرف دَ کافرانو نه چه دوي زمونږ ملګري نه دي نو په دے وجے سره حيران او متردد دي -
بَيۡنَ ذٰلِكَ ، دا اشاره ايمان او کفر ته او حديث کښې راغلي دي چه مثال دَ منافق پشان دَ بيزے دے چه وارخطا وړے وي او په مينځ دَ دوه کنړکونو کښې وي کله يو کنړک ته ځي دَ خپل شهوت دَ پوره کولو دَ پاره او کله بل ته -
لَآ اِلٰى هٰٓؤُلَآءِ وَ لَآ اِلٰى هٰٓؤُلَآءِ ، متعلق دَ اِلٰى پټ دے منسوبين يعني نه ئے مؤمنانو ته نسبت کيدے شي او نه کافرانو ته او فرق دَ اولے جملے او دَ دويمے جملے دا دے چه په اول کښې دَ دوي لازمي صفت دے يعني دَ دوي په خپله متردد او حيران دي او دويمه جمله کښې مطلب دا دے چه نور خلق هم دَ دوي په نسبت کولو کښې حيران دي يعني دَ مؤمنانو پشان اخلاص پکښې نشته او دَ کافرانو پشان کفر هم نه ښکاره کوي -
وَمَنۡ يُّضۡلِلِ اللّٰهُ فَلَنۡ تَجِدَ لَهٗ سَبِيۡلًا ، دَ دے دوه معانے دي اول دا چه نه به دَ هغه دَ هدايت دَ پاره لار او نه مومے - دويم دا چه نه به او نه مومے هغه لره په لار دَ هدايت بانديے يعني دے به په هدايت باندے هيچرے روان نه شي -

۱۴۴ ربط له :- هر کله چه صفت دَ منافقانو ذکر شو چه دوی دَ کافرانو سره دوستانه کوی نو اوس مؤمنانو لره دَ دے صفت نه منع کوی۔

ربط ۲ :- هر کله چه دَ منافقانو صفات قبیحه ذکر شول نو اوس مؤمنانو لره دَ منافقانو دَ دوستانے نه منع کوی۔

---

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ،

په دے کښ دوه اقوال دی۔

اول قول دا دے چه مراد دَ الْكٰفِرِيْنَ نه ښکاره کافران دی۔

او دویم قول دا دے چه مراد دَ دے نه منافقان دی ځکه چه مخکښې صفات علامات دی دَ دوی دَ کفر نو کافران ئے ورته اوئیل۔

---

اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ، دَ دواړو اقوالو باندے خطاب مؤمنانو مخلصانو ته دے نو بناء په اول قول باندے مراد دَ علیکم نه علی نفاقکم دے او بناء په دویم قول باندے مراد دَ علیکم نه عَلٰی عَدَاوَتِكُمْ دے۔ سُلْطٰن ، په معنیٰ دَ برهان سره مذکر دے۔

إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ
يقيناً منافقان په طبقه (ځاى) 
الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ ۚ وَلَن
لاندې د اور کښ په وى او هيچرې
تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا ﴿١٤٥﴾ إِلَّا
او به نه مومې هغوى لره مددګار - مګر
الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا
هغه کسان چه توبه يې اوکړه (د نفاق نه) او نيک عمل يې کوو

۱۴۵:- په ديکښ تخويف اخروى دے د پاره د منافقانو۔
إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ، دَرْك نه مراد طبقه ده او مفسرينو ليکلى دى چه د جهنم اووه طبقات دى. بعضے د بعضو د لاندے دى۔
اول جهنم، دويمه لظى، دريمه حطمه، څلورمه سعير، پنځمه سقر، شپږمه جحيم، اوومه هاويه او د ټولو نه په نار سره هم تعبير کيدلے شى د دے بعضے بيان په تفسير د سورۂ حجر کښ هم انشاء الله راځى او دے ته درکات وئيلے شى ځکه چه په يو بل د پاسه وى - او منافقان ځکه سخت عذاب والا دى چه دوى د کفر سره استهزاء په اسلام او خداع او نور صفات قبيحه يوځائے کړى دى - او هر کله چه منافقانو کفر پټ ذکے تو دا رنګ د ده د عذاب د پاره هم ډير پټ ځائے دے تو جزاء د جنس د عمل نه ده۔
وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا، هيڅ کوونکے د عذاب نه يا آسانوونکے د هغے -

وَاعْتَصَمُوْا بِاللّٰهِ وَاَخْلَصُوْا

او کلک یې اونیوو (دین) دَ الله تعالیٰ او اخلاص یې او کړو

دِيْنَهُمْ لِلّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ

دَ دین خپل خاص الله تعالیٰ لره نو دغه خلق دَ

الْمُؤْمِنِيْنَ ط وَسَوْفَ يُؤْتِ اللّٰهُ

مؤمنانو (دَ ډلې) نه دي او زر دے چه ورېه کړي الله تعالیٰ

الْمُؤْمِنِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۴۶﴾

مؤمنانو لره ثواب لوے۔

۱۴۶:۔ په دے آیت کښې ترغیب دے منافقانو ته دَ توبے کولو۔ او دَ هغې څلور شرطونه ذکر کړي دي هر کله چه منافقان موصوف وو په داسې صفتونو سره چه نقیض (مقابل) دي دَ دے شرطونو چه هغه کفر او فساد دَ اعمالو او دوستانه دَ کافرانو او په هغوي سره عزت حاصلول او ریاء او سمعت کول دي نو شرط دَ ایمان مقابل دے دَکفر سره او دَ هغې نه تعبیر کړے دے په

اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا، سره یعنی توبه او کړي دَکفر او نفاق نه نو هغه صحیح ایمان دے۔

وَاَصْلَحُوْا، دا مقابل دے دَ اعمالو فاسدو دَ دوي۔

وَاعْتَصَمُوْا بِاللّٰهِ، دا مقابل دے دَ دوستانے او عزت حاصلولو په کافرانو سره او مراد دَ دینه اعتماد کول په کتاب دَ الله تعالیٰ او په ثواب دَ هغه۔

وَاَخْلَصُوْا دِيْنَهُمْ لِلّٰهِ، دا مقابل دے دَ صفت دَ ریاء او سمعت۔

فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ، یعنی روستو دَ حصول دَ دے صفاتو نه به دوي دَ مؤمنانو سره په دنیا او آخرت کښې شمارېږي۔

# مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ بِعَذَابِكُمْ

ځه كوى الله تعالىٰ په عذاب ستاسو

# اِنْ شَكَرْتُمْ وَاٰمَنْتُمْ ط وَكَانَ

كه توبه اوكړئ تاسو او ايمان راوړئ او دے

# اللّٰهُ شَاكِرًا عَلِيْمًا ﴿١٤٧﴾

الله تعالىٰ شكر قبولوونكے او پوهه په هر څه باندے.

اګرچه دوى مؤمنان دى ليكن په مع سره ئے ذكر كړل اشاره ده زيات نفرت كولو ته هغه صفتونو د نفاق نه چه دوى په هغے باندے متلبس وو او فراء وئيلى دى چه مع په معنىٰ د مِنْ سره دے.

وَسَوْفَ يُؤْتِ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا، لفظ د سَوْفَ اشاره ده انتظار كولو د جنت ته. الْمُؤْمِنِيْنَ، ئے اوئيل ضمير ئے راجع نكړو اشاره ده چه مخكښ نه منافق وى توبه اوباسى يا د ابتداء نه مؤمن وى دواړو ته شامل دے او اَجْرًا عَظِيْمًا، كنايه ده د جنت نه.

۱۴۷:- په دے آيت كښ ترغيب دے توبه كولو ته او ذكر د دفع عذاب دے.

مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ بِعَذَابِكُمْ، خطاب دے منافقانو ته، مَا استفهاميه دے د پاره د انكار بعضے علماؤ وئيلى دى چه مَا نافيه دے او مقصد د جملے دا دے چه يو شخص چاله عذاب وركوى نو خپله غصه سړوى يا په هغے سره بدله اخلى يا په ځان له نفع حاصلوى يا په ځان نه ضرر دفع كوى. او الله تعالىٰ په دے خيزونو كښ هيڅ يو ته محتاج نه دے بلكه دا عذاب (چه په اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِى الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ مِنَ النَّارِ) كښ ذكر دے ستاسو د كفر د وجے نه دے نو شكر اوكړئ او ايمان

راوړئ نو عذاب په درته دفع شي ۔ اِنْ شَكَرْتُمْ وَاٰمَنْتُمْ ،
سوال :۔ ايمان خو مخکښ دے دَ شکر نه نو دلته ئے ولے روستو ذکر کړو ؟

جواب ۱ :۔ مراد دَ شکر نه شکر اجمالي دے يعني په زړه کښ دَ منعم پيژندل او دا سبب اوګرځي دَ پاره دَ ايمان او سبب مخکښ وی په مسبب باندے ۔

جواب ۲ :۔ مراد دَ شکر نه هغه توبه ده چه په مخکښ آيت کښ سره دَ شرطونو ذکر شوه او توبه مخکښ وی په ايمان باندے او مراد دَ ايمان نه هغه ايمان دے چه په هغے کښ اعتصام باﷲ او اخلاص وی ۔

وَكَانَ اللّٰهُ شَاكِرًا عَلِيْمًا ، شَاكِرًا ، په بغير دَ مبالغے نه ذکر کړو اشاره ده چه الله تعالیٰ لږ عمل هم په شرطونو سره قبلوی او په هغے باندے ډير ثوابونه ورکوی ۔ عَلِيْمًا ، عالم دے په شکر او ايمان باندے نو دَ هغے مطابق جزاء ورکوی ۔

۱۴۸:۔ ربط له :۔ هر کله چه د منافقانو قبائح او مظالم په مقابله د مؤمنانو کښ ذکر شول نو اوس رخصت (اجازت) ذکر کوي مؤمنانو ته د هغوي د صفات قبیحه ذکر کولو او هغوي ته بد دعا کول۔
ربط ۲ له :۔ هر کله چه په منافقانو باندے زجرونه ذکر شول نو هغوي عذر پیش کړو چه موږ کلمات د کفر او د کافرانو سره ولایت د وجے د مجبوریٔ نه کوو نو په دے آیت کښ په هغوي باندے رد کوي چه تاسو خو هیڅ مجبور نه یئ مجبوري خو په حال د اکراه کښ راځي او په تاسو باندے اکراه نشته دے۔

لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ، بناء په اول ربط سره مراد د جَهْرَ بِالسُّوْٓءِ نه اظهار د قبائحو د یو شخص دے او من ظلم نه مراد هغه څوک دے چه هغه د هغه شخص د ضررونو او د کینونو (مکرونو) نه ډیر مجبور شي نو اظهار اوکړي دا رنګ د جهر بالسوء نه دعاء شر (خیرے) کول مراد دي او مراد د مَنْ ظُلِمَ نه هغه شخص دے چه په هغه باندے د هغه شخص د طرف نه (منافق وي او که فاسق) وي ظلمونه ډیر اوشي او دے مظلوم شي نو مظلوم د پاره خیرے کول جائز دي۔ او د ابن المستنير او قطرب په نیز باندے د جهر بالسوء نه مراد کلمه د کفر په ژبه باندے وئیل دي او د من ظلم نه مراد هغه څوک دي چه په هغه باندے اکراه ملجئه

اِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ

که ښکاره کوئ نیکئ یا پټوئ

اَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْٓءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ

یا معافی کوئ دَ بدئ نه نو یقیناً الله تعالیٰ

كَانَ عَفُوًّا قَدِيْرًا ﴿١٤٩﴾

دے معافی کوونکے قدرت لرونکے۔

(زور مجبور وونکے) اوشی لکه چه په سورة نحل ۱۰۶ کښ ذکر دے او دَ مجاهد نه روایت دے چه دا آیت په باره دَ هغه چا کښ دے چه یو صحراء کښ دَ چا میلمه شی او هغه شخص ورله میلمستیا ورنه کړی۔

وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيعًا عَلِيمًا، آوریدونکے دے دَعا دَ مظلوم لره په ظلم دَ ظالم باندے ۔ یا دا تحذیر دے مظلوم او مکره ته چه دَ حق او دَ حد نه تجاوز مه کوه۔

۱۴۹:۔ دا هم ذکر دَ آدب دے متعلق دَ مخکښ رخصت (اجازت) سره۔

اِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ، یعنی مظلوم که په مقابله دَجهر بالسوء (دعاء شر) کښ په ذکر دَ خیر باندے اکتفاء اوکړی دَ هغه ظالم سره ښکاره یا پټه نیکی اوکړی ښه اخلاق ورسره اوچلوی لکه صبر او حلم یا دُعاء دَ هدایت ورته اوکړی۔ دا رنګ مکره په حالت دَ اکراه کښ کلمه دَ توحید ښکاره یا په پټه وائی او په عزیمت باندے عمل کوی نو اجر به ئے کیږی۔

اَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْٓءٍ، یعنی که دَ خیر اظهار یا اخفاء نه کوی بلکه صرف دَ ظالم دَ بدئ نه معافے اوکړی او چپ شی نو اوله اوچته درجه ده او عفو دَ سوء نه دویمه درجه ده یا مکره شخص ابداء دَ کلمے دَ توحید نه کوی بلکه دَ کلمے دَ کفر نه

إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللَّهِ

يقيناً هغه كسان چه كفر كوي په الله تعالیٰ

وَرُسُلِهِ وَيُرِيدُونَ أَن يُفَرِّقُوا

او په رسولانو دَ هغه او اراده لري چه جدا والے اوكړي

بَيْنَ اللَّهِ وَرُسُلِهِ وَيَقُولُونَ

په مينځ (دَ حكم) دَ الله تعالیٰ او (دَ حكم) دَ رسولانو كښ او دوي وائي

نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَنَكْفُرُ

مونږ ايمان لرو په بعضو باندے او كفر كوو

بِبَعْضٍ وَيُرِيدُونَ أَن يَتَّخِذُوا

په بعضو او غواړي چه جوړه كړي

بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ﴿١٥٠﴾

په مينځ دَ دے كښ بله لاره -

چپ پاتے شي نو دا هم دريمه درجه ده -

فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيرًا ، په ديكښ ترغيب دے مظلوم ته په معافئ وركولو سره يعنې الله تعالیٰ سره دَ قدرت ته معافي كوي نو اے مظلوم ته خو عاجز يے نو ته ولے معافي نه كوے -

دا رنګ په ديكښ تسلي ده مكره ته كه هغه كلمه دَ كفر په وخت دَ اكراه كښ (دَ وجے دَ رخصت نه) اوائي نو الله تعالیٰ به ورته معافي كوي او په اكراه كوونكي باندے الله تعالیٰ قادر دے چه هغه له به سزا وركړي.

ف۱۵۱: خلاصه :- دَ دے آيت نه دويم باب دے تر ۱۶۹ پورے او په ديكښ بحث دَ يهوديانو دے - زجرونه په منكرينو اهل كتاب باندے او جواب دَ يو سوال دَ هغوي دے چه په

۱۵۳ کښې دے اول الزامي جواب په ذکر د پنځویشت قبائح د هغوی سره او په هغې کښې بعضے اسباب د تحریم الطیبات دی او بیا بشارت دے صالحینو اهل کتابو ته۔ او بیا تحقیقي جواب دے په ۱۶۳، ۱۶۴ کښې سره د ذکر د حکم د ارسال رسل نه په ۱۶۵ کښې۔ بیا ذکر د شهادت د الله تعالیٰ او ملائکو دے په صدق د قرآن باندے ۱۶۶ کښې او په آخر کښې تخویف اخروی دے۔

ربط:۔ هر کله چه احوال د منافقانو مخکښې بیان کړل نو یهودیان او منافقان په ډیر قبائحو کښې مشابه دی نو اوس ذکر د قبائحو د یهودیانو کوی۔

اِنَّ الَّذِیۡنَ یَکۡفُرُوۡنَ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ، یعنی ایمان د دوی ایمان شرعي (پشان د صحابه کرامو) نه دے او په بعضے رسولانو باندے کفر کول پشان د کفر دے په ټولو رسولانو باندے۔

وَیُرِیۡدُوۡنَ اَنۡ یُّفَرِّقُوۡا بَیۡنَ اللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ، او دا فرق د دوی ئې په طریقه د اراده سره ذکر کړه یعنی د ژبے دعوی ئې دا ده چه مونږ په الله تعالیٰ باندے ایمان لرو لیکن ټول رسولان د هغه نه منو او په مخکښې جمله (یکفرون بالله) کښې د دوی حقیقت ئې ذکر کړے دے چه ایمان د دوی په الله تعالیٰ باندے هم ایمان شرعي نه دے۔ او په دے جمله کښې دا هم داخل دے چه څوک وائی چه د الله تعالیٰ کتاب باندے ایمان لرم لیکن د رسول احادیث نه منم دا هم فرق کول دی په مینځ د الله تعالیٰ او د رسولانو د هغه کښې۔

تنبیه:۔ مراد د تفریق نه تفریق دے په ایمان بالله او بالرسل کښې تفریق د ذاتونو مراد نه دے ځکه چه په یقیني دلیلونو سره معلومه ده چه د الله تعالیٰ ذات جدا دے او د رسولانو ذوات جدا دی۔

وَیَقُوۡلُوۡنَ نُؤۡمِنُ بِبَعۡضٍ وَّنَکۡفُرُ بِبَعۡضٍ ، یعنی یهودیان وائی مونږ ابراهیم او اسحاق او موسیٰ علیهم السلام باندے ایمان

أُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ حَقًّا ۚ

| دغه كسان | دوى | كافران دى | يقينًا |
|---|---|---|---|

وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا

| او | تيار كړى دے موږ | كافرانو لره | عذاب |
|---|---|---|---|

مُّهِينًا ﴿۱۵۱﴾

| شرموونكے. |
|---|

راوړو. او اسماعيل، عيسىٰ او محمد صلى الله عليه وسلم نه منى دا رنګ نصارٰى عيسىٰ عليه السلام منى او محمد صلى الله عليه وسلم نه منى.

وَيُرِيدُونَ أَن يَتَّخِذُوا بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ، ذَٰلِكَ ، اشاره ده ايمان راوړل په ټولو او كفر كول په ټولو باندے په تاويل د مذكور سره. او دا واسطه نيول دى په مينځ د ايمان او كفر كښ او حال دا چه په مينځ د ايمان او كفر كښ واسطه نشته دے (ابوحيان). په دے آيت كښ د دوى څلور صفات قبيحه ذكر كړے شول.

۱۵۱ :. دا خبر دے د ان د پاره. يا خبر د حذف پټ دے (جَمَعُوا الْمَخَازِيَ) دوى شرمندګى جمع كړے دى. او دا روستو قول غوره دے ځكه چه دا مستقل آيت دے او په يكښ د دوى بل صفت قبيحه دے.

أُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ حَقًّا ، يعنى په غير د شك نه نو مراد د حق نه مقابل د باطل نه دے ځكه چه كفر خو حق نشي كيدلے نو مقصد دا دے چه كفر د دے كتابيانو يقينى ثابت دے.

وَأَعْتَدْنَا ، دا تخويف دے ټولو كافرانو ته او دوى پكښ داخل دى.

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ

او هغه کسان چه ایمان ئې راؤړیدے په الله تعالی او په رسولانو دَ هغه

وَلَمْ يُفَرِّقُوْا بَيْنَ اَحَدٍ

او جدائی نه ده کړے دوی په مینځ دَ هیڅ یو کښ

مِّنْهُمْ اُولٰٓئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيْهِمْ

دَ دوی نه دغه کسان زر دے ورله کړی الله تعالی دوی ته

اُجُوْرَهُمْ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا

ثوابونه دَ دوی او دے الله تعالی بخونکے

رَّحِيْمًا ع ﴿١٥٢﴾

رحم کوونکے۔

٢١ ع ١١ ١

١٥٢ :- دا بشارت دے عمومًا - او مؤمنان دَ کتابیانو پکښ داخل دی خصوصًا -

وَلَمْ يُفَرِّقُوْا بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ، دا مقابل دے دَ مخکښ صفت قبیحه دَ دوی چه وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّفَرِّقُوْا بَيْنَ اللّٰهِ وَرُسُلِهٖ او ورپسے جمله -

اُولٰٓئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ، سَوْفَ، دلته دَ نفس وعدے او دَ تنبیه دَ پاره دے معنیٰ دَ بعد (لرے والے) پکښ مقصود نه ده یعنی دَ دوی اعمال او اجرونه باطل شوے نه دی ځکه چه هیڅ قسم کفر دوی نه دے کړے او نورو گناهونو الله تعالی ورته بخنه کوی -

يَسْئَلُكَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَنْ تُنَزِّلَ

تپوس کوی ستا نه کتابيان چه (په يو ځلے) نازل کړې

عَلَيْهِمْ كِتٰبًا مِّنَ السَّمَآءِ فَقَدْ

په دوی باندے کتاب د آسمان نه پس يقيناً

سَاَلُوْا مُوْسٰىٓ اَكْبَرَ مِنْ ذٰلِكَ

تپوس کړے وو دوی د موسیٰ عليه السلام نه لوے څيز د دے نه

فَقَالُوْٓا اَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً

تو دوی وئيلی وو او ښايه مونږ ته الله تعالیٰ ښکاره

فَاَخَذَتْهُمُ الصّٰعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ۚ

نو اونيو دوی لره تندر په وجه د ظلم د دوی

ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِ

بيا اونيو دوی سخی لره په خدائی سره روسته

مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ فَعَفَوْنَا

د هغه نه چه راغلل دوی ته ښکاره دلائل

عَنْ ذٰلِكَ ۚ وَاٰتَيْنَا مُوْسٰى

او ورکړے وو مونږ موسیٰ عليه السلام

سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴿۱۵۳﴾

ته دليل ښکاره ۔

س۱۵۳ :۔ په دیکښی زجر او ذکر د نورو صفات قبيحه د کتابيانو دے.
يَسْئَلُكَ اَهْلُ الْكِتَابِ ، دا سوال د دوی په طريقه د عناد (تعنت) سره دے او دائے صفت قبيحه دے ۔ اَهْلُ الْكِتٰبِ ،

مراد په دے سره هغه دی چه فرق ئے کوو په مینځ دَ رسولانو کښ لکه چه په ۱۵ کښ تیرشول۔

اَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتٰبًا مِّنَ السَّمَآءِ، یعنی دوی وئیلی وو چه مونږ ته په یوځل دَ آسمان نه داسے کتاب راوړه چه مونږ ئے په سترګو اووینو لکه چه موسٰی علیه السلام او ټولو انبیاؤ په یوځل باندے خپل کتابونه راوړی وو۔ دلته تنزیل په معنیٰ دَ انزال دے (په هیرنازلولو) او داسے سوال مشرکانو امیانو هم کړے دے لکه چه په سوره فرقان ۳۲ کښ دی۔ او دا سوال هرکله چه عنادی وو دَ دے وجے دَ دے اول جواب الزامی دے یعنی په ذکرکولو دَ قباحتو دَ دوی او وروستوجواب تحقیقی ۱۶۳ دے۔

فَقَدْ سَاَلُوْا مُوْسٰٓى اَكْبَرَ مِنْ ذٰلِكَ، فاء سببیه ده مخکښ عبارت پټ دے (چه پرواه مکوه او داخیره لویه مه ګڼړه) ځکه چه دوی دَ موسٰی علیه السلام نه دَ دے نه ډیر غټ سوال کړے وو یعنی دَ دوی مشرانو او دوی هم په دغه سوال باندے رضا وو۔

فَقَالُوْٓا اَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً، فاء دَ پاره دَ تفصیل دَ سوال ده او داسے په سوره بقره ۵۵ کښ تیرشویدے۔

فَاَخَذَتْهُمُ الصّٰعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ، ابن جریج وئیلی دی چه صاعقه په معنیٰ دَ مرګ سره دے او بعضو وئیلی دی چه دا اور دے دَ آسمان نه نازل شوے وو او دَ دے نه روستو لفظ پټ دے یعنی الله تعالیٰ ژوندی کړل په دُعا دَ موسٰی علیه السلام سره (قرطبی) او دا دَ دوی بل قباحت دے۔

بِظُلْمِهِمْ، مراد دَ ظلم نه عنادی سوال کول دی۔

ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ، دا دَ دوی بل قباحت دے البینات نه مراد ښکاره معجزات

وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّوْرَ

او اوچت کړو موږ د دوی د پاسه طور غر

بِمِيْثَاقِهِمْ وَقُلْنَا لَهُمُ

د پاره د وعدې اخستلو د دوی او اوئیل موږ دوی ته

ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا

داخل شئ دروازې ته سجده کوونکي

وَّقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوْا فِي السَّبْتِ

او اوئیل موږ دوی ته چه د حد نه مه تیریږئ په ورځ د خالي کښ

وَّاَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ﴿۱۵۴﴾

او اخستے ده موږ د دوی نه وعده پخه۔

د موسیٰ علیه السلام وو چه په توحید باندې دلالت کوي۔

سوال :- د سورة بقرة د ترتیب نه معلومیږي چه اتخاذ العجل واقعه د واقعې د ارنا الله جهرةً نه وړاندې ده؟

جواب :- دا ثمّ د ترتیب د اخبار د پاره دے د ترتیب واقعي د پاره نه دے (ابوحیان) یعني ثمّ د تعقیب ذکري د پاره دے۔

فَعَفَوْنَا عَنْ ذٰلِكَ ، په سبب د توبې د دوی سره چه په سورة اعراف ۱۴۹ کښ ذکر ده۔

وَاٰتَيْنَا مُوْسٰى سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ، مراد د دینه تورات کتاب دے چه ښکاره حجت دے او سلطان په حجت سره حاصلیږي۔ یا مراد د دینه رعب او هیبت دے لکه چه فرعون باندې د ده رعب پروت وو قتل د هغه ئې نشو کولے او رعب ئې بني اسرائیلو باندې پروت وو چه هغوی ئې دا حکم اومنلو چه اقتلوا انفسکم۔

۱۵۴ :- دا د بني اسرائیلو نور قبائحو ته اشاره ده لیکن تصریح

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ وَكُفْرِهِمْ

نو په سبب د ماتولو د دوی لوظونه خپل او کفر د دوی

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَقَتْلِهِمُ الْاَنْۢبِيَآءَ

په آیاتونو د الله تعالیٰ او وژل د دوی پیغمبران

بِغَيْرِ حَقٍّ وَّقَوْلِهِمْ قُلُوْبُنَا

بغیر د جرم شرعي نه او وینا د دوی چه زړونه زموږ

غُلْفٌ ؕ بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا

د علم لوښي دي، بلکه مهر وهلے دے الله تعالیٰ په هغے

بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا

په سبب د کفر د دوی نو ایمان نه راوړي دوی مګر

قَلِيْلًا ۠ ﴿۱۵۵﴾

لږ

ئے قباحاتو بانلدے نه ده کړے ځکه بِمِيْثَاقِهِمْ، مطلب دا دے چه د دوی نه د عمل د تورات د پاره میثاق واخستلے شو او په وخت د میثاق کښ طور غرئے د دوی د پاسه اوچت کړو لکه چه په سوره بقره ۶۳ کښ ده نو په دے کښ هم د دوی قباحت ته اشاره ده دا رنګ وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا، په دے سره حکم د تبدیل ته اشاره ده. لکه چه په سوره بقره ۵۹ کښ ذکر ده نو دا هم د دوی قباحت ته اشاره ده - دا رنګ

وَقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوْا فِى السَّبْتِ، د دے نهي مخالفت کولو ته اشاره ده چه هغه په سوره بقره ۶۵ کښ او اعراف ۱۶۳ کښ ذکر دے۔

وَاَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا، ابوحیان وئیلی دي چه په دے کښ د دوی هغه میثاق او د هغے مخالفت ته اشاره ده چه په

سورہ العمران ۱۸۳ کښ ذکر دے۔
۱۵۵ :- په دے آیت کښ دَ دوی نور قبائح ذکر کوی او دا قبائح او دَ دے نه روستو دیته اسباب دَ تحریم طیبات هم وئیلے شی په دے آیت کښ دَ هغے نه شپږ ذکر دی۔

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيثَاقَهُمْ، دَ دے په متعلق کښ دوه اقوال دی اول قول دا دے چه دا متعلق دے په روستو ۱۶۰ حرمنا پورے او فبظلم بدل دے بما نقضهم نه دا قول دَ زجاج او زمحشری وغیره دے۔ او دویم قول دا دے چه دَ دے متعلق پټ دے۔ (لعنّاهم یا اذللناهم) دا قول دَ ابن عطیه او ابوحیان وغیره دے۔ او دَ میثاقهم، نه هغه مواثیق مراد دی چه مخکښ آیت کښ ذکر شول هغه دوی تول مات کړیدی۔

وَكُفْرِهِمْ بِآيَاتِ اللَّهِ وَقَتْلِهِمُ الْأَنْبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ، دَ دے تفسیر مخکښ تیر شویدے۔

وَقَوْلِهِمْ قُلُوبُنَا غُلْفٌ، دَ دے تفسیر په سورهٔ بقره ۸۸ کښ ذکر شوے دے۔

بَلْ طَبَعَ اللَّهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ، دا جواب دَ قول دَ دوی دے چه (قلوبنا غلف) یعنی دَ دوی زړونو ته دَ حق دَ نه رسیدلو وجه غلف نه دے بلکه الله تعالیٰ بند کړیدی په مهر وهلو سره او سبب دَ دے طبع کفر دَ دوی دے۔
سوال :- په سورهٔ بقره ۸۸ کښ بَلْ لعنهم الله وئیلی دی او دلته بل طبع ؟
جواب :- هلته مقصد ذکر دَ اسبابو دَ لعنت دے په یهودیانو باندے لکه په ۸۹، ۱۵۹، ۱۶۱ کښ ورے او لعنت دَ الله تعالیٰ دَ خاص رحمتونو نه لرے کیدل دی او دلته مقصد اظهار دَ جهل او دَ ضد دَ هغوی دے په سبب دَ ذکر دَ ډیرو قبائحو سره او لفظ دَ طبع دَ دوی په جهل او عناد باندے ښه دلالت کوی۔

وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلَىٰ مَرْيَمَ

| او په سبب دَ کفر دَ دوی | او جوړول دَ دوی | په مريم باندے |
|---|---|---|

بُهْتَانًا عَظِيمًا ﴿۱۵۶﴾

| بهتانه | لويه . |
|---|---|

فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ، دا سے په سورة نساء ۴۶ کښ تير شوے دى او په قليلاً کښ درے اقوال مشهور دی ۔ ۱ ايماناً قليلاً ، ۲ او زماناً قليلاً ، ۳ او قليلاً مِّنْهُمْ ۔

سوال :- په سورة بقره ۸۸ کښ وئيلى دى فقليلاً ما يؤمنون ؟

جواب :- هلته دَ وجے دَ ذکر دَ لعنت نه ډير تاکيد ذکر کول پکار وو په باره دَ عدم ايمان دَ دوى او په دغه جمله کښ په لفظ دَ ما سره ډير تاکيد دَ قلت او کړے شو نو دے پورے چه دَ بعض مفسرينو په نيز مراد دَ قلت نه هلته عدم ايمان دے (والله اعلم بحكمة)

تر دے آيت پورے دَ دوى هغه قبائح ذکر شول چه دَ زمانے دَ عيسىٰ عليه السلام نه مخکښ وو ۔ اوس هغه ذکر کوى چه په زمانه دَ عيسىٰ عليه السلام کښ وو ۔

۱۵۶ :- په دے کښ دوه قبائح (چه هغه اسباب هم دى) ذکر کړے دى دلته دَ کفر نه مراد کفر کول دى په نبوت دَ عيسىٰ عليه السلام باندے يا انکار دے دَ قدرت دَ الله تعالىٰ نه په پيدا کولو دَ عيسىٰ عليه السلام بغير دَ ناريته (اللباب) ۔

وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلَىٰ مَرْيَمَ بُهْتَانًا عَظِيمًا ، بهتان هغه گناه ته وئيلے شى چه دَ هغے دَ غټوالى او سخت والى نه انسان حيران شى او نکره راوړل او تاکيد په عَظِيمًا سره دَ ډير تاکيد دَ پاره دے هغه بهتان ذکر دے په سورة مريم ۲۷ کښ ۔ صاحب اللباب وئيلى دى چه هر کله الله تعالىٰ طعن دَ يهوديانو په مريم باندے ذکر کړو چه دا بهتان عظيم دے او ذکر کړيدے طعن دَ منافقانو په عائشه رضى الله عنها باندے چه وئيلے دى

وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ

او وینا د دوی چه یقیناً وژلے دے مونږ مسیح

عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ

عیسیٰ (علیه السلام) څوے د مریم رسول د الله تعالیٰ

وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ

او نه دے وژلے دوی هغه او نه ئے په سولئ کړے دے

وَلَٰكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ ۚ وَإِنَّ

لیکن یو شان کړے شو هغه (یو تن د عیسیٰ علیه السلام سره) دوی ته، او یقیناً

الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي

هغه کسان چه اختلاف کړے دے په هغه کښ خامخا په

شَكٍّ مِّنْهُ ۚ مَا لَهُم بِهِ

شک کښ دی د دہ نه نیشته دوی لره په هغے

مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ

څه علم مګر تابعداری کوی د ګمان

وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ﴿١٥٧﴾

او نه دے قتل کړے دوی هغه په رښتیا -

سبحانك هذا بهتان عظیم تو دا دلالت کوی چه روافض (شیعګان) چه طعن کوی په عائشه رضی الله عنها پشان د یهودیانو دی چه طعن کوی په مریم باندے -

١٥٧:- په دے کښ د دوی بل قباحت ذکر کوی او د هغے تردید کوی په ټولو طریقو سره -

اوله طریقه - وَقَوْلِهِمْ ئے او ئیل قتلهم ئے نه دے وئیلے

یعنی دوی دروغ قول کوی په باره دَ قتل دَ عیسیٰ علیه السلام کښ۔
إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ ،
سوال:۔ یهودیان خو دَ هغه دَ رسالت نه منکر دی نوځنګه رسول الله ذکر کړے دے؟
جواب ۱:۔ دا قول دَ دوی په طریقه دَ استهزاء سره دے پشان دَ سورة حجر ۶ او دَ سورة شعراء ۲۷۔
جواب ۲:۔ دا تعریف دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دے دَ پاره دَ تقبیح دَ دوی۔
وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ ، هر کله چه په مینځ دَ قتل او دَ صلب کښ لزوم نشته کله قتل وی بغیر دَ صلب نه نو دَ هغے نفی ئے اوکړله او کله صلب وی بغیر دَ قتل نه ځکه صلب په استعمال کښ دا دے چه یو شخص لره په یو لرګی پورے کلک اوتړی چه حرکت نشی کولے او بیا ئے په نیزه باندے اوهی یا په غشی باندے اولی) نو دَ صلب نفی ئے ځکه اوکړله او دا رنګ یهودیانو او دَ هغوی په تقلید کښ نصاریٰ وو دَ صلب او دَ قتل دواړو دعویٰ کړے ده۔ دَ دے وجے نه قرآن دَ هغے دواړو تردید کړیدے۔
وَلَٰكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ ، تشبیه صیغه دَ مجهول ده دَ شبه نه اخستلے شوے دے او شبه مماثلت دَ شکل نه وئیلے شی او نائب فاعل ئے حذف شویدے۔ او لَهُمْ دَ نائب فاعل په ځائے دے معنیٰ دا چه واقع شو دوی لره مشابهت په شکل دَ عیسیٰ علیه السلام کښ یعنی قتل کړے دے دوی هغه چا لره چه مشابه کړے شوے وو دَ شکل دَ عیسیٰ علیه السلام سره۔ یا شبه دَ اشتباه نه اخستلے شویده او لام په معنیٰ دَ علیٰ دے نو معنیٰ دا ده چه اشتباه اچولے شویده په دوی باندے په باره دَ صلب دَ عیسیٰ علیه السلام کښ یعنی مشرانو دَ یهودیانو چه هر کله عیسیٰ علیه السلام او نه موندلو نو دَ هغه په ځائے ئے بل شخص په صلیب باندے اوخیژولو او چه دَ هغه شکل بدل شو نو دوی عامو خلقو ته اوئیل چه دا عیسیٰ دے چه په صلیب باندے آویزان دے۔

فائده[1]:- ابن جریر دَ وهب نه روایت کړیدے چه عیسٰی علیه السلام دَ اوویشتو حواریونو سره په یو کوټه کښ داخل شو نو یهودیانو دَ هغه کوټې نه احاطه اوکړله نو دوی دننه داخل شول نو عیسٰی علیه السلام خپلو ملګرو نه اوئیل چه څوک جنت غواړی نو یو شخص آواز اوکړو چه زه جنت غواړم نو الله تعالٰی دَ هغه شکل دَ عیسٰی علیه السلام پشان جوړ کړو او عیسٰی علیه السلام نه چت سورے کړے شو هغه یره آسمان ته اوختلو او یهودیانو هغه شخص چه په شکل دَ عیسٰی علیه السلام وو هغه ئے په صلیب بانددے اوخیژولو- او په دے روایت باندے اوله معنٰی دَ شبه دلالت کوی او بل روایت دا دے چه هرکله عیسٰی علیه السلام دوی په کوټه کښ اونه موندلو بیره خیژولے شوے وو نو دوی بل شخص په صلیب باندے اوخیژولو او هغه ته ئے نژدے څوک نه پریخودل هرکله چه دَ هغه شکل بدل شو نو دوی عوامو خلقو ته اوئیل چه دا په صلیب باندے عیسٰی علیه السلام دے نو په عوامو خلقو ئے التباس او اشتباه واچوله - دا روایت دَ دویمے معنٰی سره مناسب دے -

فائده[2]:- په دے مسئله کښ دَ انجیلونو دَ نصارٰی متضاد خبرے او په هغے باندے شردیں او په واقعے دَ القاء شبه باندے دَ دوی اعتراضونه او دَ هغے جوابونه او عبارت دَ انجیل خامس چه دَ دے آیت سره مطابق دے دا قول قاسمی په تفسیر قاسمی کښ په تفصیل سره ذکر کړے دے او دَ هغے په تتمه کښ دَ شیخ الاسلا ابن تیمیه رحمه الله دَ کتاب الفرقان بین الحق والباطل نه پوره تشریح نقل کړے دی هغه اوګورئ -

---

وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ ، یعنی یهودیانو او نصارٰی چه په باره دَ عیسٰی علیه السلام کښ دَ عقیدے اختلاف کړیدے هغوی په شک کښ دی دَ قتل دَ هغه نه - یعنی یهودیانو روستو دَ قتل دَ هغه نه شک اوکړو چه دا عیسٰی علیه السلام دے او

که یو شخص دے بعضو اوئیل چه ځ خو ځ دَ عیسیٰ علیه السّلام دے او باقی بدن دَ هغه نه دے - او هر چه نصارٰی وو نو هغوی روستو دَ عقیدے دَ قتل دَ عیسیٰ علیه السلام نه درے ډلے شوے نسطوریه ، ملکانیه ، یعقوبیه -
نسطوریه اوئیل چه عیسیٰ علیه السلام په اعتبار دَ ناسوتیت سره په صلیب کړے شوے دے او اعتبار دَ لاهوتیت سره ژوندے پاتے دے -
ملکانیه وائی چه قتل او صلیب دَ هغه لاهوتیت ته اورسیدل په احساس او شعور سره نه په مباشرت سره یعنی دَ هغه سره قتل لګیدلے نه دے -
او یعقوبیه وائی چه قتل او صلب واقع شویدی په مسیح علیه السلام چه هغه یو جوهر وو پیدا شویدے دَ دوه جواهرو نه - او دا ټول متضاد او بے معنے اقوال دی -

مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ اِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ، بِهٖ ضمیر راجع دے قتل دَ عیسیٰ علیه السلام ته او الا استثناء منقطع ده ځکه چه ظن غیر دے دَ علم نه معنیٰ یې داده (لکن یتبعون اتباع الظن) -
سوال :- مخکښ اوفرمائیل چه دوی په شک کښې او دلته په اتباع الظن او شک او ظن کښ فرق دے -
جواب :- دَ عربو اصطلاح ده چه په کوم څیز کښ یقین نه وی نو دَ هغے نه کله تعبیر په شک سره کوی او کله په ظن سره (ابوحیان) -

وَمَا قَتَلُوْهُ يَقِيْنًا ، قول دَ جمهورو مفسرینو دا دے چه ه ضمیر راجع دے عیسیٰ علیه السلام ته او یقینًا په ځائے دَ حال کښ دے یعنی مُتَیَقِّنِیْنَ آنه عیسیٰ (په دا سے حال کښ چه دوی یقین کوو چه دا عیسیٰ علیه السلام دے) یا مفعول مطلق دے په موصوف پټ سره یعنی قتلًا یقینًا - او حسن وئیلی دی.

بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ اِلَيْهِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ

بلکه پورته خیژولے دے الله تعالیٰ ځان ته ، او دے الله تعالیٰ

عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿۱۵۸﴾

زور آور حکمتونو والا -

چه یقینًا په معنیٰ دَ حقًا سره دے او فراء بغوی او ابن قتیبه وئیلی دی چه ۂ ضمیر علم ته راجع دے او قتل کنایه ده دَ حصول او دَ احاطے کولو ته -

ن۱۵۸ :- بَلْ ، په دیکښ اضراب دے دَ ما قتلوهُ یعنی هر کله چه دوی قتل کړے نه دے او په صلیب کړے ئے نه دے نو آیا مړ شوے دے په خپل مرګ باندے نو اوئیل چه نه بلکه رَّفَعَهُ اللّٰهُ اِلَيْهِ ، او تفصیل دَ رفع په تفسیر دَ سورة آل عمران ن۵۵ کښ تیر شوے دے -

وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ، په دیکښ جوابات دی دَ دوؤ سوالونو :

سوال ع۱ :- دا چه دَ زمکے او آسمان په مینځ کښ خلا ( بغیر دَ هوا نه ) ده او اکسیجن نشته نور هم اسباب دَ بره وختلو ته وو نو څرنګ عیسیٰ علیه السلام ئے بره اوخیژولو ؟

جواب :- په لفظ دَ عزیزًا سره جواب اوشو -

سوال ع۲ :- دا دے چه آخری رسول محمد صلی الله علیه وسلّم ئے ولے په داسے طریقے سره بره او نه خیژولو ؟

جواب :- اوشو په لفظ دَ حکیمًا سره یعنی دَ هغه دَ قدرت کا مله په مخکښ هیڅ خیز ګران نشته او دَ الله تعالیٰ په هر کار کښ حکمت دے -

وَإِنْ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ إِلَّا
او نیشته هیڅوک د کتاب والو نه مګر
لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ
خامخا ایمان به راوړي په هغه مخکښ د مرګ د هغه نه.
وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ
او په ورځ د قیامت شي به هغه په دوي باندے
شَهِيْدًا (۱۵۹)
ګواهي ورکوونکے.

۱۵۹:- په دیکښ اثبات دے د عدم موت (ژوندن) د عیسٰی علیه السلام.

وَإِنْ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ، په دیکښ دوه اقوال مشهور دي.

اول قول د ابن عباس او حسن او ابومالک وغیرهم دی چه بِهٖ او مَوْتِهٖ ضمیرونه عیسٰی علیه السلام ته راجع دي یعني هرکله چه عیسٰی علیه السلام په آخره زمانه کښ زمکے ته راکوز شي نو په هغه وخت کښ به هر کتابي چه موجود وي (یهودي یا نصراني) هغه به په عیسٰی علیه السلام باندے ایمان راوړي.

دویم قول د عکرمه او مجاهد او ضحاک وغیرهم نه نقل دے چه چه ضمیر بِهٖ عیسٰی علیه السلام ته او ضمیر د مَوْتِهٖ کتابي ته راجع دے یعني هر کتابي یهودي یا نصراني چه کله مرکیږي نو په وخت د مرګ کښ په عیسٰی علیه السلام باندے ایمان راوړي اګرچه دا ایمان ئے پشان د ایمان د فرعون قبول نه دے. لیکن اول قول غوره دے په سبب د حدیث د بخاري چه کتاب البیوع باب قتل الخنزیر او کتاب الانبیاء باب نزول عیسٰی علیه السلام او مسلم په کتاب الایمان باب نزول عیسٰی علیه السلام کښ راوړیدے چه د ابوهریرة رضی الله عنه

فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا

نو په سبب د ظلم کولو د یهودیانو

حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبٰتٍ اُحِلَّتْ

حرام کړي دي مونږ په دوی باندې مزیدار خیزونه چه حلال شوي وو

لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

دوی لره او په سبب د منع کولو د دوی د لارې د الله تعالیٰ نه

كَثِيْرًا ﴿١٦٠﴾

ډیر خلقو لره۔

روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه نزدے دہ چه عیسیٰ علیه السلام به په تاسو کښې راکوز شي فیصلے کوونکے انصاف کوونکے صلیب به مات کړي او خنزیر به قتل کړي او جزیه به ختمه کړي او مالونه به ډیر شي تر دے پورے چه هیڅوک به ئے نه قبلوي او دجال به قتل کړي او زمکه کښې به څلویښت کاله آباد وي بیا به وفات شي او مسلمانان به د هغه جنازه اوکړي۔ او ابوهریره رضی الله عنه دا آیت اولوستلو او درے کرته ئے عاده اوکړه۔
او دویم دلیل مذکوره والي او قول دا ورپسے جمله دہ۔
وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا، ضمیر د یکون عیسیٰ علیه السلام ته راجع دے او تفصیل د شهادت په سوره مائده ۱۱۷ کښې ذکر دے۔ او په دے آیت کښې د عکرمه نه دریم قول نقل دے چه په ضمیر محمد صلی الله علیه وسلم ته راجع یا الله تعالیٰ ته او مَوْتِهٖ ضمیر کتابي ته راجع دے۔
۱۶۰:- په دے آیا تو نو کښې د یهودیانو هغه قبائح ذکر کوي چه د قرآن د نزول په وخت کښې په دوی کښې پیدا شوي وو او دا هم اسباب د تحریم طیبات دي د دے وجے نه بآء سببیه یکښې وایس راوړي دہ۔

وَ اَخۡذِهِمُ الرِّبٰوا وَقَدۡ نُهُوۡا

او په سبب د اخستلو د دوی سود او یقیناً دوی منع کړے شوی وو

عَنۡهُ وَ اَکۡلِهِمۡ اَمۡوَالَ النَّاسِ

د هغې نه او خوړل د دوی مالونو د خلقو لره

بِالۡبَاطِلِ ؕ وَ اَعۡتَدۡنَا لِلۡکٰفِرِیۡنَ

په ناروا ، او تیار کړیدے موږ کافرانو لره

مِنۡهُمۡ عَذَابًا اَلِیۡمًا ﴿۱۶۱﴾

د دوی نه عذاب دردناک ۔

فَبِظُلۡمٍ مِّنَ الَّذِیۡنَ هَادُوۡا ، دا بدل دے د فبما نقضهم نه یا مستقل کلام دے متعلق دے په روستو پورے ۔

حَرَّمۡنَا عَلَیۡهِمۡ ، طیبات او مراد د طیبات نه هغه دی چه په سورة انعام ۱۴۶ کښ ذکر دی او هغې ته په سورة نحل ۱۱۸ کښ اشاره ده دا رنګ په ذلت او مسکنت او غضب کښ اخته کیدلو سره په دوی بانډے عزت او رحمت د الله تعالیٰ بند شو ۔

وَبِصَدِّهِمۡ عَنۡ سَبِیۡلِ اللّٰهِ کَثِیۡرًا ، مراد د سبیل الله نه لاره د توحید او د اتباع د رسولانو ده چه دا کار به دوی د ټولو رسولانو په وخت کښ کولو نو دا رنګ د آخري رسول د اتباع او د قرآن نه منع کولو ته هم اشاره ده ۔

۱۶۱ :۔ په دیکښ نور قباحتونه د هغوی او اسباب د تحریم ذکر کوی ۔

وَاَخۡذِهِمُ الرِّبٰوا ، ربا په دوی بانډے حرام ده لکه چه زموږ په ملت کښ حرامه ده ۔

وَقَدۡ نُهُوۡا عَنۡهُ ، په دیکښ اشاره ده د دوی ډیر قباحت ته چه په تورات او انجیل کښ د ربوا نه نهی موجود ده او دوی د هغې

لٰكِنِ الرّٰسِخُوْنَ فِى الْعِلْمِ

لیکن پاخه په علم کښ

مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُوْنَ يُؤْمِنُوْنَ

دَ دوی نه او مؤمنان چه ایمان لری

بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ

په هغه کتاب چه نازل کړے شوے دے تاته او هغه چه

اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ وَالْمُقِيْمِيْنَ

نازل کړے شوے دے مخکښ ستا نه او (شاباسے دے) په پابندئ کوونکو

الصَّلٰوةَ وَالْمُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ

دَ مانځه او ورکوونکی دَ زکوٰة

وَالْمُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ

او ایمان لرونکی په اللہ تعالیٰ او په ورځ روستنئ

نه مخالفت کړیں ے۔

وَاَكْلِهِمْ اَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ ، داسے په سورة توبه ۳۴ کښ ذکر دے او دَ باطل نه مراد هغه طریقے دَ مال گټلو دی چه په شرع کښ دَ هغے دلیل نه وی۔

وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ، اشاره ده چه په دوی کښ دَ کفر ډیر اسباب موجود وو۔

سوال :- تحریم خو په دوی باندے په تورات کښ شوے وو او بعضے اسباب ذکر شوے خو دَ هغے نه روستو په دوی کښ پیدا شوے وو؟

جواب :- روستو اسباب دَ دوام او بقاء دَ تحریم دَ پاره ذکر شول داسے آلوسی لیکلی دی۔

# أُولَٰئِكَ سَنُؤْتِيهِمْ أَجْرًا

| ثواب | خامخا ورکوو به دوی ته | دغه کسان |
|---|---|---|

# عَظِيمًا ﴿١٦٢﴾

| لوی۔ |
|---|

۱۶۲:۔ په دے آیت کښ بشارت دے په ښه صفاتو د اهل کتابو سره که عوام وی او که علماء وی۔

لَٰكِنِ الرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ، دا په علماؤ کښ د حق پرستو صفت دے لکه چه په سورة آلعمران کښ ذکر دی۔

مِنْهُمْ، اشاره ده چه په یهودیانو کښ دوه قسمونه د علماؤ موجود وو یو زائغین او دویم راسخین۔

وَالْمُؤْمِنُونَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ، قتاده وئیلی دی چه په دیکښ منهم پټ دے یعنی دا د علماؤ راسخین نه علاوه عام مؤمنان د بنی اسرائیلو مراد دی او دا صفتونه په راسخینو کښ هم مراد دی۔

وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَاةَ، سیبویه او عام بصریان وائی چه دا منصوب دے په مدح سره او ابن عطیه او کسائی د دے خلاف کوی او هغوی وائی چه دا عطف دے په ما انزل الیك باندے او مراد د مقیمین الصلوة نه انبیاء علیهم السلام دی او مراد اقامة الصلوة نه سره د ادا کولو نه د هغے جارے کول او اظهار دے په خلقو کښ (آلوسی)۔

وَالْمُؤْتُونَ الزَّكَاةَ، دا عطف دے په یؤمنون باندے او دا عطف د عمل دے په ایمان باندے۔

وَالْمُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، صاحب اللباب وئیلی دی چه علماء درے قسمه دی۔ اول عالمان په حکمونو د الله تعالیٰ فقط دویم عالمان په ذات د الله تعالیٰ او په صفتونو د هغه فقط

إِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ كَمَآ

بيقينًا وحی کړیده مونږ تا ته پشان دَ هغې

أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ نُوحٍ وَالنَّبِيِّـۧنَ

چه وحی کړیوه مونږ نوح (علیه السلام) ته او نورو پیغمبرانو ته

دریم عالمان په احکامو او په ذات دَ الله تعالیٰ او په صفتونو دَ هغه باندے نو هرکله چه دوی ته ئے راسخین فی العلم اوئیل چه دوی عالمان دی په احکامو او په ذات اوصفاتو دَ الله تعالیٰ باندے نو نو بیائے اوئیل یعنی عالمان دی په احکامو دَ الله تعالیٰ په یومنون بما انزل الیك سره سره دَ عمل کولو نه په ذکر دَ اقامة الصلوٰة او ایتاء الزکوٰة سره تو بیائے اوئیل چه عالمان دی په الله تعالیٰ باندے سره دَ ایمان نه په معاد باندے هم په دے قول سره والمؤمنون بالله والیوم الآخر نو درے وارو اقسامو ته اشاره اوشوه او ایمان بالله والیوم الآخر ئے په ذکرکښ روستو کړلو دَ پاره دَ دے چه اعتبار دَ مخکښ صفتونو په ایمان بالله والیوم الآخر سره دے نو دا شرط دے دَ هغوی مخکښ صفتونو دَ پاره او شرط کله دَ مشروط نه روستو ذکر کیږی۔

أُولَٰٓئِكَ سَنُؤْتِيهِمْ أَجْرًا عَظِيمًا ، هرکله چه په دے آیت کښ دَ کامل ایمان والو ذکر وو نو دَ هغوی په بشارت کښ س (چه په نیزدے والی دلالت کوی) ذکر کړے دے او په ۱۵۲ کښ دَ عام مؤمنانو ذکر وو نو لفظ دَ سوف (چه په لرے والی دلالت کوی) ذکر کړے وو۔

فائده :- په لفظ دَ المقیمین الصلوٰة په اعراب باندے بعض خلق (لکه شیعه گان) اعتراض کوی چه دا دَ عربیت په قانون سره عثمان رضی الله عنه لحن کړے دے او دا سے لس آیاتونه دی چه په هغې باندے دا اعتراض دے دَ هغې تفصیلی جوابونه دَ تفسیر اللباب دمشقی په حاشیه کښ او دَ بعضے شبها تو جوابات

مِنْۢ بَعْدِهٖ ۚ وَاَوْحَيْنَآ اِلٰٓى

روستو دَ هغهٔ ، او وحی کړے وہ موږ

اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ

ابراهیم او اسمعیل او اسحاق

وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَعِيْسٰى

او یعقوب (علیهم السلام) ته او اولاد دَ هغوی ته او عیسیٰ

وَاَيُّوْبَ وَيُوْنُسَ وَهٰرُوْنَ

او ایوب او یونس او هارون

وَسُلَيْمٰنَ ۚ وَاٰتَيْنَا دَاوٗدَ

او سلیمان (علیهم السلام) ته او ورکړے موږ داؤد (علیه السلام)

زَبُوْرًا ﴿۱۶۳﴾

ته زبور ۔

په تفسیر روح المعانی کښ اوګورئ ۔

۱۶۳:۔ په دے آیت کښ دا تحقیقی جواب دے دَ سوال دَ یهودیانو چه په ۱۵۳ کښ ذکر شوے و وحاصل دا دے چه په یو ځل کتاب راؤړل دَ نبوت دَ پاره شرط نه دے چه دا دولس پیغمبران اتفاق او مشهور پیغمبران دی او حال دا دے چه هغوی ته کتابونه په یو ځل نه دی ورکړے شوی ۔

اِنَّآ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ كَمَآ اَوْحَيْنَآ اِلٰى نُوْحٍ ، وحی خو آدم علیه السلام ته شروع ده لیکن دلته دا سے وحی مراد ده چه په هغے کښ رد وی په مشرکانو باندے په شرک دَ هغوی نو دا سے وحی دَ نوح علیه السلام ته شروع شوے ده ۔

وَالنَّبِيّٖنَ مِنْۢ بَعْدِهٖ ، دَ دوی نه دَ بعضو ذکر په سورة اعراف او

وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنٰهُمْ عَلَيْكَ

او (ولیږل) موږ ډېر رسولان چه بیان کړي دي موږ په تا باندې ذکر د مخکې

مِنْ قَبْلُ وَرُسُلًا لَّمْ

مخکښې د دې نه او ډېر رسولان چه نه دي

نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ ۗ وَكَلَّمَ اللّٰهُ

بیان کړي موږ په تا باندې او خبرې کړې دي الله تعالیٰ

مُوْسٰى تَكْلِيْمًا ﴿١٦٤﴾

موسیٰ (علیه السلام) سره خبرې کول.

هود کښ کړے شوي دي۔ هود او صالح او شعیب او لوط او یوسف علیهم السلام۔

وَاَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ، دا خو د یهودیانو او نصاری او مشرکان عرب د ټولو په نیز انبیاء وو۔ اسباط. نه مراد نور انبیاء د بنی اسرائیلو دي چه په هغې کښ زکریا او یحییٰ او ادریس او الیاس علیهم السلام داخل دي۔

وَعِيْسٰى وَاَيُّوْبَ وَيُوْنُسَ وَهٰرُوْنَ وَسُلَيْمٰنَ ، دا هغه انبیاء علیهم السلام دي چه په دوی باندې یهودیانو مختلف طعنونه کول او حال دا دے چه حق انبیاء وو۔

وَاٰتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا ، قرطبي لیکلي دي چه د دې کتاب یوسل او پنځوس سورتونه وو په هغې کښ ذکر د حلال او حرام او نورا احکام نه وو بلکه وعظونه او فضیلتونه پکښ ذکر وو۔ د دې ذکر ئې په دې وجه سره اوکړو چه فضیلت د داؤد علیه السلام په سبب د بادشاهۍ سره نه وو بلکه په سبب د نبوت او د کتاب سره وو۔

سوال :- د موسیٰ علیه السلام ذکر ئې په دیکښ او نه کړو ؟

جواب :- د هغه کتاب تورات سره خو دوی استدلال کړے وو چه

هغه په یو کرت نازل کړے شوے وو نو د هغه ذکر کولو ته ضرورت پاتے نه شو او روستو آیت یئے ذکر کړے دے.

۱۶۴- په دیکښ د نورو رسولانو ذکر اجمالی دے او هغه دوه قسمونه دی.

اول قسم وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنٰهُمْ عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ، لکه چه په سورة اعراف او سورة هود او سورة شعراء او سورة انبیاء او سورة انعام او سورة مریم وغیره کښ ذکر شوی دی. وَرُسُلًا، نه مخکښ فعل پټ دے ارسلنا رسلا.

او دویم قسم وَرُسُلًا لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ، د هغوی حالات او د هغوی نومونه بلکه د هغوی پوره شمار په حدیث صحیح کښ معلوم نه دے کوم حدیث چه نقل دے چه یو لاکه څلیریشت زره انبیاء دی دغه حدیث ضعیف دے.

وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا، د نحاس او نورو نحویانو اجماع ده چه د فعل سره مصدر (مفعول مطلق) ذکر شی دلالت کوی په تاکید باندے یعنی مراد دلته د کلام معنیٰ حقیقی بغیر د واسطے نه کلام دے. قرطبی وثعلبی دی چه دا دلیل په بطلان د قول د هغه چا چه هغوی وائی چه الله تعالیٰ خپل کلام په اونه کښ پیدا کړو او د اونے نه موسیٰ علیه السلام واوریدلو بلکه الله تعالیٰ بغیر د واسطے نه د هغه سره کلام حقیقی کړے دے او د دے جملے د راوړلو مقصد دا دے چه لکه په دے خصوصیت د موسیٰ علیه السلام سره (رچه کلام) دے د نورو انبیاؤ په نبوت کښ هیڅ طعن نه لازمیږی نو دا رنګ په یو ځل کتاب تورات ورکولو سره هم په نورو انبیاؤ هیڅ طعن نه لازمیږی.

رُسُلًا مُّبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ

(لیږلي دي مونږ) رسولان زیرے ورکوونکي او یره ورکوونکي

لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَى اللّٰهِ

دَ دے دَپاره چه نه وي خلقو لره په الله تعالی بانديے

حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ

هیځ بهانه پس دَ لیږلو دَ رسولانو نه ، او دے الله تعالی

عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿۱۶۵﴾

زورآور او حکمتونو والا ۔

۱۶۵ :۔ رُسُلًا مُّبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ، په دے آیت کښ دَ رسولانو شان او حکمت دَ ارسال رسل ذکر کوي یعنی دَ رسولانو کار دعوت دے په طریقه دَ تبشیر او انذار سره کتاب په یوځل نازلیدل دَ هغے سره لازم نه دہ۔ او رُسُلًا لفظ بدل دے دَ مخکښ رُسُلًا نه یا حال دے یا فعل پټ دے ارسلنا رسلًا ۔

لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَى اللّٰهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ ، په دے جمله کښ حکمت دَ ارسال دَ رسولانو ذکر کول مقصد دے۔

سوال :۔ دَ دینه معلومیږي که چرے الله تعالی رسولان نه وے رالیږلے نو خلقو په الله تعالی حجت او دلیل قائم کولے شو نو دا خو مستلزم دے چه په الله تعالی بانديے ارسال دَ رسولانو واجب دے او دا خو مذهب دَ معتزلو دے؟

جواب :۔ دَ حجة نه مراد دلته معذوره (بهانه) کول دي یعنی که رسولان ئے نه رالیږلے نو خلقو به الله تعالی بهانه او عذار کولے لکه چه په سوره طه ۱۳۴ او سوره قصص ۴۷ کښ دي او عذر کول الله تعالی ته ډیر قبول دے نو هغه په ځان بانديے دَ چا عذر هم نه پریږدي۔

وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ، عزیز دے په هغه بانديے څوک

لٰكِنِ اللّٰهُ يَشْهَدُ بِمَآ اَنْزَلَ

لیکن الله تعالی گواهي کوي په هغه کتاب چه نازل کړيدے هغه

اِلَيْكَ اَنْزَلَهٗ بِعِلْمِهٖ ۚ وَالْمَلٰٓئِكَةُ

تاته نازل کړيدے په علم خپل سره او ملائک

يَشْهَدُوْنَ ۭ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ﴿١٦٦﴾

گواهي کوي، او پوره دے الله تعالی گواهي کوونکے۔

حجت (دليل) نشي قائم کولے۔ حَكِيْمًا، يعني په راليږلو د رسولانو کښ د هغه ډير حکمتونه دی۔

۱۶۶: روستو د اعتراض د اهل کتابو نه په صدق د قرآن باندے او د جواب د هغے نه اوس ذکر کوی شهادت د الله تعالی او د ملائکو په صدق د قرآن باندے۔

لٰكِنِ اللّٰهُ يَشْهَدُ بِمَآ اَنْزَلَ اِلَيْكَ، د استدراك د پاره مخکښ ضروري وي ذکر د مستدرک نه نو دلته هرکله چه تکذيب د اهل کتابو ذکر شو (چه قرآن باندے اعتراض کوو) نو داسے اوئيلے شول چه دوي خو شهادت په صدق د قرآن کريم باندے نه کوي ليکن الله تعالی شهادت کوي په صدق د هغه کتاب چه نازل کړے دے تاته۔ او ابن جرير وئيلي دی چه دا په جواب د قول د يهوديانو کښ دے چه هرکله انا اوحينا اليك نازل شو نو هغوی اوئيل چه موږ خو ستا د نبوت شهادت نه کوو۔ نو جواب اوکړے شو په لكن الله يشهد او شهادت په صدق قرآن مستلزم دے شهادت لره په صدق د نبوت د رسول الله صلى الله عليه وسلم۔

اَنْزَلَهٗ بِعِلْمِهٖ، په دے کښ خلور وجوه دی۔

اوله وجه، دا چه نازل کړيدی قرآن لره په علم د الله تعالی سره په ښائسته ترتيب او معجزانه طرز د دے سره۔

دويمه وجه، دا چه نازل کړے تاته په سبب د علم د الله تعالی

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا
يقينًا هغه كسان چه كفر يې كړيدے او منع كوي خلق
عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ قَدْ ضَلُّوا
دَ لارے دَ الله تعالىٰ نه يقينًا گمراه شول دوي
ضَلَالًا بَعِيدًا ﴿۱۶۷﴾
په گمراهئ لوے سره -

په دے خبره چه ته اهل دَ دے كتاب يې ځكه چه ته دلے طرف ته دعوت كولے شے.

دريمه وجه، نازل كړے دے په سبب دَ علم دَ الله تعالىٰ په ټولو مصلحتونو دَ بندګانو باندے چه دا كتاب په هغے باندې مشتمل دے.

څلورمه وجه، نازل كړيدے تا ته سره دَ دے چه عالم دے په دے باندے يعنې حفاظت دَ شيطانانو نه كوي - (آلوسي)

وَالْمَلَائِكَةُ يَشْهَدُونَ، شهادت دَ ملائكو خو په دے وجه سره چه دوي دَ الله تعالىٰ دَ شهادت نه خلاف نشي كولے يا دا چه جبرئيل راوړيدے او ټول ملائك دَ جبرئيل تابع دي يا دا چه ملائكو دَ دے نبي امداد كړے دے په بدر او احزاب وغيره مواقعو دَ جهاد كښ نو دا دَ هغوي شهادت دے په صدق دَ نبي او دَ قرآن باندے -

وَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا، يعنې شهادت دَ ملائكو خو تابع دے دَ شهادت دَ الله تعالىٰ نو كه چرے بالفرض شهادت دَ ملائكو نه وي نو شهادت دَ الله تعالىٰ يواځے كافي دے-

۱۶۷:- روستو دَ ذكر دَ صدق دَ رسول او قرآن زجر دے عام منكرينو او خصوصًا هغه اهل كتابو ته چه په قرآن باندے اعتراضونه كوي-

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا، اشاره ده چه كفر كوي په دے رسول

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَظَلَمُوا

يقيناً هغه كسان چه كفر ئې كړے دے او ظلم ئې كړيدے

لَمْ يَكُنِ اللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ

نه دے الله تعالىٰ چه بخنه اوكړي هغوی ته

وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيقًا ﴿۱۶۸﴾ إِلَّا

او نه به ورته لار ښائي مګر

طَرِيقَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا

لار د جهنم هميشه به وی په هغے کښ

أَبَدًا ۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ

هميشه او دے دا كار په الله تعالىٰ

يَسِيرًا ﴿۱۶۹﴾

بانده آسان ۔

او قرآن بانده په طريقه د اعتراض كولو۔

وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ ، يعنی صفات د دے رسول او قرآن چه د دوی په كتابو تو كښ دی هغه پټوی او تحريف پكښ كوی د پاره د دے چه نور خلق په ده بانده ايمان را نه وړی۔

قَدْ ضَلُّوا ضَلَالًا بَعِيدًا ، ځكه چه ګمراه دی او نور خلق هم ګمراه كوی۔

۱۶۸، ۱۶۹ :- روستو د زجر نه په دے آيا تونو كښ هغوی له تخويف ذكر كوی۔

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَظَلَمُوا ، مراد د دينه انكار د رسول او د قرآن نه په طريقه د منع كولو د خلقو په هغه بانده د ايمان راوړلو نه او د حق سره ضد او عناد كول دی او ظلم كښ اشاره ده چه دوی تو به هم نه ده وستلے۔

لَمْ يَكُنِ اللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيقًا ، طريق نه مراد

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ

اے خلقو! يقيناً راغلے دے تاسو ته

الرَّسُوْلُ بِالْحَقِّ مِنْ رَّبِّكُمْ

رسول د پاره د حق بيانولو د طرف د رب ستاسو ته

فَاٰمِنُوْا خَيْرًا لَّكُمْ ؕ وَاِنْ تَكْفُرُوْا

نو ايمان راوړئ غوره به وي تاسو لره او كه كفر اوكړو تاسو

فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

نو يقيناً الله تعالىٰ لره اختيار دے د هغه څه چه په آسمانونو كښ دي او زمكه كښ د

وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱۷۰﴾

او دے الله تعالىٰ پوهه حكمتونو والا -

دا سے ايمان او اعمال صالحه چه سبب او لار شي د پاره د حصول د جنت -

اِلَّا طَرِيْقَ جَهَنَّمَ ، دا استثناء مفرغ ده او دا پشان د قول د مَا تَوَلّٰى - او سَنُيَسِّرُهٗ لِلْعُسْرٰى دے -

وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ، يعني هيڅ پرواه نه كوي په دوي باندے او نه د الله تعالىٰ د پاره څه مانع شته دے -

۱۷۰ :- خلاصه :- د دے آيت نه تر آخر د سورت پورے د دے حصے دريم باب دے په دے باب كښ خطاب عام دے د پاره د ترغيب ايمان راوړلو ته په آخري رسول باندے د پاره د ازالے د دغه قباحتو چه مخكښ تير شول او بيا خاص خطاب دے يهود او نصارىٰ ته د پاره د رد كولو په غلو كولو په باره د عيسىٰ عليه السلام كښ سره د ځلور كلمات توحيد په رد د نصارىٰ كښ او اثبات د عبديت د عيسىٰ عليه السلام د-بيا تخويف دے په ۱۷۲ او بشارت په ۱۷۳- بيا خطاب عام دے د پاره د ايمان راوړلو او تابعداري كولو د

قرآن کریم سره د بشارت نه په ۱۷۴، ۱۷۵ کښې او په آخر کښې یو مثال دے د انوارو د قرآن کریم په ذکر د میراث د روټرو خویندو دپاره د دفع ظلم د جاهلیت۔

ربط ۱:۔ هر کله چه ذکر کړے شو جواب د شبهے د یهودیانو اوس هغوی ته او نورو خلقو ته دعوت عامه ورکوی دپاره د ایمان راوړلو په آخری رسول صلی الله علیه وسلم باندے۔

ربط ۲:۔ دا رنګ مخکښې آیاتونو کښې ذکر شول چه دوی خلق منع کوی د اتباع د دے رسول نه او ظلم کوی۔ اوس الله تعالیٰ عام خطاب کوی د دوی په مخالفت کښې چه د دوی خبره مه منئ بلکه راشئ په دے رسول باندے ایمان راوړئ۔

يَآ اَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ الرَّسُوْلُ ، خطاب عام دے یهودیان او نصاریٰ پکښې داخل دی مراد د الرَّسُوْلُ نه محمد صلی الله علیه وسلم دے او په وصف د رسالت سره ذکر کړو د تاکید د اتباع د هغه دپاره۔

بِالْحَقِّ ، باء ، د ملابست ده او مراد حق نه قرآن ، دین اسلام ، شهادت د توحید دے۔ یا باء سببیه ده یعنی په سبب د قائم کولو د حق۔

مِنْ رَّبِّكُمْ : اشاره ده چه الله تعالیٰ د دے رسول په رالیږلو سره ستاسو دینی او روحانی تربیت کوی۔

فَاٰمِنُوْا خَيْرًا لَّكُمْ ، په نصب د خَيْرًا کښې ډیر اقوال دی اول قول د خلیل او سیبویه دے چه فعل پټ دے۔ افعلوا خیرًا راوکړئ خیر خیل)۔

دویم قول په نیز د فراء د دے موصوف پټ دے او مفعول مطلق دے ایمانًا خَيْرًا (یعنی غوره ایمان چه پشان د ایمان د صحابه کرامو دے)۔

دریم قول د کیسائی او ابوعبید دے لِيَكُنِ الْاِيْمَانُ خَيْرًا لَّكُمْ

يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِيْ

اے كتاب والو! زياتے مه كوئ په

دِيْنِكُمْ وَلَا تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ

دين خپل كښ او مه وائ په الله تعالىٰ باندے

اِلَّا الْحَقَّ ؕ اِنَّمَا الْمَسِيْحُ عِيْسَى

سيوا دَ حق نه ، يقيناً مسيح عيسىٰ (عليه السلام)

ابْنُ مَرْيَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

ځوے دَ مريم رسول دَ الله تعالىٰ دے

وَكَلِمَتُهٗ ۚ اَلْقٰهَآ اِلٰى مَرْيَمَ

او كلمه دَ هغه ده چه اچولے ده مريم ته

وَرُوْحٌ مِّنْهُ ۫ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ

او روح دے دَ طرف دَ الله تعالىٰ نه، نو ايمان راورئ په الله تعالىٰ

وَرُسُلِهٖ ۚ وَلَا تَقُوْلُوْا ثَلٰثَةٌ ؕ

او په رسول دَ هغه او مه وايئ چه خدايان درے دى ،

(ايمان به غوره وى تاسو لره)

وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ، دَ ان شرطيه جزاء پټه ده فَهُوَ قَادِرٌ عَلٰى تَعْذِيْبِكُمْ (نو الله تعالىٰ قادر دے ستاسو په عذاب دركولو باندے) يا فَهُوَ غَنِيٌّ عَنْكُمْ (الله تعالىٰ ستاسو نه غنى دے) فان فاء دَ علت دَ پاره دے دَ پټے جزاء دَ پاره - الله ، په اعتبار دَ خلق او تصرف او عبديت او بادشاهئ سره-

وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ، عالم دے په هر څيز او په هغے كښ دَ دوى كفر داخل دے حكيم دے په هر څيز كښ او په هغے كښ

اِنْتَھُوْا خَیْرًا لَّکُمْ ؕ اِنَّمَا اللّٰہُ

منع شئ دَ دینه نو غوره به وي تاسو لره یقینا حقدار دَ بندګۍ

اِلٰہٌ وَّاحِدٌ ؕ سُبْحٰنَہٗۤ اَنْ یَّکُوْنَ

یو الله تعالی دے ، پاک دے دَ دینه

لَہٗ وَلَدٌ ۘ لَہٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ

چه هغه لره د ځوے وي خاص دَ هغه په واک کښ دي هغه څه چه په آسمانونو کښ دي

وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ وَکَفٰی بِاللّٰہِ

او هغه څه چه په زمکه کښ دي او پوره دے الله تعالی

وَکِیْلًا ﴿۱۷۱﴾ ع

ذمه وار دَ ټولو کارونه -

دَ دوی عذاب ورکول او مهلت ورکول هم داخل دي.

سالا. دا تخصیص دے روستو دَ عام خطاب نه په هغه خطاب کښ امر وو په ایمان سره په آخری رسول باندے او په دیکښ نهی ده دَ غلو کولو نه په باره دَ عیسی علیه السلام کښ ځکه چه دَ ایمان دَ رسول سره غلو نشي جمع کیدلے -

یَآ اَھْلَ الْکِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِیْ دِیْنِکُمْ ، دَ حسن بصری نه روایت دے آلوسی او صاحب اللباب ذکر کړی دي چه دا خطاب عام دے یهودو او نصاری دواړو ته ځکه چه دواړو په باره دَ عیسی علیه السلام کښ غلو کړے ده او دَ غلو دوه معانے دي. اوله معنی تجاوز دَ حد شرعی نه که په زیاتوالی سره وي او که په نقصان سره وي یعنی افراط او تفریط - او دویمه معنی زیاتے کول دَ حد شرعی نه چه افراط دے او دلته دَ غلو اوله معنی مراد ده نو رد دے په افراط دَ نصاری باندے او په تفریط دَ یهودیانو باندے دَ نصاری عقیده ده چه عیسی علیه السلام

اله دے یا ابن الله دے یا الله تعالیٰ په ده کښې حلول کړیدے
او یهودیانو وئیل چه دے ساحر او کاهن دے او ولد د زنا
دے۔ او داسے په سوره مائده ۳۳ کښې هم راغلی دی لیکن هلته
د غلو دویمه معنیٰ مراد ده رد دے صرف په نصاریٰ باندے۔

وَلَا تَقُولُوا عَلَى اللّٰهِ إِلَّا الْحَقَّ، هرچه غلوا مستلزم ده افتراء
کولو لره په الله تعالیٰ باندے او دا مستقل کفر دے د دے
وجے نه ورپسے ئے د دینه منع ذکر کړه۔ لَا تَقُولُوا، قول
کول په ژبه او عقیده ساتل په زړه کښې دواړو ته عام دے۔
إِلَّا الْحَقَّ، غوره دا ده چه دا استثناء منقطع ده مراد د
دے پاک گنړل د الله تعالیٰ دی د شریک او ولد او حلول او
اتحاد نه او دا خطاب خاص دے په نصاریٰ پورے په باره د
عیسیٰ علیه السلام کښې۔ او هرچه یهودیان دی نو په نورو
ډیرو احکامو کښې په الله تعالیٰ باندے افتراء کړیده او کوی۔

إِنَّمَا الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ اللّٰهِ، دا ذکر د حق
عقیدے دے په باره د عیسیٰ علیه السلام کښې۔ رسول د
الله دے نو رد دے د قول د یهودیانو چه هغوی د هغه د
رسالت نه انکار کوو او رد دے په نصاریٰ باندے چه هغوی
د هغه د الوهیت او ابنیت لله عقیده لرله۔

وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَىٰ مَرْيَمَ، او مراد د کلمه دا دے چه
پیدا کړے شوے دے په کلمه د کن سره په غیر د معتاد
سبب نه چه نطفه د مور او پلار دے۔ دا قول د حسن او
قتاده دے یا مراد د کلمے نه بشارت دے چه مریم ته ئے
لیږلے وو۔ او مراد د القاء نه رسول د دے کلمے دی مریم
ته په واسطه د جبرئیل علیه السلام لکه چه په سوره مریم ۱۹
کښې دی۔

وَرُوحٌ مِّنْهُ، مراد د رُوحٌ روح انسانی دے او لفظ د
ذو پټ دے ذو روح یعنی په خپل ژوند کښې روح ته

محتاج دے۔ بل قول دا دے چه مراد دَ روح پوکے کول دَ جبرئیل دی په گریوان دَ قمیص دَ مریم کښں لکه چه په سورهٔ تحریم ۱۲ او سورهٔ انبیاء ۹۱ کښں ذکر دے۔ مِنۡهُ دا متعلق دے په پټ لفظ پورے او مِنْ دَ پاره دَ ابتداء دے یعنی روح صادر شوے دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه او مِنْ دَ پاره دَ تبعیض نه دے لکه چه نصارٰی دا سے استدلال کوی او دا سے قصّه ابوحیان او آلوسی وغیره ذکر کړیده چه یو نصرانی ډاکټر وو دَ هارون الرشید په مجلس کښں دَ علی بن حسین الواقدی مروزی سره مناظره کښں وئیلی وو چه ستا سو په قرآن کښں ذکر دے چه عیسیٰ علیه السلام دَ الله تعالیٰ جزء دے تو معلومه شوه چه ولد دے او دا لفظ یے اولوستلو (روح منه) تو هغه عالم دَ ده په رد کښں اولوستلو چه الله تعالیٰ فرمائیلی دی۔ وسخر لکم ما فی السمٰوٰت وما فی الارض جمیعًا منه۔ (سورهٔ جاثیه ۱۳) یعنی دَ دے آیت نه خو بیا په استدلال ستا سره معلومیږی چه ټول ما فی السمٰوٰت والارض دَ الله تعالیٰ جزء دے تو هغه نصرانی غلے او پرېشو او هارون الرشید دغه عالم له لوے انعام ورکړو۔

فَاٰمِنُوۡا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ، یعنی دَ الله تعالیٰ په الوهیت باندے ایمان لرے او دَ رسولانو په رسالت باندے ایمان لرے کښں ورو والے مه کوئ۔

وَلَا تَقُوۡلُوۡا ثَلٰثَةٌ، شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله په رسالة قبرصیة کښں وئیلی دی چه نصارٰی په قول دَ تثلیث او اتحاد کښں ډیر متفرق او مختلف اقوال کوی چه عاقل شخص په هغے باندے اقرار نشی کولے او ټول کلمات متشابهات دی دَ دوی په انجیل کښں او حال دا چه دَ هغے په رد کښں په انجیل کښں کلمات محکمات شته دے۔ قاسمی دَ سید عبدالله الهندی نه نقل کړیدی چه یو فرقه ده په نصارٰی کښں چه هغوی

ته (کولی دی دینس) وئیلی شی هغوی وئیلی دی چه الله دریے دی پلار ځوبے او مریم - آلوسی دا قول د تثلیث د ملکانیه او نسطوریه او یعقوبیه ټولو نه نقل کړے دے سره د اختلاف نه په تفسیر د هغے کښ او بیا ئے په هغوی بانس ے په تفصیل سره تردید کړے دے (روح المعانی) او په اول د بحث کښ وئیلی دی چه د زجاج نه نقل دے چه قول د دوی دا دے الآلهه ثلاثه (آله دریے دی) یو الله دویم عیسیٰ دریم مریم لکه چه د سوره مائده د آخر نه معلومیږی - او بل تفسیر مشهور د نصارٰی دا دے چه الله یو جوهر دے او دریے اقانیمو ته تقسیم شوے دے اقنوم د اب اقنوم د ابن او اقنوم د روح القدس - اول ذات دے دویم علم دے دریم حیات دے او دا ټولے بے دلیله خبرے دی۔

اِنْتَهُوْا، منع شیٔ د قول د تثلیث نه۔ خَيْرًا لَّكُمْ، د دے تقدیرات مخکښ ذکر شوی دی او دلته مشهور تقدیر دے۔ لِيَكُنْ خَيْرًا لَّكُمْ (ستاسو د پاره به خیر وی) - او د دینه روستو په رد د نصارٰی کښ څلور کلمات د توحید ذکر کوی۔

اوله کلمه، اِنَّمَا اللّٰهُ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ، دا صریح رد دے په قول د تثلیث بانسے۔

دویمه کلمه، سُبْحَانَهٗ اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗ وَلَدٌ، هر کله چه په قول د تثلیث کښ په عیسیٰ علیه السلام بانسے اطلاق د ابن الله کړے دے نو دا دویمه کلمه په هغوی بانسے تردید دے۔
دریمه کلمه، لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ، دا رد دے په اثبات د تصرف د الوهیت د پاره د عیسیٰ او مریم علیهم السلام لکه دا هم د نصارٰی عقیده ده۔
څلورمه کلمه، وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا، او دا د مخکښ جملو د پاره تاکید دے یعنی الله تعالیٰ په تدبیر او حفاظت د مخلوق کښ یواځے پوره دے نو بل الله او ولد ته ئے هیڅ حاجت نشته ځکه که بل

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ

هیچرې به نه کنړی مسیح دَ

عَبْدًا لِّلّٰهِ وَلَا الْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ ؕ

بندګی کولو دَ الله تعالیٰ نه او نه ملائک نیږدې (الله تعالیٰ ته)

وَمَنْ يَّسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهٖ

او چا چه بده اوګڼړله بندګی دَ الله تعالیٰ

وَيَسْتَكْبِرْ فَسَيَحْشُرُهُمْ اِلَيْهِ

او ځان ئې لوئې اوګڼړو نو زر دې جمع به ئې کړی الله تعالیٰ ځان ته

جَمِيْعًا ﴿١٧٢﴾

ټول ۔

اله یا ابن او مثلے شی تو هغه به معطل وی او تعطیل خو نقصان دے او نقصان والا خو اله نشی کیدے ۔

١٧٢ :- په دیکښ هم رد دے په نصارٰی باندے چه انکار کوی دَ عبدیت دَ عیسیٰ علیه السلام نه آلوسی او صاحب اللباب روایت ذکر کړے دے چه نصارٰی دَ نجران نبی صلی الله علیه وسلم ته اوئیل چه ته دَ عیسیٰ علیه السلام وله تعیب (عیب لګوی) کوے هغه او فرمائیل څه تعیب دے دوی اوئیل چه ته هغه ته عبد الله وائی نو دا آیت دَ هغوی په ردکښ نازل شوے دے ۔

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِّلّٰهِ ، استنکاف دَ نکف نه اخستلے شوے دے او نکف لرے کول او نفرت کول دی دَ یو څیز نه یعنی مسیح علیه السلام دَ الله تعالیٰ عبدیت نه پریږدی دَ نفرت او لویئ په وجے سره او عدم استنکاف دَ هغه مستلزم دے همیش والی دَ عبدیت لره او عبدیت مستلزم دے همیشه عبادت او طاعت کولو لره ۔

وَالْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ ،عطف دے په المسیح باندے یعنی مقربین ملائک هم استنکاف او نفرت دَ عبدیت دَ الله تعالیٰ نه نهٔ کوی۔
سوال :- په داسے مقام کښ خو ترقی دَ ادنیٰ نه اعلیٰ ته کیږی یعنی مسیح خو نفرت دَ عبدیت دَ الله تعالیٰ نه کوی نو دا دلالت کوی چه ملائک افضل دی دَ انبیاء علیهم السلام او دا خلاف ده دَ مذهب دَ جمهورو اهل سنت نه ؟
جواب عـ۱ :- مقصد دَ آیت رد دے په نصاری باندے چه هغوی دَ عیسیٰ علیه السلام په معجزاتو (ابرص اکمه جوړول مړی ژوندی کول وغیره) سره دلیل نیولو دَ هغه په الوهیت باندے نو اوئیلے شو چه ملائک خو په باره دَ داسے کارونو (خارق العادت) کښ دَ عیسیٰ علیه السلام اکثر دی ځکه چه دَ دوی نه ډیر خوارق صادرشویدی او صادریږی نو هغوی ته ولے الهه نه وائی نو دا فضیلت جزئیه دَ ملائکو دے په عیسیٰ علیه السلام باندے۔
جواب عـ۲ :- نصاری الوهیت دَ عیسیٰ علیه السلام دَ دے وجے نه ثابتوی چه هغه بغیر دَ پلار نه پیدا شویدے نو دَ هغوی په رد کښ اوئیلے شول چه داسے خو ملائک ټول بغیر دَ مور او پلار نه پیدا شوی دی نو هغوی ته ولے آله نه وائی دا هم دلالت کوی په فضیلت جزئیه باندے (آلوسی او صاحب اللباب)۔
جواب عـ۳ :- امام بغوی وئیلی دی چه په دے جمله کښ رد دے په هغه خلقو باندے چه ملائکو ته آلهه وائی او مشرکین یالملائکه دی چه ملائک دَ عبدیت دَ الله تعالیٰ نه نفرت نه کوی او دَ دغه خلقو عقیده ده چه ملائک دَ عیسیٰ علیه السلام نه افضل دی۔
فائده :- اختلاف دے په مسئله کښ چه ملائک افضل دی په فضیلت کلیه سره او که انبیاء علیهم السلام دا اختلافی مسئله ظنیه ده دلیلونه دَ دواړو طرفونو نه هیڅ قطعیت (یقین) نه پیدا کوی څوره دا ده چه په دے مسئله کښ توقف اوکړے شی سیوا دَ فضیلت دَ محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په ټولو عالمینو باندے چه دا یقینی خبره ده۔ آلوسی

فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا

نو هغه چاچه ایمان راوړی دے او عمل ئے کړیدے

الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ

په طریقه دَ نبی (صلی الله علیه وسلم) نو پوره به ورکړی هغوی ته ثوابونه دَ هغوی

وَ مَنْ يَسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَ يَسْتَكْبِرْ، دا لفظ شامل دے ټولو کافرانو او مشرکانو ته او مراد دَ عبادت نه عام دے توحید دَ عبادت او دَ طاعت ته - فرق په استنکاف او استکبار کښ دا دے چه استنکاف پریخودل دَ یو کار دی په سبب دَ نفرت کولو سره دَ هغے نه یعنی هغه کار ورته ناکاره او بد ښکاره کیږی او استکبار پریخودل دَ یو کار دی په سبب دَ دعوی دَ لوے ځپلے یعنی هغه کار فی نفسه بد نه ګنړی لیکن صرف ځان تری نه لوے ګنړی نو استنکاف زیات دے دَ استکبار نه او هرکله چه انکار کوونکی دَ توحید او طاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول نه دوه قسمونه وو دَ دے وجے نه دواړه الفاظ ذکر کړی دی. فَسَيَحْشُرُهُمْ إِلَيْهِ جَمِيعًا،

سوال:۔ حشر خو یقینی دے په استنکاف پورے خو معلق او مشروط نه دے نو دا خو جزاء دَ مخکښ شرط دَ پاره نه صحیح کیږی ؟

جواب ۱:۔ حشر نه مراد حشر دے دَ پاره دَ جزاء ورکولو یعنی حشر به دَ دوی دَ جزاء سزا ورکولو دَ پاره وی نو دا بل جانب پټ دے یعنی هغه څوک استنکاف او استکبار نه کوی هغه به هم جمع کوی۔

جواب ۲:۔ جزاء پټه ده یعنی فیجازیه او یعذبه (سزا او عذاب به ضرور ورکوی)۔

وَيَزِيدُهُم مِّن فَضْلِهِ ط

او زیاتی به ورکړی د فضل خپل نه،

وَأَمَّا الَّذِينَ اسْتَنكَفُوا

او هغه چا چه بده اوګڼله بندګی د الله تعالیٰ

وَاسْتَكْبَرُوا فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا

او ځان ئې لوے اوګڼړو نو عذاب به ورکړی هغوی ته عذاب

أَلِيمًا ۙ وَلَا يَجِدُونَ لَهُم

دردناک او نه به مومی ځان لره

مِّن دُونِ اللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿١٧٣﴾

سیوا د الله تعالیٰ نه دوست او نه مددګار۔

۱۷۳:۔ دا تفصیل د جزاء او سزا دے د دواړو فریقو د پاره یو د پاره د بشارت دے او دویم د پاره د تخویف دے ۔ نو ایمان او عمل صالح تشریح د عدم استنکاف او عدم استکبار ده۔

وَيَزِيدُهُم مِّن فَضْلِهِ، یعنی د استحقاق د ایمان او عمل نه به زیاته بدله په سبب د فضل خپل سره ورکوی۔

فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ، دا مقابل دے د يوفيهم اجورهم سره۔

وَلَا يَجِدُونَ لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ، دا مقابل دے د یزیدهم من فضله سره او ذکر د مؤمنانو ئې مقدم کړو د پاره د دے چه د کافرانو د هغوی په لیدو سره ډیر حسرت پیدا شی۔

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدْ جَآءَكُم
اے خلقو! یقینًا راغلے دے تاسو ته
بُرْهَٰنٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَأَنزَلْنَآ
یقیني دلیل ستاسو د رب د طرف نه او نازل کړې ده مونږ
إِلَيْكُمْ نُورًا مُّبِينًا ﴿١٧٤﴾
تاسو ته رڼا ښکاره .

۱۷۴ :- هر کله چه په ټول سورت کښ رد او کړے شو په منافقانو او مشرکانو او یهودیانو او نصاری باندے او بیا په وَأَمَّا الَّذِينَ اسْتَنكَفُوا کښ آخري او خصوصي رد او کړے شو په ټولو باندے نو اوس دعوت ورکوي ټولو ته د پاره د ایمان راوړلو په رسول الله صلی الله علیه وسلم او په قرآن کریم باندے ځکه دے وجے په يَٰٓأَيُّهَا النَّاسُ ، سره عمومي خطاب او کړے شو.

قَدْ جَآءَكُم بُرْهَٰنٌ مِّن رَّبِّكُمْ ، د ابن عباس رضی الله عنهما او سفیان ثوري نه روایت دے چه مراد په بُرْهَٰن سره رسول الله صلی الله علیه وسلم دے ځکه چه د هغه بعثت او رسالت قطعي حجت دے په منکرینو باندے او احتمال دے چه مراد د برهان نه قرآن کریم دے مِّن رَّبِّكُمْ، متعلق دے په جاءکم پورے یا صفت دے د برهان د پاره.

وَأَنزَلْنَآ إِلَيْكُمْ نُورًا مُّبِينًا ، د دے نه مراد خو قرآن کریم دے لکه چه په سورة اعراف ۱۵۷ او سورة تغابن ۸ کښ ذکر دے. قرآن نور دے ځکه چه د اثبات د حق د پاره واضح دلیل دے او مبین ئے تاکید دے چه د نورانیت د وجے نه هیڅ شبهات او شکوک د خلقو نه پریږدي.

۱۷۵:- دا ذکر دَ حال دَ هغه چا دے چه دَ برهان او نور نه ئې فائده واخستله.

آمَنُوا بِاللَّهِ، دَ دینه مراد ایمان شرعی تفصیلی دے په کومه طریقه چه برهان او نور پیش کړیدے.

وَاعْتَصَمُوا بِهِ، ضمیر راجع دے الله تعالى ته یا نور ته بنا په اول باندے مراد دَ اعتصام نه ځان سپارل دی الله تعالى ته دَپاره دَ بچ کولو دَ خپل ځان دَ زیغ دَ شیطان نه او بنا په دویم مراد اعتصام نه دلیل نیول او عمل کول دی په قرآن کریم باندے.

فَسَيُدْخِلُهُمْ فِي رَحْمَةٍ مِنْهُ، دَ ابن عباس رضی الله عنهما روایت دے چه مراد په رحمت سره جنت دے یا مراد تریته لوے ثواب دے چه حاصلیږی په رحم دَ الله تعالى سره بغیر دَ اعتماد کولو نه په عمل باندے.

وَفَضْلٍ، تنوین دَپاره دَ تعظیم دے یعنی داسے فضل چه انسانان دَ هغے په اندازه باندے علم نه لری.

يَسْتَفْتُونَكَ ط قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ

پوښتنه کوي دوی ستا نه ته ورته اووايه! الله تعالیٰ حکم درکوي تاسو ته

فِي الْكَلَالَةِ ط إِنِ امْرُؤٌ هَلَكَ

په باره د مونږ وتي او میراث کښې، که یو سړے مړ شو

لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ وَلَهُ أُخْتٌ فَلَهَا

نه وو هغه لره اولاد او هغه لره خور وه نو هغې لره

نِصْفُ مَا تَرَكَ ج وَهُوَ يَرِثُهَا

نیمه د هغه مال ده چه پریخودلے وي او دا ورور وارث دے د ټول مال د هغې

إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهَا وَلَدٌ ط فَإِنْ

که نه وي هغه لره هیڅ اولاد نو که وي

كَانَتَا اثْنَتَيْنِ فَلَهُمَا الثُّلُثَانِ

دا دواړه دوه خویندے نو دے دواړو لره دوه دریمے دي

مِمَّا تَرَكَ ط وَإِنْ كَانُوا إِخْوَةً

د هغه مال نه چه پریخودلے دے او که وي دوی رونړه خویندے

---

وَيَهْدِيهِمْ إِلَيْهِ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ، ضمیر راجع دے الله تعالیٰ ته یا فضل ته او صراطًا مستقیمًا دویم مفعول دے دپاره د یهدیهم یا حال دے د ضمیر د الیه نه یا بل فعل پټ دے چه ویعرفهم (او خائی به دوی ته).

سوال:- هدایت خو په دنیا کښې دے نو دا خو مخکښې دے په رحمت او فضل د آخرت باندے نو ولے هدایت ئے روستو ذکر کړو؟

جواب ١:- دا تقدیم د مقصد اعلیٰ دے (چه مسبب دے) په سبب باندے چه هدایت دے دپاره د مزید بشارت او خوشحالئ.

جواب ٢:- مراد د رحمت نه توفیق دے او مراد د فضل نه

قبولیت دے او دا مخکښ دی په هدایت باندے۔

۱۷۶:۔ ربط :۔ هرکله چه ذکر شوه چه قرآن نورمبین دے نو اوس ذکر کوی د انوارو د قرآن نه رد په رسم د جاهلیت باندے (چه هغه ظلمت دی) په ذکر د میراث د زنانو سره چه خویندے دی۔

یَسْتَفْتُوْنَكَ ، دے ته آیه الصیف وئیلے کیږی نازل شویدے په لار د حجة الوداع کښ په یاره د جابر رضی الله عنه چه د هغه ډیرے خویندے وے لیکن حکم عام دے۔ دلته لفظ فی الکلالة پټ دے په قرینه د جواب سره۔

اَلْكَلٰلَةِ ، تفسیر د دے مخکښ تیر شویدے۔ اِنِ امْرُؤٌ هَلَكَ لَيْسَ لَهٗ وَلَدٌ۔

سوال :۔ د کلاله په صحیح تعریف کښ خو عدم وجود د والد هم شرط دے ؟

جواب ۱ :۔ دیته اکتفاء وئیلے شی چه یو لفظ ذکر کړی او بل حذف کړی ځکه چه د هغے حکم ښکاره دی ځکه خور د مړی په وخت د وجود د پلار کښ محروم ده په اجماع سره۔

جواب ۲ :۔ جرجانی وئیلی دی چه لفظ د ولد پلار (والد) ته

شامل دے ځکه چه هغه هم پیدا شوي دے۔ او مراد دَ ولد نه په تیزدَ اکثر صحابه او تابعینو خوښے دے ځکه چه په وخت دَ وجود دَ لور دَ مړي کښ خور دَ عصوبت دَ وجے نه دَ نصف حقداره ده۔
وَلَهٗ اُخْتٌ، مراد دَ دینه اعیانی خور ده چه مور او پلار دواړو کښ شریکه وي او چه هغه نه وي نو بیا علاتی خور ده چه صرف په پلار کښ شریک وي او هرچه اخیافی دے نو دَ هغه حکم مخکښ تیر شوي دے۔
فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ، دا په طریقه دَ فرضیت سره دے په دیکښ هم هغه شرطونه دي (چه دَ دا دَ دین او وصیت نه په روستو وي) چه مخکښ ذکر شوي دي او نیمه دَ بل عصبه ده که موجود وي او که نه وي نو دغه خور ته به واپس کیږي په طریقه دَ عصوبت سره۔
وَهُوَ يَرِثُهَآ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهَا وَلَدٌ، یعنی که چرے دا خور مړه شي او یو ورور یے وارث وي او دَ دے ښځے اولاد مذکر یا مؤنث نه وي او پلار یے هم نه وي (ځکه چه کلاله کښ شرط دا دے چه پلار به یے هم نه وي نو دغه ورور به دَ دے خور دَ ټول مال وارث وي او دا دَ عصوبت دَ وجے نه۔
فَاِنْ كَانَتَا، ضمیر دَ کانتا راجع دے هغه چا ته چه وارث وي په اعتبار دَ اخوت سره۔
اثْنَتَيْنِ، دَ دینه مراد دوه خویندے دي۔
فَلَهُمَا الثُّلُثٰنِ مِمَّا تَرَكَ، یعنی یو ورور (کلاله) مړ شي او دَ هغه دوه خویندے یا دَ دوو نه زیاتے پاتے شي نو دَ هغوی دَ پاره به دَ ټول مال نه دوه حصے ورکیدے شي او دریمه حصه به په طریقه دَ عصوبت بل عصبه له ورکیدیشي که موجود وي او که نه وي نو دوي ته به واپس ورکیدیشي۔
وَاِنْ كَانُوْٓا اِخْوَةً رِّجَالًا وَّنِسَآءً، دلته دَ اِخْوَةً سره اخوت هم مراد دے په قرینې دَ نساءً سره۔ یعنی که ورور یا خور مړه شي او دَ هغوی وارثان رونړه خویندے دوه یا دیرے (ګډوډ) پاتے شي۔
فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ، دا څلور مسائل دَ وراثت دَ اخوت

سره متعلق دي۔

يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ أَنْ تَضِلُّوْا، په نيز د بصريانو او مبرد دلته مضاف پټ دے يعني كَرَاهِيَةَ أَنْ تَضِلُّوْا (د وجې د بدلګتړلو د ګمراهۍ ستاسو نه) او په نيز د كوفيانو كسائي او فراء باندے لام پټ دے يعني لِئَلَّا تَضِلُّوْا او دا پشان د دے قول د الله تعالیٰ دے چه (ان الله يمسك السموٰت والارض ان تزولا۔ سوره فاطر ۴۱) - او آلوسي او صاحب اللباب دريمه توجيه ذكر كړيده چه تقدير ته حاجت نشته بلكه معنیٰ دا ده چه بيان كوي الله تعالیٰ تاسو ته ګمراهي (د دے د پاره چه ـ په شئ د هغے نه) ځکه چه په دے سورت کښ ډير مسائل د جاهليت ذكر شول د پاره د اجتناب د هغے نه۔

وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ، نو عالم دے په هغه حكمونو چه په هغے کښ ستاسو مصلحتونه او فائدے دي د دُنيا او د آخرت۔

فائده ۱:- د دے سورت په اول کښ ذكر د قدرت د الله تعالیٰ دے په اول آيت کښ او په آخري آيت کښ ذكر شو علم د الله تعالیٰ او دا دواړه صفتونه مرجع د ټولو صفتونو د ربوبيت او د الوهيت ده۔

فائده ۲:- سيوطي وئيلي دي چه د دے سورت اختتام په احكامو د ميراث سره دے او دا تعلق لري د مرګ د انسان سره اشاره ده چه آخري عاقبت د ټول مخلوق مرګ دے۔

---

يا الله تعالیٰ زمونږ د ټولو عاقبت ښائسته او زمونږ مرګ د ابرارو صالحينو سره راولے۔ (اللهم آمين)

---

اَللّٰهم اغفر لمؤلف الكتاب وكاتبه ومن اعان في هذا الشان برحمتك يا ارحم الراحمين